# قدوری

## پښتو

جلد ۲ حصه


مصنف مولانا محمد عبد السعید الایوبی
القندهاری السلیمانخیلی الحنفی

نظر ثانی
مولانا نثار احمد عریف

ترتیب و سرورق
فضل الحق حقانی
فاضل وفاق المدارس ملتان



مکتبة القراءة والتجوید
کانسی روډ، شالدره، کوټه

فَانْكِحُوا مَا طَابَ لَكُمْ مِّنَ النِّسَاءِ مَثْنٰى وَثُلٰثَ وَرُبٰعَ (القرآن)

# نكاح قدوري

مولانا الحاج علامه

## مُحَمَّد عُبَيدُالله

الايوبي القندهاري السُّليمانخيلي الحنفي





مَكتَبَةُ الْقِرَاءَةِ وَالتَّجوِيد

كانسي رود شالدره كوئته

# د کتاب پېژندنه

د کتاب نوم ——— نکاح قدوري پښتو جلد ۲ حصه ۱
د مصنف نوم ——— الحاج علامه زمان محمد عبید الله ایوبي قندهاري مدظله العالي
کمپوزر ——— حبیب الحق حقاني
خپرونکې اداره ——— مکتبة القراءت والتجوید کاسي روډ شالدره کوئټه
کچه ——— ۸\۳۰\۲۰
د سر ورق لیکونکي ——— محمد فضل الحق حقاني

## خبر تیا

د نکاح قدوري د دوهم جلد دوهمه حصه به هم د همدې مکتبې له خوا ښخه په ښه خط، ښه کاغذ، او ښه چاپ سره ومینه والو ته ډېر ژر وړاندي سي

## خبر تیا

همدې مکتبې له خوا د فقهي حنفي یو معتمد کتاب،، **آسانه فقه**،
م وچاپ ته وسپارل سوه مینه وال دي له خپلې نژ دې کتاب پلورنځیو
خه تر لاسه کړی



الله تعالی لره دي حمد وي، او رحمت کامله دي وي د ده پر آخري استاذي حضرت محمد ﷺ او د ده پر ملګرو باندي کوم چي تر مونږ او د دنیا تر کونج کونج پوري یې د اسلام سپېڅلی قانون ورساوه، او د دنیا توري تیارې یې په روڼ صبا سره بدلي کړې، او مونږ ته یې د حلال او حرام اوامر او نواهي راورسول.

محترمو مسلمانانو! دا یو سرګند حقیقت دي چي هیڅ کله تري سترګي نه سي پټېدلای، چي د نکاح، طلاق، شدې رودلو، او د دي په مثال ډېر داسي بحثونه دي چي عام وګړي د هغو په شرعي حیثیتونو ناخبره دي تر داسي، چي ډېر ځله یو سړی څو واره په خپلو خبرو، معاملاتو کي قسمونو خو لا څه څو څو طلاقونه اخلي، خو دی په دې خبر نه وي چي دا طلاق په شریعت مطهره کي څه حکم لري، نبي کریم ﷺ فرمايي:- په حلالو شیانو کي هغه زیات د بغض او غضب شی د الله تعالی ﷻ په نزد طلاق دي، خو ډېر ځله یو وګړی وخپلي ښځي ته څو څو طلاقونه ورکړي خو بیا هم د هغې سره یې ازدواجي معاملات برقراره وي، او بیا چي یې بچي وسي نو د حکم نه منلو په صورت کي بیا وايي، زوی مي په خوله نه کوي.

آن تر دې چي زمونږ په معاشره کي څو څو واره طلاقونه زمونږ په خبرو اترو کي د مجلس یوه شېرینه او خوږه مشغله ده، او سره د دې چي د داسي الفاظو څخه د خاوند او ښځي هغه خوږه مینه او محبت د شریعت

په رڼا کي د فرقت او جلاوالي سبب وګرځي.

زه د **حضرت علامه عصر مولانا محمد عبيد الله ايوبي سليمان خېلي کندهاري** ډېره زياته مننه او شکريه اداکوم چي ده پر دې موضوع باندي قلم پورته کړ او مسائل د فقهي يې ښه په وضاحت سره وليکل.

هيله لرم چي دې کتاب ته به يې ولس د ډېر قدر په سترګه وګوري او ځان به د داسي کارونو او خبرو اترو څخه وژغوري کوم چي شريعت مونږ ورڅخه منع کړي يو، خداي پاك ﷻ دي د ده دا سعيه قبوله وګرځوي، الله تعالى دي ورته صحت کامله ورکړي تر څو په همداسي سليسه او عام فهمه پښتو کښي زمونږ د وطن اولس په قرآن مجيد او د هغه په تفسير پوه کړي، او د ژمني سره سم " **تفسير ايوبي** " ټول افغان اولس ته تحفه کړي. آمين.

والسلام.

**فضل الحق حقاني**

مدير مکتبة القراءت والتجويد کوټه

## د طبع اعلان



﴿الحمدلله والصلواة على من اصطفى من عباده﴾
﴿پس له حمد او له صلا ته﴾ ﴿دارنګ وايم زه وتاته﴾
﴿چي طلب د علم فرض دي﴾ ﴿لازم سوي لکه قرض دي﴾
﴿په پښتو به دين بيان کړم﴾
﴿ستا دپاره بې آسان کړم﴾

(رشيد بيان)

**ښځانسه فائسده**

**پوه سه**:- چي ما عاصي د قدوري اوله حصه تر عباداتو تر اختتامه پوري څو کاله دمخه په پښتو وطني ژبه سره په ښه په زړه پوري تفصيل سره (حتي المقدور) ترجمه او شرح کړې وه، په صحيح نقل د کتابو څخه د مذهب حنيفي، او هغې شرحي دونه لوي مقبوليت په پښتنو ورڼو او خوندو کي پيدا کي چي د وقت څخه د چاپ ترديې اوسه پوري تخميناً لس زره نسخې چاف سوې دي او هر ځاي چي پښتانه ورونه او خوندي استوګنه لري تر عربستان تر امريکا تر لندن وغيره ممالکو پوري دا تحفه بې بها او عروس زيبا ورسېده، او د هر ځايه څخه وعاصي ته (احسنت) او ډير ښه پېغامونه راورسېده حتي که زه هغه مفصل ليکونه ګرده درج کړم ورقي به ډېري په بر کي ونسي، نو پس له مقبوليت د اول جزء شرحي شفاهي او تحريري ليکونه راورسېده چي د نکاح او طلاق وغيره مسئلې هم ډېري دقيقې دي او که ده علماؤ سر په خلاصيږي، خو

عوام الناس که څه لیك لوست یه زده وي مستقیماً د هغه مسئلو څخه بې برخې پاته دي او دوي په دغو کي مسئوله ملایانو ته رجوع کوي او د عوامو دا خیال دي چي ده مساجدو امامان په دغو مسئلو خبر دي او په حقیقت کي داسي نه ده.

**پوښتنه**:- د نکاح او طلاق وغیره مسائل خو د فقهي شریفي په اولیه کتابو کي موجود دي لکه قدوری، کنز، مختصر وغیره؛ نو څرنګه یو عالم ځندي بې برخې کیداي سي؟

**ځواب**:- دا اولیه کتابونه خو پر ټولو جزئیاتو دمسائل مذکوره وو نه دي مشتمل بلکه د مفصل بیان د پاره د دغو مسئلو د جزئیاتو شروح مجلده او فتاواوي معتبره سته چي هغو ته د هر امام المسجد رسیدګي نسي کیداي او علاوه د قدوري او کنز مثلاً، کماحقه فهم، تر ډیرو افهامو لوړ دي.

**سوال**:- چونکه د اول جلد د قدوري د پښتو ژبي ډیر کلونه کیږي؛ نو ولي تا کتاب النکاح تردې اوسه ځنډولې وه، او د دونه قدر تاخیر وجه څه ده؟

**ځواب**:- چونکه بعض خواهش مندان په دوران کي د دغه تعطل نور کتابونه وبنده ته پیش کړي دي؛ نو د هغو د مشغولیت له کبله د کتاب النکاح پښتو کولو شرحه د تعطل ښکاره سوه مثلاً، ددغه تعطل په دوران کي عاصي (شروط الصلواة) پښتو کړي او هم مي په عربی ژبه (البلاغ المبین في بیان منهیات الدین) تصنیف کړي او علاوه پر هغه پر خیالی باندي یې لویه حاشیه تر پایه پوري وکړه چي د خیالي تر مقام درس وروسته مي پر بیاض د خیالي یوه رساله چي محتوی ده پر ټولو جوابو

د وهابیانو تحریر کړه چي نوم یې "سیف القندهاري علي عنق الوهابی" دي، او بل په دغه دوران کي یوه مفصله په پښتو ژبه "نور الایضاح" فتاوی مانندہ چي درې جلده ده او هر جلد یې پنځه سوه (۵۰۰) صفحې دي تصنیف کړه چي د هغې شرح دوه (۲) جلده د جناب قاری فضل الحق حقانی صاحب په کتابت دل پذیر چاف سوي دي او دریم (۳) تر نوشته د کاتب مذکور لاندي دي چي هغه به هم ډیر ژر ان شاء الله تعالي د نوشته ځخه خلاصه او ده طبع ځخه به راووزي، هم دغه وو سبب د تعطل د شرحي د کتاب النکاح د قدوري او په عین دغه اوس وخت کي پښتو کول د کنز الدقائق د اولي حصې هم تر تحریر د عاصی لاندي دي والله الموفق.

**بیت**

غرض نقشیت کزما یاد ماند — که هستي رانمي بینم بقائي
مگر صاحبدلي روزي برحمت — کند در حق این مسکین دعائي

**ابیات**

الهی یا الهی یا الهی — نه دارم جز امیدت تکیه گاهي
ندارم طاعت مقبول درگاه — بجز اشک ندامت آه آهي
ندارم توشئه راه قیامت — بجز شرمندگي وروسیاهي
بحق وحرمت فرقان اعظم — مرا از ذنب خودکن عذر خواهي
شفیع اورده ام روئي محمد ﷺ — کرم کن برمن گم کرده راهي

**مقدمه**

**پوه سه**:- چي خداي جل شانه وایي ﴿نساء کم حرث لکم فاتوا حرثکم انٰی شئتم﴾

**ترجمه**:- ستاسي ښځي یعني ماینې د کښت ځاي دي تاسي لره، پس تاسي ورځي ودوي ته پر هر کیفیت چي وي.

**فائده**:- په دې آيت مبارك كي خداي ﷻ ښځي مشابه کړي دي د كښت د ځمكو سره يعني لكه په ځمكو كي چي دانې د غنمو وغيره كرل كيږي په اميد د حاصلاتو دغه رنګه ده ښځو په رحمو كي توئيږي نطفې د نرو چي هغه په مثال د دانو د كښت دي په اميد د اولاد چي هغه لكه حاصلات د ځمكو دي، اشاره ددې آيت څخه دا معلومه سوه چي لواطت دماينې سره ناروا دي، ولي دكښت ځاي خو د مخ خوا دښځي دي يعني فرج دهغې، نه ده شا خوا د هغې يعني كونه ددې.

**فائده**:- د تعميم د، انّٰى شئتم، معنا داده چي په ولاړي كار ورسره كوي او كه ستوني ستخ يې پرې باسي كار ورسره كوي كه د شا د خوا څخه كار ورسره كوي لكن په فرج كي ددې، نه په كونه كي.

**فائده**:- په دې آيت كي دا اشاره هم راغله چي په جماعو كي د ماينې دي صرف او صرف قضاء شهوه ده سړي اراده نه وي بلكه قصد به يې طلب ده اولاد وي، لكه په كښت كرلو كي، علم طب وائي چي ښه طريقه د جماعو داده چي ماينه دي ستني ستخ پرې باسي او پښې دي ورټولي كړي او بيا دي يو ګړي خپل ذكر په دالان كي د فرج ددې وښوروي حتي چي ددې ستركي سرې سوې او زنګنونه يې لوړ كړه، نو پوه سه چي ددې شهوت په جوش راغلي، نو په دغه وخت كي ذكر ټوله ورننه باسه او پر ځيګر ددې ډير زور مه كوي بلكه د كوني پر خوا يې زور وكړي او ښځه دي ښه په ځان پوري ټينګه ونسي او كه سړي انزال سو هم دي ذكر نه ځندي راكاږي څو پر دې اودس اوړي، ددې د انزال علامه داده چي اندامونه يې ايله سي، او بيا دي پوراً ذكر ځندي راوباسي او ښځي ته

دي ووايي چي پر رسته اړخ واوړه: نو كه خداي جل شانه په دغو جماع كي ودوي ته اولاد وركاوه عيال به نر وي.

**فائده**:- كه سړي داغوښته چي عيال ماته په رنګ سوي وي يعني ماينه يې بدرنګه وه مثلاً، نو دي دي كوښښ وكي چي تر مايني د مخه ځان انزال كړي او كه يې داغوښته چي عيال مي وه ماينې ته په رنګ سوي وي يعني دي بدرنګه وو، نو دي دي ماينه د مخه انزال كړي.

**درويش وايي**:- چي دا اشارات طبيبه د احادثو نبويه سره صراحة سمون لري.

**پوه سه**:- چي تعميم د انّى شئتم، د پاره د بيان د جواز او د پاره د فراخ كولو د امر د جماعو پر مړو باندي دي. ولي كاهي د نرو يوه قسم جماعو ته زړه غواړي كاهي بل قسم ته (ولله الامر جميعا).

قال الله ﴿تعالى فانكحوا ماطاب لكم من النساء مثنى وثلاث و رباع فان خفتم ان لا تعدلوا فواحدة﴾ الاية.

**ترجمه**:- پس تاسي په نكاح كوي چي تاسي ته شرعت حلالوي د ښځو دوي دوي (۲) او درې درې (۳) او ځلور ځلور (۴) اوكه تاسي ببربدلاست پردې چي زه به په مابين كي د متعددو عدالت ونه كړم، نو بيا يوه ښځه په نكاح كړه.

**پوه سه**:- كه ده سړي شهوت ډير وو حتى چي پر ځان يې د زنا يا لواطت بيره درلوده، نو كه يې د مهر او ساتني وس درلودي، نو پر هغه سړي نكاح واجبه ده او كه يې طاقت نه درلودي، نو دي نفلي روژې ډيري نسي په حديث صحيح كي راغلي دي چي عليه الصلوٰة والسلام ځوانه طبقه د خپل امت مخاطبه كړه چي، اې ډلي د ځوانانو د چاچي طاقت وي د نكاح كولو هغه دي نكاح وكړي او كه څوك طاقت د نكاح

نـه لـري هغـه دي روژې نسـي ولـي چې روژې دده لـپاره لکـه خسـي ګرت دي، او کـه سړي معـتـدل الحالـه وو، يعـني پر ځان نـه بـيريدي د زنـا او لواطت څخـه او وس يې درلودي د هغه سړي د پاره نکاح کول سنت ده، په صحيح حديث کي راغلي دي چي نکاح يو سنت دي زما د سنتو څخه نـو څوك چي مخ اړه وي زما د سنت څخه هغه زما د طريقې سړي نه دي، او پـه بـل حديث صحيح کي راغلي دي چي ټوله امت يې مخاطب کړي دي، چي تاسي نکاح کـوي او نسـل ډيره وي ولـي چې زه فخر کـوم پـه تاسي په ورځ د قيامت يعني ستاسي په ډېروالي سره پر نورو امتو.

**پوښتـنـه**:- کـه د سړي دا خيـال وي چي که زه نکاح وکړم، نو زه نفلي عـباداتو تـه نسم فارغه کيداي ولـي چي په نفقه پيدا کولو سره به اخته يم او کـه نکاح نـه وکـړم او پر ځان هم نـه بـيريږي، نـو بـه زه ډير ډير نفلي عبادات کوم کومه خوا يې افضله ده؟

**ځـواب**:- نـکـاح کول يې افضل دي په نيزد د امام الاعظم رحمة الله عليه ولـي چي نکاح کـول د نژدې تـير سـوي حديث سره برابر دي او امام شافعي رحمة الله عليه وايې چي تخلي د پاره د نفلي عـباداتو افضـل دي او بـل دليل د مذهب حنيفـي دادي چـي نـکـاح کـول طـريقه ده د ټولـو انبـيـاء علـيـهم الصـلوٰة والسـلام ده، د وخـت څخـه د آدم عليه السلام الـي زمـان محمـد عليه السلام پـه اسـتـثـناء د يوه نبي ﷺ.

**پـوه ســه**:- چي په نکاح کي هم معني د عـبادت سته کمامر، او هم معني د معاملې ولـي چي مهر پکښي لازم دي او که سړي ته دا په دلائلو سره ثابته سوه چي زه عنين يم بيا نکاح کول ورته حرام دي، د عنينيت دلـيل بـيله نـاروا کـولـو دادي چـي تصـور د جماع پـه دې سـړي کـي آلـه

انتشار هيڅ نه کاوه، نو غالبانه چي څو واره دا تجربه وکړي عنين دي او که يې آله خو آنتشار وکړي، او يو ګړي وروسته مذي خارج سوه او آله يې انتشار پرېښو، دا بله علامه د عنينيت ده، نو هم دغه معني د دې قول د سعدي شيرازي رحمه الله. مردي را بسيازماي باز زن کيد، لاما فهمه بعض الناس.

**پوه سه**:- چي په خوب کي اودس پر اوښتل علامه د صحت نه ده.

**فائده**:- بعض کسان د مخه تر واده په دليل مذکور علامه د عنينيت نه ويني لکن چي واده وکړي او د ماينې سره يوځاي سي دا مرض محسوس کړي، نو که يې آله هيڅ انتشار نه کاوه ددې اسباب څو دي، يو دا دي چي ماينه پر مشره وي وده ته دهشت پېښ سي يعني سام پرولويږي، نو آله انتشار نه کوي، بل سبب دا دي چي د ماينې په سبب د بدرنګي دده يا ډيره څندي کشره وي او د ميړه څخه يي بد راځي هم آله انتشار نه کوي، او که داسي وو چي آله خو به يې منتشره سوه لکن چي ماينې ته به دجماعو دپاره ورنږدې سو قبل الدخول به اودس پر واوښتي دا مريضي ده چي په نامه ده "**سرعة الانزال**" ياديږي، نو دوا دي وکي او کېداي سي چي يو چا دئ په سحر سره دمايني څخه بند کړي وي چي دې ته محبوس وايې، ددې علاج په دوا نه کيږي د يو عامل سړي څخه تعويز، څانښت واخلي چي د محبوس د پاره قسم قسم اعمال سته چي په "کتاب الرحمة فى الطب والحكمة" چي د علامه جلال الدين السيوطى رحمه الله تصنيف دي، موجود دئ لکن مشکل دئ.

انجير خوردن نه کار هر مرغيست وګفته اندنه هرکه سر بتراشد قلندري داند.

**فائده**:- هر څو چي سړی خداي ﷻ ته په اذکارو او عباداتو سره نژدي کيږي مردانګي قوت ډيريږي، وهذا هوا السر فی کثرة ازواج الانبياء عليهم الصلواة والسلام" د دې سره په پوهېدو سره دعوام الناس ډيري شبهې د دوي د زړو ووتې. فافهم وتذکر.

**مسئله**:- اسقاط د حمل د ښځي خو حرام دي، ولو من الزناء اما که چيري يوه ښځه ناجوړې وي او يا کال په کال لنګيږي، او د عيال تېر و ببر نسي کولاي او ژوند يې ډېر سخت وي، نو دا او ميړه په مشوره دا کار وکي ورته جواز لري چي د يو څو کلو د پاره حمل بند کړي په ډاکټري دواوو سره لکه په نني زمانه کي دغسي امکانات سته.

**مسئله**:- د دې د پاره منصوبه بندي کول يعني عيال راوړل بندول چي عيال چي ډېر سي نو د کمي خوا به روزي ورته برابريږي دا ناجائزه ده ولي چي رازق مطلق خداي ﷻ دي "رزق من يشاء بغير حساب" او دا کار خلاف د هغه حديث نبوي ﷺ هم دي چي وايي "تناکحوا و تناسلوا فانی اباهی بکم الامم يوم القيامة ولو بالسقط او کما قال النبیﷺ" او په اول صورت کي چونکه عذر وو نو په قرار د قانون فقهي، الضرورات تبيح المحظورات بندول د عيال د څو کالو د پاره جائز دي يعني امتناع د حمل څخه په نيز د ضرورت مذکوره رواه ده. فاعرف الفرق.

# كتاب النكاح

دا کتاب دي په بيان کي د نکاح، په درمختار کي وايي چي موږ لره داسي عبادت شرعي نسته چي د زمانې څخه د آدم ﷺ بيا تر اوسه، او بيا په جنت کي هم وي بيله ايمان او نکاح.

**پوه سه**:- چي د نکاح د لفظ په معني لغوي کي ډېر لوي اختلاف دي صاحب الصراح وايي چي نکاح ((بکسر النون مجامعت کردن وعقد زنانشوي کردن آه)) يعني نکاح جماعو ته وايي او عقد ته د ماينې والي او ميړه والي هم وايي، نو بعض اهل لغت وايي چي لفظ د نکاح مشترك لفظي دي په مابين کي د جماعو او عقد، او بعض وايي چي لفظ د نکاح حقيقت دي په عقد کي مجاز دي په وطي کي او دا مذهب د امام شافعي رحمه الله دي، بعض اهل الاصول او بعض فقهاء وايي چي لفظ مذکور حقيقت دي په وطي کي، او مجاز دي په عقد کي او دا مذهب دي د ډېرو مشائخو د حنيفيانو رحمهم الله او بعض مشائخ زموږ وايي چي د لفظ د نکاح معني ضم يعني جوت والي دي.

**درويش وايي**:- چي ددې مذهب او د مخني مذهب کوم منافات نسته ولي مطلق ضم عام دي او د جماعو ضم دده فرد دي. ((وقد تقرر في کتب علم البيان والمنطق ان اللفظ الموضوع الاعم حقيقة في کل افراده من حيث هو فرده يعني لامن حيث الخصوصية)) لکه لفظ د انسان چي موضوع دي د پاره د حيوان ناطق، نو دغه لفظ په زيد او عمر وغيرهما کي هم حقيقت دي، نو پر دې تقدير لفظ د نکاح مشترك معنوي دي، مجمع الانهر مع زيادة.

او صاحب جوهره وايي چي صحيح داده چي الفظ د نکاح حقيقت دي په وطي کي او مجاز دي په عقد کي، من قبل اطلاق اللفظ الموضوع للمسبب على سببه، ولي چي عقد سبب دي شرعاً د پاره د جواز د وطي او پر دې خبره صاحب جوهره دا دليل ويلي دي چي خداي جل جلاله وايي" ولاتنکحوا مانکح ابائکم من النساء" وجه داستدلال يې داده چي په دغه آيت کي حتماً جماع مراد ده ولي معقوده د پلار خو يا مور ده يا ميره د هغې نکاح کول زوي لره په

نورو آيتو سره حرام ثابت دي؛ نو دا آيت په باره کي د هغه مينځي د سړي دپلار دي چي پلار به وطي ورسره کړي وي؛ نو زوي ته يې نکاح ناروا ده. انتهى بحاصله مع زيادة.

**درويش وايي**:- چي دا آيت خو پر تقدير د اشتراك معنوي هم جوړيږي، كما لايخفى وقد تقرر فى كتب الحكمة انه اذا جاء الاحتمال بطل الاستدلال.

او بل دليل يې دادي چي په حديث شريف کي راغلي دي چي (لعن الله ناكح البهيمة) په دې حدث شريف کي خواه ماخواه وطي مراد دي ولي چي عقد د بهيمې خو ممکن نه دي.

**درويش وايي**:- (وفيه مامر من الاعتراض كما لايخفى ولصاحب الجوهرة ان يقول) چي مراد په دليل کي اراده د وطي ده په مذکوره آيت او حديث کي ببله قرينې او شك نسته چي پر تقدير د اشتراك معنوي، لابد من قرينة على ارادة فرد معين كما تقرر فى مقره.

او صاحب الكنز وايي چي لفظ د نكاح په شرع شريفه کي ملك دي د متعې قصدا يعني ببله ملك د رقبې فلايرد السوال بالامة.

قال القدوري رحمه الله " النكاح ينعقد بالايجاب والقبول"

او نکاح غوټه کېږي په ايجاب او قبول سره.

**پوه سه**:- چي ايجاب هغه اولي خبري ته وايي که د ميړه د خوا وسي مثلاً يو سړي وښځي ته يا وقريب ته د ښځي وويل چي ته زما سره نکاح وکه او يا ستا لور ماته په نکاح راکړه دا ايجاب بولي په دې سبب چي پر هغه بل طرف يې جواب واجب کړي يا په لا يا په نعم سره، او يا ښځه سړي ته ووايي چي زما سره نکاح وکړه يا پلار د ښځي يو سړي ته ووايي

چي تـه زمـا لـور پـه نكاح كړه او قبول دجانب مقابل وجواب ته وايي يا په لا يا په نعم سره، كذا فى حواشى الهدايه ومجمع الانهر وردالمحتار وغيره.

**پوه سه**:- چي د عقد معني غوټه كول دي د دوو شيانو اگرچه غوټه كول خو په محسوساتو كي حقيقت دي، لكن استعمال يې په نكاح كى د سبب د مشابهت دي، يعنى نر او ښځه د مخه تر نكاح گويا لكه دوې رسى چى سره جلا وي او پـه غوټه كولـو سره متصل واحد گرځـي دغـه رنگه نر او ښځه په ايجاب او قبول سره متصل وگرځېده.

قال المصنف رحمه الله " بلفظين يعبر بهما عن الماضى "

او دا ايجاب او قبول به وي په دوو (۲) لفظو سره چي په هغه دوو لفظو سره تعبير كيږي د تېر سوي كار څخه.

**پوه سه**:- چي نكاح ان شاء د عقد ده، او وضع اللغت د انشاء العقد د پاره كوم لفظ نه دي وضع كړي، او انشاء د عقد په شرعه شريفه سره پېژندل سوې ده، په لغت كي لفظ د ماضي او مستقبل موجود وو، لكن چونكه لفظ د ماضي پر تحقق دلالت كاوه، نو ځكه يې لفظ د ماضي د پاره د نقل وه انشاء العقد ته تر مستقبل مختاره كي، بحر، رد.

**فائده**:- مصنف لفظين وويـل ولـي چي تلفظ د جانبېنو څخه غواړي لكن على التوالى لكن په جوهره كي وايي چي نكاح گاهى په لفظ واحد هم غوټه كيږي لكه د ښځي د اكازوي چي خپله د اكا لور غواړي، نو په حضور د شاهدانو چي ښځه هم حاضره وي داسي ووايي، تزوجت بهذه آه.

**فائده**:- مندوب داده چي نكاح دي په اعلان سره وي ولـي چي په حديث كي د ترمذي داسي راغلي دي (اعلنوا هـذا النكاح واجعلوه فى المساجد واخبروا عليه بالدفوف) تاسي اعلان كوي په نكاح سره او په مسجدو كي دا

عقد کوي، او تاسي پر وهي دريږ لکن داسي دريږ چي ږنګولي نه وي ...

ورسره، ردالمحتار.

او بل مندوب ده چي د مخه تر عقد نکاح دي خطبه وايي چي د علما ...
د طرفه ويل کېږي، او د جمعې ورځ ډېره ښه ده.

تبصره:- مندوبيت د عقد په مسجد کي په زمانه کي د عليه الصلوٰة
والسلام وو، او اوس هم مندوب دي چي صرف الفاظ د عقد وي لکن ...
اوسنۍ زمانه کي خلګ په وخت کي د عقد النکاح ډوډۍ او غوښي ...
شير چائي او کلچې وغيره په طور د مهمانۍ راوړي، نو د داسي عقد ...
پاره مسجد مکروه دي بلکه په يوه کوټه يا سراى کي دي دا مهماني ...
عقد نکاح تر سره سي ولي چي مسجد د عبادت د پاره دي د اکل ...
شرب د پاره نه دي ماسوى د معتکف څخه.

مسئله:- د خطبې د نکاح د پاره کومه معينه خطبه څو نسته صرف
حمد وثناء دخداى ﷻ او درود او يو يا دوه يا درې آيته د قرآن کريم
کفايت کوي اما هغه خطبه چي طحطاوي رحمه الله د حصن حصين څخه
قول د عليه الصلواة والسلام نقل کړي ده هغه ډېره ښه ده او هغه دا ده
الحمد لله نحمده ونستعينه به ونستغفره ونعوذ بالله من شرور انفسنا وسيئات اعمالنا من يهدى الله
فلا مضل له ومن يضلل فلاهادى له واشهد ان لا اله الا الله واشهد ان محمدا عبده ورسوله يا
ايها الذين آمنوا اتقوا الله حق تقاته ولاتموتن الا وانتم مسلمون. يا ايها الناس اتقوا ربكم الذي
خلقكم من نفس واحدة الى رقيباً. يا ايها الذين آمنوا اتقوا الله وقولوا قولاً سديداً يصلح لكم
اعمالكم، الى قوله عظيماً، در، ط، خص.

او دغه رنګه مندوبه ده چي عقد کوونکى د دواړو طرفو به ښه خلاص
ژبى سړى وي، نو ډېر ښه سره چي يو د نرو قريبانو څخه د دې نه وي ...

به عقد نه کوي ولي په سبب د شرمه داخلاصي خبري نسي کولای چي قريب يې ناست نه وي، او شاهدان د عقد به هم عادلان وي که شهود فاسقان وه که څه هم زموږ د حنيفيانو رحمهم الله په نيز نکاح خو غوټه کيږي لکن د امام شافعي رحمه الله د خلافه د ځان ايستو د پاره عدول شهود مندوب دي، او د نکاح د پاره که څه هم سړی خپلي روپۍ نه لري خو پور ورته کول مندوب دي ولي چي د دې پور د ادا ضمان پر خدای جل جلاله دي په ترمذي او نسائي او ابن ماجه کي حديث دي عليه الصلوة والسلام وايي، ثلاث حق على الله تعالى عونهم المكاتب الذى يريد الاداء والناكح الذى يريد العفاف. والمجاهد فى سبيل الله تعالى ذكره" دري کسه حق لري پر خدای تعالی جل جلاله يعنی په مقتضی د فضل او کرم ورنه پر خداي پاك هيڅوك حق لاژم نه لري د کومك، يو مکاتب مريي دي چي اراده يې وي چي د بادار د عقد کتابت پور به ورکوم، او دوهم هغه نکاح کوونکي دي چي نکاح د پاره د ځان ساتولو د زنا څخه کوي، او دريم مجاهد فی سبيل الله دي، او بل مندوب دادي چي هغه ښځه چي سړی غواړي په نکاح پخپله ورته کتلای سي که څه هم دشهوة بيره پر ځان لري، ردمحتار ج/۲/ ص/ ۳٦٠.

او بل دا مندوب ده چي ښځه به تر مېړه کشره وي، يو سبب خو دادي که ډېره مشره وي بيا ژر وچېږي د اولاد څخه، او بل سبب دادي که ښځه مساوی العمره وي د مېړه سره او يا لږ مشره وی نو دوي يو او بل نسي نازه ولای ښځه خو طبعاً د ناز ولو د مېړه څخه شرمېږي، او نر هم شرمېږي په سبب د برابري د عمر يا د مشرتوب د ښځی، نو د دوي د گذارې په باب کي خلل واقع کېږي، او دغه رنگه بايد ماينه تر مېړه کمه وي د پلارگنی په شرافت کي، او دغه رنگه به کم وي پخپل کسب

کړي عزت کي، او په مال کي به هم تر مېړه کمه وي د دې سببه که ماینه تر مېړه په فوق الذکر شیانو کي بالاوي بیا د مېړه فرمان برداري نه کوي او د تحقیر په ستر ګو ورته ګوري، او چي ماینه تر مېړه په مذکوره شیانو کي کمه وي نو بیا د مېړه ډېر عزت او احترام ساتي او ډېر یې په خوله کوي، او دغه رنګه مندوبه ده چي ماینه دي تر مېړه په اخلاقو کي، په ادب کي، په ښایست کي، او په پرهېزګارۍ کي تر مېړه بالاوي تا چي پر مېړه ګرانه سي او د دې و خبره او ناز ته غوږ و نسي، در، رد، اختیار الزوجه للرجل.

په بحررائق کي وايي چي په اسانه مرکه سره پیدا سي او تکلیف د ولور او د کور د کالو یې سپك وي او نکاح د باکرې ښځي تر کونډې ښه ده، په حدیث کي راغلي دي، علیکم بالابکار" پر تاسي لازم ده د باکرو ښځو نکاح، فانهن اعذب افواها" چي د دوي خولې خوږې دي تر کنډیانو، وانقی ارحاما" او رحم د دوي پاك دي، وارضی بالیسیر" او ښه خوشحاله کېږي په لږ شي ولي چي د باکرو مد نظر جماع دي چي دوي یې تر اوسه خوند نه دي لیدلی، او د کونډې شهوة خو فی الجمله سوړ سوي دي نو دا علاوه تر جماعو ښه ښه پېښني کالي غواړي او ښه خواړه، او سړی دي نه په نکاح کوي جګه ډنګره ښځه، او نه دي لنډ قامته ښځه چي بېخي لنډه وي، او نه دي ډېره چاغه لوي خېټې ښځه په نکاح کوي ولي یو خو د هغې جماع په سبب د لوي خیټې تکلیف دي او بل عیال یې ژر نه کېږي په سبب د چاغوالي، او نه دي بد اخلاقه ترینګلې ښځه په نکاح کوي، او نه دي داسي کونډه په نکاح کوي چي د زاړه مېړه څخه اولاد لري، او نه دي داسي ښځه په نکاح کوي چي کلان ساله وي، په حدیث شریف کي راغلی دي، سوداء ولود خیر من حسناء

عقیم" توره ښځه چې لنګېږي ښه ده تر ښائستې وچې ښځې، او که يې
قدرت د حُرې ښځې د نکاح درلودې مينځه دي هم نه په نکاح کوي ولي
د ده عيال مريان ګرځې د مينځې د بادار د پاره او نه دي رنډۍ زناکاره
ښځه په نکاح کوي، اختيار المرئة للزوج" ښځه بايد د ديندارو سړي
سره نکاح وکړي، او بل چې اخلاق يې ښه وي، او بل غني او سخي وي
او د فاسق سړي سره دي نکاح نه کوي، او سړئ دي خپل ځوانه لور وه
سپين ږيري ته په نکاح نه ورکوي، او سړی دي خپلي پېغلي لور ته ښه
زېور او کالي ورکوي چې مرکه والا يې ډېر سي، او چې کفو برابر سي
لور دي د ډېر ولور د پاره سړی نه ځنډوي، ولي چې د ډېر ولور د سببه
آخر کوټه نسي نو باره د ستې نوم پرکښېږ دي دا ګناه کبيره ده.

**واقعه**:- د يو کور علمي خاندان يوه پېغله وه چې خلګو به مرکې ورته
کولې پلار يې ويله چې دا زما کفوه نه دي رفته رفته ښځه چې عمر يې
ډېرې دي مرکې کمېدلې آخر هيڅ چا مرکه نه ورته کوله، آخر يې پر
ښځه د ستې نوم کښېښوي، ښځه پاته سوه آخر ډېره معمره سوله او
ناجوړې سوله نو قريبان يې پر راټول سول چې ستې بي بي موږ ته
وصيت وکړه؟ ښځې ورته وويله چې زما دغه يو وصيت دي هغه پر ځای
کړي، چې په کورو کي مو پېغله پيدا سوه کوشش کوي چې ژر يې مېړه
ته ورکړي، دې وويله چې زما په دغه ٨٠ کاله عمر کي مېړه د زړه نه دي
وتلي خو هر ګوره حيا راباندي غالبه وه او د ستې نوم راباندي بار وو.

قال القدوری" او يعبرو باحدهما من الماضي وبالاخر عن
المستقبل مثل ان يقول زوجنی فيقول زوجتک.

او يا تعبير کړه کيږي په يوه لفظ سره د ماضي څخه او په بل لفظ د مستقبل څخه لکه چي يو د نر او ښځي څخه ووايي ما په نکاح کړه که ښځي وويل، او يا زما سره نکاح وکړه يا ما ميړه کړه که نر وويل، او هغه بل ورته وايي ما ستا سره نکاح کړې ده يا ته مي نکاح کړي يې، يا ته مي ميړه کړی يې.

**پوه سه**:- چي مراد د مستقبل څخه مستقبل نحوي چي مضارع ده نه دي ولي که هغه مراد وي خو هغه صرف يوه وعده ګرځي نو نکاح نه منعقده کيږي، بلکه مراد صيغه د امر ده، در، جوهره.

دليل د غوتهه والي په لفظ د امر او ماضي دادي چي امر هغه بل طرف وکيل په نکاح سره ګرځوی، او هغه بل طرف چي لفظ د ماضي استعمال کړي هغه پرځای د دوو لفظو ولاړ دي يعني توکيل قبول ته زما ماينه يې يا ميړه يې يعني يو سړی په نکاح کي اصيل او وکيل دواړه کيدای سي.

**پوښتنه**:- په ټوله کتابو کي د فقي شريفي راغلي دي چي په عقد کي د بيع يو سړی يعني بائع يا مشتري اصيل او وکيل دواړه نسي کيدای نو د نکاح او بيع څه فرق دي؟

**ځواب**:- د فقي شريفي په ټولو شرحو کي د متون او په کتابو کی د فتاواؤ وايي چي فرق يې دادي چي ټوله حقوق د بيع و شراء راجع و وکيل ته دي مثلاً که د بائع وکيل وي تسليم د مبيعی و مشتری ته پر وکيل دي مشتري په اصيل هيڅ کار نه لري، او اخستل د ثمن د مشتري څخه هم د وکيل کار دي وهکذا رد البيع بالعيب، او که د مشتري وکيل وو، ورکړه د ثمن او قبض د مبيعې هم د وکيل کار دي وهکذا نو که يو سړی هم اصيل سي او هم وکيل نو يو سړی به هم مطالب او هم مطلب

سي او دا ممکنه نه ده، او د نکاح حقوق ټوله راجع وه اصيل ته دي وکيل صرف سفير دي په مابين کي مثلاً غوښتنه د ولور، يا ورکړه د ولور، يا د ښځي ودېده وغيره د وکيل کار نه دي نو که يو سړی هم وکيل او هم اصيل وي نو يو سړی مطالب او مطلب نه ګرځي، فلايلزم المحال وهذا هو الفرق الذي ذكره الفقهاء رحمهم الله باجمعهم.

**پوښتنه**:- په فقه شريفي کي وايي چي توکيل پر مجلس د عقد توکيل نه دي محصور، او سره د دې په صورت مذکوره کي د نکاح توکيل پر دغه مجلس محصور دي؟

**ځواب**:- دا خو توکيل مطلق نه دي حتى چي په ماوراء کي د مجلس هم پاته وای. لکه يو سړی چي بل ته ووايي ته زما وکيل يې ماته ماينه راوکړه، بلکه دا توکيل دي په ضمن کي د امر چي زوجني" دي نو داسي توکيل موقوف دي پر کولو د فعل مذکور په داغه مجلس کي، در. تب.

**پوښتنه**:- مصنف رحمه الله اول ماضي لفظ ووايه او وروسته يې مستقبل لفظ، او سره د دې چي په مثال کي مستقبل تر ماضي د مخه دي يعني زوجني" نو ولي په عبارت کي هم په دغه ترتيب نه ويله؟

**ځواب**: چونکه اصل په انعقاد کي د نکاح لفظ د ماضي وو کماعرف سابقا نو ځکه يې په عبارت کي ماضي د مخه کړه او په مثال کي خو ماضي د مخه کيدای نه سي لعدم التوکيل ح، فتدبر.

قال القدوری رحمه الله " **ولا ينعقد نكاح المسلمين**" او نه تړل کېږي نکاح د مسلمانانو، پاته نکاح د کفارو سوه هغه د دوی په عقيده او مذهب پوري اړه لري نو که د دوي په مذهب کي بې شاهدانو نکاح روا

وه نو رواده يعني که دغه کفار اهل ذمه وي مسلمانان د دوي په عقد نکاح کي بېله شاهدانو مداخله نه سي کولای، در، فتح.

**پوښتنه**:- چي په حضور کي د شاهدانو عقد کول يواځي او يواځي په عقد کي د نکاح شرط دي نه په بيع او شراء وغيرهما کي، په دليل د حديث د ترمذي، زنا کاري او رنډۍ ښځي هغه دي چي خپل ځانونه په نکاح ورکوي بېله شاهدانو، ولما روی محمد بن الحسن رحمه الله مرفوعا لا نکاح الا بشهود" دا شرط والي د شاهدانو په وقت کي د عقد نتيجه دادهٔ چي که چېري نر او ښځي د نکاح عقد يو په يو سر وکړي لکن وروسته بيا دوی دوه کسه شاهدان خبر کړه چي موږ خو نکاح سره وکړه دا نکاح نه ده صحيح، مګر هغه وقت صحيح ده چي په حضور کي د شاهدانو تجديد د عقد سره وکړي، کذا فی بعض الفتاوی.

**مسئله**:- په خلاصه او خانيه او بحر رائق کي وايي که نر او ښځي په شهادت د خدای ﷻ او د رسول ﷺ د نکاح عقد سره وکړي نکاح خو يې نه ده صحيح مګر دواړه کافران هم سوله، ولي چي د دوي دا عقيده ده چي رسول ﷺ په غيب خبر دي، مع ان الغيب لايعلمه الا الله.

**الا بحضور شاهدين حرين بالغين عا قلين مسلمين او رجل وامرئتين**" مګر نه په حضور د دوو کسانو شاهدانو يعني دا يې ادنٰی مرتبه ده چي دواړه به حر او ازاد کسان وي نو په حضور کي د مريانو نکاح نه غوټه کېږي کم کانوا، او دواړه به بالغ وي نو په حضور کي د کوچنيانو عقد نکاح نه دي روا، او دواړه به عاقل وي نو په حضور د ليونيانو نکاح نه غوټه کېږي، او دواړه به مسلمانان هم وي نو د کفارو په حضور کي نکاح نه ده روا، او يا به يو نر دوې ښځي وي.

**پوه سه**:- چي دا قول د مصنف رحمه الله حرين آه" د قسمه د ترقي د ادنى څخه د اعلى ته، فلا يرد انه ينبغى تقدم قوله مسلمين على باقى اشراط، در.

**فائده**:- د فقي شريفي په كتابو كي وايي چي شهادت په اصل كي نافذېدل دي د قول د شاهد پر بل باندي يعني المدعى عليه نو لهٰذا قول د مريي يا د نابالغه ياليوني يا د كافر پر مسلمانانو چونكه پر چانه چلېږي نو دوي شاهدان د عقد نكاح نه سي ګرځېدلاى، لامكان الاختلاف په مابين د ښځي او د مېږه په نكاح يا ولوور وغيره كي، فلابد من آداء الشهادة.

قال القدورى رحمه الله " عدولا كانوا او غير عدول او محدودين فى القذف" نو د نكاح شاهدان كه عادلان او كه غير عادل ويي او يا دوي ته حد قذف وركړه سوى وي.

**پوه سه**:- چي قذف دادي چي يو سړى نر يا ښځي ته ووايي چي تا زنا كړې ده، او هغه بل څوك چي د دغه زنا نسبت ورته وكړي هغه د قاضي په حضور كي د ده څخه طلب د شاهدانو د زنا وكي او دي د شاهدانو څخه عاجزه سي نو قاضي د ته حد قذف ۸۰ درې وركوي.

**فائده**:- مصنف رحمه الله چي محدود فى القذف جلا ذكر كړي سبب يې دادي چي د قذف په باره كي خداى جل جلاله وايي، ولاتقبلوا لهم شهادة ابدا" نو د خلګو به دا خيال كيدى چي محدود فى القذف په نكاح كي شاهد نه سي ګرځېداى ولي چي مقصود د شاهدۍ څخه خو قبول دي په وخت كي د خصومت او اختلاف د مېړه او ماينې نو د محدود فى القذف شاهدي خو په امر الهى نه قبلېږي نو د ده شاهد ګرځول څه فائده ده.

نو مصنف رحمة الله عليه وايي چي محدود فی القذف خو اهل د تحمل د شاهدی دي ولي چي دی او يا بل فاسق چي مراد د غير عدل څخه دي اهل د ولايت پر خپل ځان دي نو پر بل ځا هم اهل د ولايت دي ولي غير خو هم د ده د جنس څخه دي كه څه هم دوی اهل د قبول د شاهدي په نېز د قاضي نه دي، الاترى ان الفاسق من اهل الامامت الكبرى فيكون من اهل الشهادة بالاولى، تب، در، سس، هی.

او امام شافعي رحمة الله عليه وايي چي په شاهدانو كي د عقد نكاح عدالت شرط دي، وتفصيل الدلائل في شروح القدوري، وشروح الكنز وغيرهما ولايناسب ايراد بحال المبتدی.

**فائده**:- عادلان شاهدان افضل او مستحب دي تر فاسقانو بدليلين، الاول فضيلة العادل على الفاسق كما لايخفی، والثانی الخروج عن اختلاف الشافعی رحمة الله عليه.

**قال القدوری رحمة الله عليه "فان تزوج مسلم ذمية بشهادة ذميين جاز عند ابی حنيفة وابی يوسف رحمهم الله وقال محمد رحمة الله عليه لايجوز الاان يشهد بحضور شاهدين مسلمين"**

او كه چېري په نكاح كړه مسلمان كافره ښځه د اهل ذمه وو څخه يعني چي كتابيه وي ولي چي نكاح د مسلمان د مشركي سره نه ده روا، نو دا نكاح روا ده په نېز د امام اعظم او ابو يوسف رحمة الله عليه او امام محمد رحمة الله عليه وايي چي دا نكاح نه ده روا، مگر هغه وخت روا ده چي دوه مسلمانان شاهدان وگرځوي.

**پوښتنه**:- چي په دغه مسئله کي امام شافعي او امام احمد رحمة الله عليه او امام زفر رحمة الله عليه د امام محمد رحمة الله عليه سره هم عقيده دي، كما قال العيني في شرح الكنز.

**پوښتنه**:- چي چونکه دا پښتو شرحه د نکاح قدوري صرف او صرف د پاره د مبتديانو او د عامو پښتنو ورنړو د پاره ده نو هغه دلائل چي د دوی تر فهم لوړ وي نه يې راوړم صرف حواله د کتابو ورکوم د پاره د خواصو طالبانو نو مذکوره مسئلې د دلائلو د فريقينو تفصيل په درمختار، هدايه، عيني، تبيين او نورو کتابو کي سته.

**پوښتنه**:- په مذکوره مسئله کي که چېري وروسته تر نکاح اختلاف د مسلمان مېړه او د ذميه ماينې راغلي نو د دوو (۲) ذمي شاهدانو شهادت به قاضي اوري او که څرنګه يعني پر مذهب د شيخينو رحمة الله عليه.

**ځواب**:- که اختلاف د مهر په مقدار کي وو يعني ښځي د ډېر ولور دعوه کوله او مېړه منکر وو نو د دې دوو شاهدانو شاهدي به قاضي نه اوري، ولي چي کافر لره پر مسلمان شاهدي نسته، كما تقرر في الفقه او که چېري ماينه د ملك متعې يعني د نکاح څخه منکره وه نو قاضي دي د دغو شاهدانو شاهدي قبوله کړي ولي چي دا شهادت د کافر پر کافر دي.

قال القدوری رحمة الله عليه " ولا يحل للرجل ان يتزوج بامة ولا بجداته من قبل الرجال والنساء" او نه ده روا سړي لره چي نکاح وکړي د مور سره خپل او نه د اناګانو سره که اناګاني د نر د خوا وي يعني د پلار د خوا لکه د پلار مور وان سفلت، او که د ښځي د خواه وي يعني د مور د خوا لکه د مور مور وان سفلت.

نو مصنف رحمة الله عليه وايي چي محدود فی القذف خو اهل د تحمل د شاهدۍ دي ولي چي دی او يا بل فاسق چي مراد د غير عدل شخه دي اهل د ولايت پر خپل ځان دي نو پر بل ځا هم اهل د ولايت دي ولي غير خو هم د ده د جنس شخه دي که څه هم دوی اهل د قبول د شاهدي په نيز د قاضي نه دي، الاترى ان الفاسق من اهل الامامت الكبرى فيكون من اهل الشهادة بالاولى، تب، در، سس، هی.

او امام شافعي رحمة الله عليه وايي چي په شاهدانو کي د عقد نکاح عدالت شرط دي، وتفصيل الدلائل في شروح القدوري، وشروح الكنز وغيرهما ولاينا سب ايراد بحال المبتدى.

**فائده**:- عادلان شاهدان افضل او مستحب دي تر فاسقانو بدليلين، الاول فضيلة العادل على الفاسق كما لايخفى، والثانى الخروج عن اختلاف الشافعى رحمة الله عليه.

**قال القدورى رحمة الله عليه " فان تزوج مسلم ذمية بشهادة ذميين جاز عند ابى حنيفة وابى يوسف رحمهم الله وقال محمد رحمة الله عليه لايجوز الا ان يشهد بحضور شاهدين مسلمين"**

او که چيري په نکاح کړه مسلمان کافره ښځه د اهل ذمه وو شخه يعني چي کتابيه وي ولي چي نکاح د مسلمان د مشرکي سره نه ده روا، نو دا نکاح روا ده په نيز د امام اعظم او ابو يوسف رحمة الله عليه او امام محمد رحمة الله عليه وايي چي دا نکاح نه ده روا، مگر هغه وخت روا ده چي دوه مسلمانان شاهدان وگرځوي.

**پنځوه سه**:- چي په دغه مسئله كي امام شافعی او امام احمد رحمة الله عليه او امام زفر رحمة الله عليه د امام محمد رحمة الله عليه سره هم عقيده دي، كما قال العينى فى شرح الكنز.

**پوه سه**:- چي چونكه دا پښتو شرحه د نكاح قدوري صرف او صرف د پاره د مبتديانو او د عامو پښتنو ورنړو د پاره ده نو هغه دلائل چي د دوی تر فهم لوړ وي نه يې راوړم صرف حواله د كتابو وركوم د پاره د خواصو طالبانو نو مذكوره مسئلې د دلائلو د فريقينو تفصيل په درمختار، هدايه، عينی، تبيين او نورو كتابو كي سته.

**پوښتنه**:- په مذكوره مسئله كي كه چېري وروسته تر نكاح اختلاف د مسلمان مېړه او د ذميه ماينې راغلي نو د دوو (۲) ذمي شاهدانو شهادت به قاضي اوري او كه څرنگه يعني پر مذهب د شېخينو رحمة الله عليه.

**ځواب**:- كه اختلاف د مهر په مقدار كي وو يعني ښځي د ډېر ولور دعوه كوله او مېړه منكر وو نو د دې دوو شاهدانو شاهدي به قاضي نه اوري، ولي چي كافر لره پر مسلمان شاهدي نسته، كما تقرر فى الفقه او كه چېري ماينه د ملك متعې يعني د نكاح څخه منكره وه نو قاضي دي د دغو شاهدانو شاهدي قبوله كړي ولي چي دا شهادت د كافر پر كافر دي.

قال القدوری رحمة الله عليه " ولا يحل للرجل ان يتزوج بامة ولا بجداته من قبل الرجال والنساء" او نه ده روا سړي لره چي نكاح وكړي د مور سره خپل او نه د اناگانو سره كه اناگاني د نر د خوا وي يعنی د پلار د خوا لكه د پلار مور وان سفلت، او كه د ښځي د خواه وي يعني د مور د خوا لكه د مور مور وان سفلت.

قال" ولا ببنة ولا ببنة ولده وان سفلت" او نكاح به نه كوي د لور سره، او د لور د اولادو سره د ده كه څه هم كښته وي.

**پوه سه**:- چي ولد نر او ښځي دواړو ته وايي نو سړي ته د لمسۍ نكاح كه د زوي د خوا وي او كه د لور د خوا وي نه ده روا، لقوله تعالى حرمت عليكم امهاتكم وبناتكم الآية"

**سوال**:- امهات خو په حقيقت كي مور ته وايي او انا ته مور مجازا ويل كيږي نو په آيت كي مور او انا دواړه څرنګه مراد كيداى سي چي په اُصول الفقه كي وايي چي جمع د حقيقت او مجاز ناروا ده، او دغه رنګه بنت خو حقيقة لور ته وايي او لمسۍ ته لور ويل مجاز دي نو په لفظ كه د بنات خو هم جمع د حقيقت او مجاز راغله؟

**ځواب**:- مراد په آيت كي د امهاتو څخه مطلق اصول دي چي مور او انا دواړو ته شامل دي او مراد د بناتو مطلق فروع دي چي لور او لمسۍ دواړو ته شامل دي او ودې ته عموم مجاز وايي، كذا فى رد المحتار والعينى والرفر، والتبيين، وغير من كتب اصول الفقه.

قال القدورى رحمه الله " ولا باخته ولا ببنات اخته واخيه" او نه ده روا نكاح د خور سره كه د دواړو خواو يې خور وي او كه يې فقط د پلار د خوا خور وي، او كه يې فقط د مور د خوا خور وي، لقوله تعالى واخواتكم، او نه ده روا نكاح د لونړو سره د خور چي خور زېګاني يې بولي، او نه د لونړو سره د ورور چي ورېرېګاني يې بولي، لقوله تعالى وبنات الاخ وبنات الاخت.

قال" ولا بعمته ولا بخالته" او نه د روا نكاح د عمه سره چي د پلار خور يې ده يعني د هر طرف څخه چي وي، او نه د خاله نكاح روا ده چي

د مور خور یې وي د ده د هرطرفه څخه چې وي،قال فی الجوهرة وكذالك عمة الاب والجد وخالة الاب والجد حرامة" يعنی د پلار دعمه سره او يا د نيكه د عمه او د خاله سره د پلار يا نيكه نكاح حرام ده.

**پوښته**:- چې په تحريم کې د نکاح د مذکوراتو ښځو حکمت الهی دادي چې سړي بايد اهانت او سپکاوي د خپلو اقرباؤو وه نه کړي. او ماينه چونکه د سړي لاندي په وخت کې د جماع پريوځي او دا غايت استخفاف دي كمالا يخفى، نو بايد اقارب داستخفاف څخه وساتل سي.

قال قدوری رحمة الله عليه " ولا بام امرئة التی دخل بابنتها اولم يدخل" او نه ده روا نكاح د مور د ماينې چې خوابنې يې بولي، هغه خوابنې چې د خول يعني جماعي يې د لور سره د دې كړي وي او كه يې نه وي كړي، لقوله تعالى وامهات نسائكم" او د دخول قيد خداى ﷻ نه دي ذكر كړي نو معلومه داده چې دخول په لور يې شرط نه دي بلكه په مجرد عقد نكاح د لور سره د خوابنې نكاح حرامه ده كه څه هم لور يې قبل الدخول طلاقه كړي يا مړه سي لكن هلته نكاح د خوابنې حرامه ده چې د لور سره يې صحيح نكاح كړې وي، او كه يې د لور نكاح فاسده وه بيا د خوابنې نكاح روا ده مګر كه يې دخول په لور نه وو كړي، كذا فی الجوهره.

قال القدوری رحمة الله عليه " ولابابنة امرئته التی دخل بها سواء كانت فی حجره او فی حجر غيره" او نه دي نكاح كوي د لور سره د ماينې يعني چې د بله مېړه څخه يې وي هغه ماينه چې دې سړي د هغې ماينې سره جماع كړې وي خواه دغه د ماينې لور د ده په تربيه او كور كې وي او كه د بل چا په تربيه كې وي.

**پوه سه**:- چي په حکم کي د جماعو دي مسحه کول په شهوة سره، او يا په شهوة مچه ځندي اخستل حتی که يوه ښځه د سړي په نکاح کي نه وي لکن ده په شهوة سره مسح کړه د هغې ښځي لور د دغه سړي په نکاح ناروا ده، كذا قال المولى عبدالغفور رحمه الله في حواشي الهدايه.

**پوه سه**:- چي د ماينې لور چي د بله ميړه څخه وي په عربي ربيبه ورته وايي نو چونکه په قرآن مبارك کي داسي راغلی، وربائبكم التى فى حجوركم" نو مصنف رحمه الله په دغه عبارت کي سواء كانت اه، اشاره ودې ته وکړه چي قيد د فى حجوركم په قرآن کي اتفاقي دي او مبنى پر عادت دي شرط د حرمت د نکاح د ربيبې نه دي حاصل دا که يو سړي کونډه ښځه په نکاح کړه چي هغې د بله ميړه څخه لور درلوده نودې سړي د مخه تر جماعو د دغي کونډي سره او تر مسح بالشهوة هم د مخه هغه کونډه طلاق کړه نو د لور نکاح يې ورته روا ده.

**تنبيه**:- د بعض خلګو خوابنې ځوانه او ښائسته وي مثلا، نو دې سړي ته ډېر احتياط په کار دي چي بې کالي د خوابنې لاس مچ نه کړي نه بايده چي شهوت مابين ته رانه سي او ماينه ورته حرامه نسي، او دغه رنګه پر خوابنې لازمه ده چي زوم خپل لکه د ښځو چي دا عادت دي پر تندي يا مخ مچ نه کړي ولي که د دې د خوا څخه دا کار په شهوت وسي لور يې ورته حرامه وه ګرځول لکن د زمانې خوابنياني دا فعل کوي دوي وايي چي زوم لکه زوي داسي دي، او سره د هغه د دې زړه د شهوت څخه ډك وي په دغه کار کي نادره داده چي خوابنې ګاهي يعني بعض خوابنياني په بهانه د دې چي لور مي نابالغه ده نو لور او زوم په يوه ځای کي سره پرې باسي، او دا په خپله د زوم وشاته پرېوزي او زوم يې پر

لور لاس واچوي او غير په غير سره پرېوزي او خوابښې د زوم وشاه ته پر زوم لاس واچه وي.

**پوښتنه**:- تاته دغه معامله څرنګه معلومه سوې ده؟

**ځواب**:- زما څخه په دغه باره کي زومانو پوښتني کړي دي چي ورته کار خو به ناروا نه وي.

قال القدوري رحمة الله عليه " ولا بامرئة ابيه ولا اجداده ولا بامرئة ابنه ولا بني اولاده" او نه ده روا سړي لره نکاح د پلار د مايني چي دلته مراد ځندي مېره ده، قال الله تعالى ولاتنكحوا مانكح آبائكم الآيه" او دغه رنګه نه ده روا نکاح د ماينو سره د نيکه ګانو، يعني که د پلار د خوا نيکه وي او که د مور د خوا نيکه وي، او دغه رنګه نه ده روا نکاح د مايني سره د زوي چي مړور يې بولي يعني که څه هم زوي يې طلاقه کړي يا مړ سي، او دغه رنګه نه ده روا نکاح د ماينو د زامنو د اولاد د سړي چي لمسيان يې بولي که د زوي د خوا لمسيان وي او که د لور د خوا لمسيان وي.

**پوښتنه**:- چي اجداد په آباء کي داخل دي چي په قرآن مبارك په تېر سوي آيت کي ذکر سوه، او د لمسيانو د ماينو د نکاح حرمت په دې آيت کي داخل دي، وحلائل ابنائكم الآيه" حليله مايني ته وايي.

**احتياط**:- که څه هم خسر د مړور محرم شرعي دي لکن بيا هم خسر دي ډېر احتياط کوي چي کالي دي د مړور نه مسح کوي، او نه دي د مړور سره يواځي طويل مجلس کوي تاچي شيطان يې په زړه کي وسوسه د زنا د مړور سره ورته پيدا نه کي، چنانچه په بعض ځايو کي د خسر او مړور تر مابين زنا طوعا يا کرها واقع سوې ده.

قال القدوری رحمه الله " ولا بامه من الرضاعة ولا باخته من الرضاعة" او نه ده روا نکاح د هغه ښځي سره چي ده ته يې تی ورکړي وي چي دې ښځي ته رضعي مور وايي، او نه ده روا نکاح د رضعي خور سر چي هلك د يوې ښځي تی وره وي د هغې ښځي ټولي لوڼي د دغه هلك رضعي خوندي دي نکاح يې نه ده سره روا، اويا هلك او انجلۍ د بلي ښځي تی سره وره وي هم سره رضعي ورور او خور دي نکاح يې نه ده سره روا، قال الله تعالٰی وامهاتکم التی ارضعنکم واخواتکم من الرضاعة: الایته

**مسئله**:- لږ رضاع او ډېره رضاع په حرمت کي د نکاح سره برابر دي د امام اعظم ابو حنیفه رحمه الله، او د امام شافعی رحمه الله او د اصحاب الظواهر په نېز پنځه (۵) واره رضاع شرط د حرمت ده.

**فائده**:- رضاع چي سبب د حرمت د نکاح ده هغه رضاع ده چي په مده کي د تی رودلو د کوچني واقع سي چي دوه (۲) کاله یا دوه نیم دي علی اختلاف مذهب ابی حنیفه وصاحبیه رحمه الله، او وروسته تر هغه که یو هلك یا لوي سړي د ښځي شیدې وره وي نکاح يې نه ده سره حرامه بالاجماع.

قال" ولا یجمع بین الاختین بنکاح" او نه دي جمعه کوي دوې خوندي، هر رنګه خوندي چي وي په نکاح کي که څه هم رضعي وي.

**مسئله**:- که سړي مایینه خپله په طلاق رجعي یا بائن سره طلاقه کړه تر هغو چي د دغي ښځي عده نه وي تېره سوې وده ته د خور سره د هغې ښځی نکاح ناروا ده، نو ځکه خلګ امتحانا پوښتنه کوي چي کوم دي هغه ځای چي نر لره عده وي.

قال" ولا بملك يمين وطيا" او نه دي جمع کوي دوې (۲) خوندي په ملك يمين سره لکن وطي د دواړو سره کوي، او که وطي نه ورسره کوي نو جمع د دوو (۲) خوندو په مينځي توب سره روا ده، حتي که چېري د يوې خور سره وطي وکړي د هغې بلي خور سره وطي ورته ناروا دي، کذا فی کتب الفقه، قال الله تعالی، وان تجمعوا بين الاختين الآيه دا آيت عام دي په وطي مقيد له دی.

قال" ولايجمع بين المرئة وعمتها او خالتها ولا ابنت اختها ولابنت اخيها" او نه دي جمعه کوي سړی په نکاح کي په مابين کي د ښځی او د هغې د عمه يعني چي د پلار خور يې وي، او د خاله سره د هغې دي هم نه جمعه کوي، او نه دي ښځه جمعه کوي په نکاح کي د لور سره د خور د هغې، او يا د لور سره د ورور د هغې، لقوله عليه الصلوة والسلام، لاتنکح المرئة علی عمتها ولا علی خالتها ولا علی بنت اختها ولا ابنة اختها.

**سوال**:- د دغو ښځو د نکاح حرمت خو په قرآن کي نه دي راغلي او خدای ﷻ په قرآن کريم کي پسله بيانه د محرماتو داسي ويلي دي، واحل لکم ما وراء ذالک الآيه" نو دغه مذکوره ښځي خو په ما وراء کي داخلي دي نو ولي نکاح ناروا ده په سبب د حديث مذکور؟

**جواب**:- صاحب هدايه رحمه الله وايي دا حديث مشهور دي او په حديث مشهور سره زيادت پر کتاب الله روا دي کما تقرر فی اصول الفقه.

قال القدوری رحمه الله " ولا يجمع بين امرئتين لو کانت کل واحدة منهما رجلا لم يجز له ان يتزوج بالاخری"

او جمع دي سړی نه کوي په مابين کي د دوو (۲) ښځو که هره يوه نر فرض سي نکاح د هغې بلي ورته ناروا وي، صاحب جوهره وايي که يې تحريم د نکاح په سبب د نسب وي او که به جهت د رضاع وي وهذا الاصل کلی يتفرع عليه مسائل کثيرة.

**پوهنه**:- چي په نېز د امام اعظم رحمه الله او صاحبينو رحمهما الله حرمت د نکاح هر طرف چي نر فرض کي شرط دي او که يو طرف چي نر فرض کړي د هغه بل طرف نکاح خو ورته حرامه وي او که هغه بل طرف نر فرض کړي د بل طرف ښځي نکاح ورته حلالوي نو د دغو دوو (۲) ښځو جمع کول روا ده، کما سيئاتی فی المسئلة الاتية.

او په نېز د امام زفر رحمه الله او حسن بصري رحمه الله او د ابن ابی ليلی رحمه الله د يو طرف څخه حرمت د نکاح چي نر يې فرض کړي کافی ده په حرمت کي د جمع کولو د دغو دوو (۲) ښځو کما فی المسئلة الاتية عنقريب، مثلا عمه او وريره يا خاله او خورزه جمع کول په نکاح کي ناروا دي بالاتفاق ولي که عمه يا خاله نر فرض کي د ورور د لور او يا د خور د لور نکاح ورته ناروا ده، او که وريره يا خورزه نر فرض کړي د پلار د خور او يا د مور د خور نکاح هم ورته ناروا ده نو جمع کول يې په نکاح کي هم ناروا دي.

قال" **ولاباس بان يجمع بين امرئة وابنة زوج لها کان من قبل**" او باك نسته چي يو سړی جمع کړي په نکاح کي يوه ښځه او د هغې ښځي د مېړه لور چي د مخه د دې مېړه وو يعني د مېړه لور يې د بلي ماينې څخه وه ولي په دې ځای کي که ښځه نر فرض کي نو د دې د مېړه لور چي د بلي ماينې څخه وه د دې هيڅ قريبه نه ده نو نکاح يې

ورته روا ده، البته كه دغه بنت الزوج نر فرض كي د پلار ماينه نه ده ورته روا نو په نېز د ائمه ثلثه وو رحمهم الله زمونږ جمع د دغو دوو (۲) ښځو په نكاح كي روا ده خلافا للزفر رحمه الله وغيره.

**درويش وايي**:- چي په عيني شرح الكنز او فتح المعين كي وايي چي دا خبره په صحيح روايت ثابته ده چي عبدالله بن جعفر رحمه الله جمعه كړې په نكاح كي لور د حضرت علي رضي الله عنه او زوجه د علي رضي الله عنه وكذا جمع ابن عباس رضي الله عنه بين زوجة رجل وابنته من غيرها.

قال القدوری رحمه الله " ومن زنى بامرئة حرمت عليه امها وابنتها" او كه چا زنا وكړه د يوې ښځي سره حرامه ده پر دغه سړي مور د هغې ښځي او لور د هغې ښځي، او امام شافعي رحمه الله وايي چي په زنا سره تحريم د بلي ښځي تعلق نه لري، او زمونږ په نېز كه د چا ماينه وي په نكاح سره، او دا سړی د هغې ماينې د مور سره او يا د لور سره زنا وكړل هغه منكوحه ماينه ورته حرامه ګرځي، او شافعي رحمه الله وايي چي په دغه نا سرد مور د ماينې او يا د لور د ماينې خپله ماينه نه ورته حرامېږي د دواړو مذهبو دلائل او جوابونه په شروحو كي او د اصول الفقه او د فتوى وو په كتابو كي وګوره.

قال القدوری رحمه الله " واذا طلق الرجل امرئته طلاقا بائنا لم يجزيه ان يتزوج باختها حتى تنقضى عدتها" او كه چېري طلاقه كړه يو سړي خپله ماينه په طلاق بائن سره نو ده ته نه ده روا چي د ماينې خور په نكاح كوي تر هغو چي د ماينې عده يې نه وي تېره سوې، ولي په طلاق بائن سره كه څه هم نكاح قطعه سوه لكن حكم د نكاح چي عده ده چون باقي ده نو ګويا نكاح باقي ده نو كه دی د ماينې خور په نكاح

کړي د هغې په عده کي جمعه د اختين لازميږي په نکاح کي، ومن هذا علمت ان الحکم فی الطلاق الرجعی کذالک بالطريق الاولی.

قال" ولا يجوز للمولی ان يتزوج امته ولاالمرئة عبدها" او نه ده روا بادار لره چي خپله مينځه په نکاح کړي، او نه ښځي ته روا ده نکاح د خپل مريي سره، ولي نر او ښځه چي مېړه او مايينه وي هر يو پر هغه بل باندي حقوق لري او مريي يا مينځه پر بادار هيڅ حق نه لري، لان المملوکية تنا فی المالکية هکذا فی الهدايه" البته که د سړی د خپلي مينځي نکاح خو ښه وي نو هغه دي اول ازاده کړي او بيا دي نکاح ورسره وکړي، او داغه رنګه ښځه دي خپل مريي اول ازاد کړي او بيا دي نکاح ورسره وکړي، در.

قال" ويجوز تزويج الکتابيات ولايجوز تزويج المجوسيات ولاالوثنيات" او روا ده مسلمان لره چي په نکاح کړي کتابيه ښځه يعني يهودي يا نصراني ښځه لکن د احنافو رحمهم الله په نيز که دغه کتابيه حره وي او که د بل سړی مينځه وي، او امام شافعي رحمه الله وايي چي د کتابيه مينځانو نکاح نه ده روا او د حره نکاح يې روا ده، او په ملك يمين سره يعني چي کتابيه د سړي مينځه وي جماع يې ورته روا دي بالاتفاق او نه ده روا نکاح د مجوسيانو ښځو، مجوس هغه طائفه ده چي عبادت د اور کوي او نکاح د محارمو ښځو روا بولی کذا فی الجوهره.

**درويش وايي**:- چي هغه دليل چي په شرح الاقطع کي راغلي دي په دې عبارت سره" لانهم لاکتاب لهم فدخلوا تحت قوله تعالی ولاتنکحوا المشرکين" د مدعی سره نه دي برابر ولي چي دغه مذکوره آيت خو په باره کي د دې دي چي مسلماناني ښځي دي وه مشرکيانو ته په نکاح نه

ورکوي او مدعی په متن کي داده چي مسلمانان دي مجوسياني ښځي نه په نکاح کوي، او بله خبره داده چي دې ته ضرورت دي لانه لاكتاب لهم آه، ولي چي مجوسيان خو حقيقة مشرکان دي لما تواتر من مذهبهم انهم يعبدون النار" مګر صاحب شرح الاقطع دا خيال کوي چي مشرك هغه دي چي د بت عبادت کوي لكن د غسي نه ده ولي چي مشرك هغه دي چې خدای ﷻ لره شريك وايي يا په ذات کي يا په صفاتو کي او يا په عبادت کي نو ثنويه او وثنيه او مجوسيه ټوله مشرکان دي، فافهم،

او دغه رنګه نه ده روا نکاح د بت پرستانو ښځو چي وثنيه يې بولي او په جامع المضمرات کي وايي چي وثن هغه شی دي چي جسه او بدن لري که د لرګی وي او که د ډبري وي او که د سپينو زرو وي او که د جوهري شي جوړ وي لکه عقيق فيروزه وغيره، والجمع اوثان قال الله تبارک وتعالى ولاتنكحوا المشركات حتى يؤمن.

**پوهه**:- چي اهل مکه او شاوخوا عرب د مخه تر اسلام ټوله بت فرستان وه وثنيه او مجوسيه په دوي کي نه وه.

قال القدوری رحمة الله عليه "ويجوز تزويج الصابيات ان كانوا يؤمنون بنبی ويقرون بكتاب وان كانوا يعبدون الكواكب ولا كتاب لهم لم يجز مناكحتهم" او روا دي په نکاح کول د صابياتو ښځو که دوي ايمان پر يوه نبي درلو دي او اقرار يې په يوه کتاب هم کاوه، او که دوي عبادت د سترو کاوه او کوم کتاب الهی يې نه درلودي نو د دوي سره نکاح جواز نه لري ولي چي دوي مشرکان دي.

**پوهه**:- چي په نيز-د امام اعظم رحمة الله عليه نکاح د صابياتو روا ده او په نيز د صاحبينو رحمة الله عليه نکاح د صابياتو نه ده روا.

**درويش وايي**:- چي دا اختلاف بناء دي پر دې چي مذهب د صابيىنو څه دي لكل افتى بما تقرر عنده من مذهبهم" نو ياران رحمهم الله وايي چي دوي مشركين دي ولي چي دوي عبادت د ستورو كوي، او بعض وايي چي دوي د ملكو عبادت كوي نو د مشركي ښځي نكاح خو اتفاقا ناروا ده، او امام اعظم رحمه الله وايي چي د دوي كتاب زبور دي او پر داؤد عليه السلام ايمان لري البته دستورو يا د ملكو تعظيم كوي لكه مسلمانان چي د كعبې شريفې تعظيم كوي نو حاصل دادي چي دا اختلاف په مابين كي د امام اعظم رحمه الله او د يارانو رحمهم الله بنا دي پر اشتباه د مذهب ده دوی،

او بعض فقهاؤ رحمهم الله د دواړو مذهبو اصلاح او حقيقت داسي بيان كړي دي چي صابئين دوې (٢) ډلي دي يوه حققة د ستورو يا د ملكو عبادت كوي او كوم كتاب الهی ته عقيده نه لري او نه د كوم نبي په نبوت سره اقرار كوي، نو يارانو رحمهم الله ته دغه ډله په اثبات رسېدلې ده، او شك نسته داغسي ډله خو مشركان دي نكاح نه ده روا ورسره، او بله ډله د دوي زبور كتاب خپل بولي او داؤد عليه السلام ته د نبوت عقيده لري لكن فقط د ستورو يا د ملكو تعظيم كوي، امام اعظم رحمه الله ته دغه ډله په اثبات رسېدلې ده نو دوئ خو په حقيقت كي اهل كتاب دي او نكاح ورسره روا ده نو د دې سببه قدوری رحمه الله د دوي په نكاح او په مذهب كي ترديد وكړي، او اختلاف ته د امام اعظم رحمه الله او د يارانو رحمهم الله ضمنا اشاره وكړه فلله دره مادق نظره، در.

قال" ويجوز للمحرم والمحرمة ان تزوج فى حالة الاحرام" او روا ده محرم نر لره او محرمي ښځي لره يعني چي په حال كي د احرام د حج وي مثلا چي عقد د نكاح وكړي په حال كي د احرام، او امام

شافعي رحمه الله وايي چي محرم او محرمه عقد د نکاح په حال کي د احرام سي کولای دلیل د ده دادی، قال علیه الصلوٰة والسلام المحرم لاینکح ولاینکح" او موږ وایو چي په صحیح حدیث کي راغلي دي چي علیه الصلوة والسلام نکاح وکړه د میمونه رضي الله عنها سره په حال کي د احرام، او حدیث د امام شافعي رحمه الله موږ پر وطي حمل کړي، کذا فی الهدایه.

قال" وینعقد نکاح المرئة الحرة البالغة العاقلة برضائها وان لم یعقد علیها ولی عند ابی حنیفة رحمه الله بکرا کانت اوثیبا و قالالا ینعقد الاباذن ولی" او غوټه کېږي نکاح یعني روا ده د ښځي نکاح چي حره وي یعني د مینځي نکاح بېله اجازې د مولانه ده روا چي مرانی ته رسېدلې وي یعني چي بالغه وي په خپله نکاح نه سي کولای او عاقله وي د لیونۍ نکاح هم د دې د خوا څخه نه سي کیدلای په رضاء د دې یعني جبرا یې عقد نه دي صحیح که څه هم عقد نکاح د دې د ولي د خوا نه وي په نېز د امام اعظم رحمه الله که دغه ښځه پېغله او که کونډه وي، او یاران رحمه الله وایي چي نکاح د ښځي نه غوټه کیږي بېله ولي یعني په اجازه د ولي.

**پوه سه**:- چي په هدایه کي وایي چي په ظاهر الروایه کي امام ابو یوسف رحمه الله د امام اعظم رحمه الله سره موافق دي، او دا مذکور په متن کي یو روایت دي د ابو یوسف رحمه الله څخه او امام مالك رحمه الله او امام شافعي رحمه الله وایي چي په خبرو د ښځو نکاح اصلا نه ده روا، والدلائل والجوابات للفریقین فی الشروح المطوله وکتب الفتاوی.

قال القدوری رحمه الله " ولا یجوز للولی اجبار البکر البالغة العاقلة" او نه دي روا ولي لره یعني که پلار او که نیکه وي یا بل څوك

مجبوره کول د پېغلي ښځي يعني د کونډې دا خو په طريقه اولى روا نه ده ولي چي په روايت كي د ابن عمر ﷺ او جابر ﷺ داسي راغلي دي چي نبى عليه الصلوة والسلام رد كړه نكاح د يوې ښځي دليل دى پر امام شافعي رحمه الله باندي چي دى وايي، اكراه او اجبار د پلار او نيكه روا دي.

قال" واذا استاذنها الولى فسكتت او ضحكت او بكت بغير صوت فذالک اذن منها" او كه اجازه د نكاح وغښتل د باكرې بالغې ځخه ولي نو دا پټه خوله سوه يعني نه وو، او نه يې يا وويله، او يا يې وخندل او يا يې وژړله بېله آوازه يعني مړې اوښكي يې راتوي كړې او بغاري يې نه ووهلى نو داغه د دې اجازه ده.

وان ابت لم يزوجها" او كه دې صراحة منع وكړه نو ولي دې په نكاح نه وركوي. په حديث مبارك كي راغلي دي چي عليه الصلوٰة والسلام وويله البكر تستاشر" د باكرې ښځي سره دي مشوره د نكاح كېږي، فقيل انها تستحى" نو چا وويله چي پېغله خو شرمېږي يعني چي دابه وايي چي ښه دي، فقال اذنها صماتها وتسكوتها اقرارها" نو عليه الصلوٰة والسلام وويله چي د دې اجازه كول پټه خوله كيدل دي، او سكوت د دې اقرار دي په راضي والى د نكاح، په دې حديث مبارك سره هغه خبره رد سوه چي سكوت ځرنګه دليل د رضا كيداى سي ولي چي ساكت ګاهي راضي وي او ګاهي منكر وي نو په شك سره ځرنګه رضا ثابتېږي.

**درويش وايي**:- چي علاوه پر حديث عقلا هم سكوت د باكرې په باره كي د نكاح دليل د رضا دي ولي چي د نعم په ويلو كي كه څه هم دا

شرمېږي د لا په ويلو کي خوشرم نسته نو چي راضي نه واى نو يې لا ولي نه وايي، او خندا خو تر سکوت لا بالا دليل دي د رضا.

**مسئله**:- په ژړا کي امام محمد رحمة الله عليه وايي چي دليل د رضا نه ده، او امام ابو يوسف رحمة الله عليه وايي چي ژړا د دې د جهت څخه د سخت حيا د دې دي نو لکه سکوت ده.

**فائده**:- سکوت ياضحك چي دليل د رضا ګنړل کيږي هلته دي چي په نکاح ورکونکي يې د ښځي ولي لکه پلار يا نيکه وغيرهما، او که نکاح يې غير د ولي څخه وو نو صراحة قول د دې غواړي په راضي والي سره ولي چي د غير ولي نکاح خو د دې د خوا په وکالت سره کيږي او وکالت خو صريح نطق غواړي، اق، کما لا يخفی.

قال القدوری رحمة الله عليه " واذا استاذن الثيب فلا بد من رضائها بالقول" او که ولي اجازه د نکاح وغوښته د کونډې څخه نو پس چاره نسته د رضاء څخه د دې په خبرو سره يعني د دې سکوت يا خندا و غيره د دليل د رضاء د دې نه دي ولي چي کونډه په سبب د نکاح سابق ترشرم په ويلو سره تېره سوې ده نو چي صراحة ښه دي نه ووايي اجازه نه ده، او په حديث شريف کي هم راغلی دي، والثيب تعرف عن نفسها" او کونډه به اظهار کوي يعني په اقرار سره د ځان د خوا.

قـال رحمة الله عليه " واذا زالـت بكارتهـا بوثـبة: يعنـي د لوړځايـه پـه راغورځېدو سره، او حيض" او يا په حيض يعني په ډېروالي د وينو د حيض د دي، او جراحة" يعني په سبب د ټپ چي په رحم کي د دې.

او تعنيس" يعني په ډېره زمانه تېرېدو سره.

فهی فی حکم الابکار" یعني سکوت وغیره یې دلیل د رضا دي صریح قول شرط نه دي.

**پوه سه**:- چي بکارت یوه پرده ده چي په مذکوره آفات سره هم د مابین څخه ځي یعني ځیریږي لکه په وطي سره چي د ټولو پیغلانو داده مابین څخه ځي، نو دغه ښځه چي په مذکوره آفات یې بکارت د مابن څخه تللې وي، نو حیا د دې خو د مابین څخه نه ده تللې نو ځکه سکوت وغېره یې دلیل د رضا دي، او امام شافعي رحمة الله علیه وایي چي باکره هغه ښځي ته وایي چي عذره یعني پرده یې پرځای وي نو د دغو مذکوره ښځو عذره خو زائل سوې ده نو دوي ثیبات دي، موږ وایو چي باکره په دې سبب باکره بولي چي وطي کوونکي د دې اول وطي کوونکي وي او دا مذکوره ښځي خو هم داغسي دي ولي چا تر اوسه وطی نه دي وړسره کړي نو چي د دوي سره وطي کوي هغه سړی اول واطی د دوی دي

قال القدوری رحمة الله علیه " وان زالت بکارتها بالزنا فهی کذالک عند ابی حنیفة رحمهم الله وقالا رحمها الله هی فی حکم الثیب" او که زائله سوې وه عذره او پرده د دې په زنا نو هغه ښځه هم په حکم کي د باکره ده نو په نېز د امام اعظم رحمة الله علیه یعني سکوت وغیره یې رضا ده، او یاران رحمة الله علیه وایي چي دغه په حکم د کونډیانو ده یعني صراحة اظهار د رضا یې شرط د نکاح د ولي دي.

**پوه سه**:- چي امام شافعي رحمة الله علیه په نوي قول کي ملګري د یارانو رحمة الله علیه دي دوي وایي چي د باکره هغه معنا چي ذکر سوه په دغه زانیه کي نسته ولي چي د دې وطي کوونکي په نکاح سره اول وطي کوونکي نه دي ولي

چي اول وطي کوونکي د دې خو زاني وو، امام اعظم رحمة الله عليه وايي چي دغه زنا د دې ښځي يو پټ کار وو، د خلکو په عقيده خو دا باکره ده نو خلک پر دې عيب د بې حيايي وايي که چېري دا نطق په رضا د نکاح وکي او دا هم وخلکو ته دا ښکاره کوي چي زه په نطق شرمېږم ولي خو زه باکره يم نو که چېري تصريح د دې شرط سي په نکاح کي د ولي نو د دې ښځي نکاح به بالکل معطله پاته سي تر آبده پوري نو بايد د دغي زانيه ښځي په سکوت وغيره سره اکتفاء وکړه سي، او هغه چي يارنو رحمهم الله وويل چي د دې ښځي وطي کوونکي خو اول سړی نه دي د هغه ځواب دا دي چي د خلکو په عقيده خو د دې وطي کوونکي د نکاح اول واطي دي.

**فائده**:- که د ښځي په زنا خلک خبر سوه او زنا يې شهرت ته ورسېده بيا په اتفاق د مذاهبو د دې حکم د ثيباتو دي او سکوت يې رضا نه ګڼل کيږي بلکه صراحة وينا شرط ده، وهذ كله فى العينى ومستخص ومجمع الانهر" ولي چي دغه زانيه پس له شهرته د زنا د دې په تصريح بالنکاح سره نه شرميږي لکه کونډه کمالا يخفى.

قال " **واذا قال الزوج للبكر بلغك النكاح فسكت وقالت بل رددت فالقول قولها**" يعني خبره د نکاح وه ولي چي دا منکر ده د لزوم څخه د عقد پر دې باندي او مېړه يې مدعى دي او قول په دعا کي خو منکر لره دي، او امام زفر رحمة الله عليه وايي قول د مېړه دي.

**ولا يمين عليها**" يعني که مېړه پر سکوت د دې شاهدان نه کړه تېر نو ښځي ته دي قسم نه ورکوي، او دا هم مذهب دي د ابو حنيفه رحمة الله عليه او

یاران رحمہ اللہ وايي قسم دي ورکوي که ښځي قسم نه اخستي نو قاضي دي پردې حکم وکړي په نه کول سره لکه په نورو دعوو وکي.

قال" ولايستحلف فى النكاح عند ابى حنيفة رحمہ اللہ وقالا يستحلف فيه" او طلب د قسم نسته په نكاح كي په نېز د امام اعظم رحمہ اللہ او یاران رحمہ اللہ وايي چي په نكاح كي هم طلب د قسم سته.

**پوهه**:- چي په اته (۸) شيانو کي قسم نسته چي يو د هغو څخه نكاح ده په نېز د امام اعظم رحمہ اللہ او په نېز د يارانو رحمہ اللہ په دغو اتو (۸) شيانو کي هم قسم سته، وتحقيق هذا الاختلاف والمسائل الثمانية سياتى فى كتاب الدعوى انشاء الله تعالى.

قال" وينعقد النكاح بلفظ النكاح والتزويج والتمليك والهبة والصدقة ولا ينعقد بلفظ الاجارة والاعارة و الاباحة" او غوټه کيږي نكاح په لفظ د نكاح لکه چي نر يا ښځه ووايي، نكحتك بكذا من المهر عند الشهود" او د تزويج په لفظ لکه چي نر يا ښځه ووايي په حضور كي د شاهدانو " تزوجت معك بكذا" او هغه بل طرف ووايي، قد قبلت" او د تمليك په لفظ" لكه چي ښځه ووايي په حضور كي د شاهدانو، قد ملكت نفسى لك بكذا" او نر ووايي قبلت، او په لفظ د هى لك چي ښځه ووايي قد وهبت نفسى لك بكذا من المهر" او نر ووايى قبلت او په لفظ د " صدقه لك، چي ښځه ووايي قد تصدقت نفسى عليك" او نر يې قبله کړي او نه غوټه کيږي په لفظ د اجارې او په لفظ د اعارې او په لفظ د اباحت يعني ښځه ووايي چي زه خپل ځان تاته په اجاره درکوم او يا په عاريت درکوم او يا ځان تاته مباح ګرځوم دليل د دغو مسئلو دادي چي چونکه نكاح خو د هميشه د پاره ده نو هر هغه

لفظ چي پر تمليك مؤبد دلالت کوي په هغه لفظ غوټه کيږي نو ځکه صاحب هدايه وايي چي په لفظ د بيع هم نکاح غوټه کيږي ولي چي په بيع کي توقيت نسته، او په اصل کي د اجارې او عاريت چونکه توقيت وو نو د مقتضى سره د عقد نکاح منافى دي نو ځکه يې مجاز د پاره د عقد نکاح نه دي روا ، او په اباحت کي خو بېخي تمليك نسته.

**پوه سه**:- چي لفظ د نکاح او لفظ د تزويج صريح دي په عقد کي د نکاح او هغه نور الفاظ مذکوره کناية او مجاز دي د عقد نکاح څخه دا ټوله مذهب دي د احنافو رحمه الله او امام شافعي رحمه الله وايي چي نکاح بېله لفظ د نکاح او تزويج نه غوټه کيږي، والدلائل فى الكتب المطوله وهذا حاصل ما فى الجوهرة والعين وفتح المعين ودر.

قال" ويجوز نكاح الصغير والصغيرة اذا زوجها الولى بكرا كانت الصغيرة او ثيبا" او روا ده نکاح د نر کوچني او د ښځي کوچني چي نکاح ور وکړي ولي د دوي، که پېغله انجلۍ وي او که کونډه وي يعني مېړه ورغلي وي، لقوله تعالى وانكحوا الايا ما منكم" او لايم بې مېړه ښځي ته وايي که لوي وي او که کوچني وي، او په صحيح حديث کي د بخاري راغلي دي چي عليه الصلوة والسلام په نکاح کړه عائشه رضي الله عنها او دا د شپږو (۶) کلو وه.

قال القدورى رحمه الله " والولى هو العصبة" او ولي د نکاح د ښځي عصبه د دې دي يعني په ترتيب سره معنا دا چي حق د نکاح اول نژدې عصبه لره دي لکه پلار او نيکه بيا د هغه څخه وروسته ورور لره حق د نکاح سته وروسته بيا اکا ، ثم وثم على ترتيب العصبات المذكور فى السراجى.

**پوه سه**:- چې په سراجي كي وايي چې مطلق عصبه هغه څوك دي چې د ده قريب مړ سي په ميراث كي ده ته هغه مال د مړي رسيږي چې د ذوى الفروض څخه پاته سي او كه ذوى الفروض وى بيا نو ټوله د مړي ميراث دى وړي، د دې خبري فهم هغه چاته چې سراجي يې نه وي زده كړې ډېر مشكل دي معذرت، درويش كه د عصباتو تفصيل كوي چې هغه د ذوى الفروض پر بيان موقوفه هم دي نو تخمينا نيمه سراجي به رانقل كوي او كه يې نقل هم كړى خداى ﷻ خبر دي چې مبتديانو ته به فائده وكړي او كه څرنګه لهذا په دغه اجمال سره يې كفايت وكړي.

قال" فان زوجها الاب اولجد فلاخيار لهما بعد البلوغ وان زوجهما غير الاب والجد فلكل واحد منهما الخيار" يعنى وروسته تر بلوغ، انشاء اقام على النكاح وان شاء فسخ" يعنى النكاح.

**پوه سه**:- چې مصنف رحمه الله د عصباتو تر مابين فرق بيانه وي نو وايي چې كه چيري صغير او صغيره ته نكاح پلار يا نيكه كړې وه نو بيا دوي لره خيار نسته وروسته تر بلوغ يعني نكاح پر لازمه ده د ناخوښي ځاى پكښي نسته، ولي د پلار او نيكه ولايت كامل دي او پوره شفقت هم لري نو د پلار يا نيكه نكاح داسي ده لكه چې صغير او صغيره يې په خپله وكړي بعد البلوغ جوهره، او كه صغير او صغيره ته نكاح غير د پلار او نيكه څخه بل چا وركړې وه لكه ورور اكا وغيره نو دوي لره پر يوه د صغير او صغيره خيار سته كه يې خوښه وي پر هغه نكاح د پريږدي او كه يې خوښه وي هغه نكاح دي فسخ كړى لكن فورا پس له مرور د زماني بيا فسخ نه سي كولاى، در.

**قال القدوری** رحمة الله عليه " ولا ولاية لعبد ولا لصغير ولا لمجنون ولا لكافر على مسلمة" او ولايت نسته د نكاح مريي لره يعني د باكرې ولي د يو چا مريي وي، او نه نا بالغه لره او نه ليوني لره دوي ولايت د نكاح نه سي كولاى ولي چي دا مذكوره كسان پر خپل ځان ولايت نه لري نو پر بل چا به يې څرنګه ولري، او نه ولايت لري كافر پر مسلمانه ښځه باندي يعني چي د ښځي پلار يا ورور مثلا كافر وي پر مسلمانه لور يا خور ولايت د نكاح نه لرى، لقوله تعالى كن يجعل الله للكافرين على المؤمنين سبيلا.

**وقال ابو حنيفة** رحمة الله عليه **يجوز لغير العصبات من الاقاربة التزويج**" يعني چي عصبات نه وي ولي چي سره د وجود د عصباتو خو غير عصباتو په اجماع ولايت د تزويج نسته.

**فائده**: قال صاحب الكنز رحمة الله عليه وان لم تكن عصبته.
مثل الاخت و الام و الخالته.

**پوه سه**: چي د امام اعظم رحمة الله عليه مذهب چي په متن كي راغلي دي په روايت د ابو يوسف رحمة الله عليه او محمد رحمة الله عليه د امام اعظم رحمة الله عليه څخه ثابت دي، او په روايت كي د حسن بن زياد رحمة الله عليه د امام اعظم رحمة الله عليه څخه داسی روايت راغلي دي چي تزويج د صغيرې غير عصبه نه سي كولاى، والى هذه الرواية ذهب ابو يوسف رحمة الله عليه و محمد رحمة الله عليه وهو مذهب الشافعي رحمة الله عليه ايضا" دليل د دغو دوو (۲) رواياتو په شرح كي د اقطع او عيني كي وګوره.

**فائده**:- علماء او فقهاء رحمه الله د احنافو رحمه الله وايي که صغيرې انجلۍ لره هيڅ ولي نه وي نو بادشاه يا نائب د هغه ولايت د تزويج کولای سي "لقوله عليه الصلوة والسلام السلطان ولی من لاولی له،ق،در،ع،

قال" ومن لاولی لها اذا زوجها مولاها الذی اعتقها جاز"
او هغه ښځه چي ولي هيڅ نه لري يعني د اقرباؤ نسبي څخه چي په نکاح يې ورکړي هغه بادار د دې چي دا يې ازاده کړې وي يعني چي دا مينځه د هغه وه او هغه ازاده کړې وي دا نکاح رواده، ولي چي په سراجي کي وايي چي آخير د عصباتو مولی العتاقه دي.

قال المصنف رحمه الله " و اذا غاب الولی الاقرب غيبة منقطعة جاز لمن ابعد منه ان يزوجها" او که چېري ولي د صغيرې انجلۍ چي اقرب ولي وو په داسي غيبت غائب وو چي خبر د ده قطعه وو، نو روا ده ولي ابعد لره تر هغه غائب چي دغه صغيره په نکاح چاته ورکړي.

**پوښتنه**:- څه ضرورت دي چي ولي ابعد د صغيرې نکاح کوي بلکه انتظار دي وکړي يا به ولي اقرب راسي او يا به انجلۍ بالغه سي او يا به خپله څوك وکيل کړي يا به خپله عقد نکاح وکړي.

**ځواب**:- چونکه نکاح په يو اوږده لار ده او هر وخت کفو د ښځي نه پيدا کيږي نو هم دا اوس چي کفوه پيدا سو نو د صغيرې د قائدې د پاره نه بايد انتظار د ولي اقرب وکړه سي او نه د انجلۍ د بلوغ ولي دا کفو د لاسه وزي په دغه دليل رديږی قول د امام زفر رحمه الله چي هغه وايي چي تر راتګ د ولي اقرب هيڅوك نکاح د صغيرې نه سي کولای او امام شافعی رحمه الله وايي چي سلطان دې په نکاح ورکړي.

والجـواب عـنه چـي پـه حديـث شـريف كـي خـو داسـي راغلـي دي چي "السلطان ولى من لا ولى له" او دا صغيره خو ولي لري.

قـال" والغيبـة المـنقطعة ان يكـون فـى بلـد لاتصـل الـيه القوافـل فـى السـنة الامـرة" او غيبت مـنقطعه هغه دي چي دغه ولي اقرب پـه داسـي ښار كـي وي چي قافلې و هغه ښار ته نه رسېږي مګر يو وار پـه كـال كي، په هدايه كي وايي چي دا مذهب مختاره د قدوري رحمه الله دي او بعض متاخرين وايي چي ولـي اقـرب پـه دغسـي ځاى كـي وي چي ادنـى مـدت د سـفر تـر هغـه ځايه پوري وي يعني درې (۳) ورځي او بعض فقهـاء رحمهم الله وايـي چـي ولـي اقـرب كـه دونـده لـيري وو چـي كـه د ده سـره مشـوره پـه بـاره كـي د نكاح د صغيرې كړه كېږي كفو د لاسه وزي نو هغه غيبت مـنقطعه دي، قـال صاحب الهدايه وهذا اقرب الى الفقه لانه لانظر فـى ابقـاء ولايـته" يعني په باقي والي كي د ولايت د ده شفقت پر صغيرې نسته لذهاب الكفو فافهم.

**فـائده**:- قـال صـاحب الكـنز رحمه الله وان لـم تكـن عصـبة فالولايـة لـلام ثـم للاخت لاب و ام ثم لاب ثـم لولـد لـلام" نـو ولايـت مورلره دي كه مور نه وه بيا ولايت خور لره دي چي د مور او پلار د خوا دواړو خور يي، او كه هغه نـه وه بـيا ولايت د پـلار دخـوا خـور لـره دي او كه هغه هم نه وه نو ولايت د مـور اولاد لـره يعنـي نـر او ښځـي يې په ولايت كي سره برابر دي، كما فى الـميراث او كـه هغـه نـه وه بـيا نـو ولايت ذوى الارحـام لره دي په دوي كي اول عمـه ګـانو لره دي او بـيا ماماګانو لره دي بيا خاله ګانو لره دي او بيا لونړو لـره د اكاګـانو دي، ثـم الاقـرب فالاقـرب يعنـي پـه ذوي الارحـام كـي

لکه په میراث کي، علی مابین فی السراجی، قال ثم للحاکم یعني قاضي یا هغه څوك چي قاضي د ده ولي وي.

**فائده**:- په نسخ کي د نکاح په خیار بلوغ سره یعني په غیر کي د اب او جد قضاء د قاضي شرط دي، هذا ما فی الکنز و شرح العینی وزاد علیه الفقیر ایضا. ۱۲

قال القدوری رحمة الله علیه " وله لکفایة فی النکاح معتبرة" او کفو والی یعني مثل والی د نر د ښځي سره چي دی په نکاح کي معتبر دي یعني د ښځي د پاره نه د نر د پاره ولي که یوه شریف النسب ښځه د یوه نر سره چي په نسب کي ببکاره وي نکاح وکړي نو خلګ وه قریبانو ته د ښځي پېغور ورکوي نو د دې سببه اقرباء د ښځي حق لري چي پر دغه نکاح اعتراض وکړي او په امر د قاضي خپله ښځه د هغه د نکاح څخه خلاصه کړي او دا پېغور د ځان څخه دفع کړي، کذا فی النهایه و در، او که یو شریف النسب نر یوه بې النسب ښځه په نکاح کړي خلګ و قریبانو ته د نر پېغور نه ورکوي ولي ښځه خو لکه فراش ده نو یو سړی که د غالیو د فرش طاقت هم لري لکن پر سترنجي کښېني او بېدېږي نو خلګ هیڅ حق د اعتراض نه لري، جوهره، ودر،

وقد جاء فی حدیث رواه جابر رضی الله عنه ان النبی صلی الله علیه وسلم قال لاتنکح النساء الا من الاکفاء، اقطع.

**پوه سه**:- که یو سړی شرف د نسب لري فقط او بله ښځه مثلا شرف د کمال علمي اوعملي لري هغه سره کفوه دي مثلا عربي جاهل چي شرف نسبي لري کفوه دي د عجمي عالم، او عالم فقه کفوه دي د غني جاهل، ولهذا اشتهر الحسب کفو النسب، کذا فی الجوهره.

فاذا تزوجت المرئة بغير كفو فلاولياء ان يفرقوا بينهما" نو كه چېري ښځه پر خپل سر نكاح وكړي دغير كفوه سره نو قريبان د ښځي دوي سره جلا كولاى سي يعني نكاح د دوي فسخ كولاى سي د پاره د دفع د پېغور دخلكو.

قال القدوری رحمة الله عليه " والاكفاء يعتبر فى النسب والدين" لقوله عليه السلام قريش بعضهم اكفاء بعض" په ديانت او تقوىٰ كي وهذا قول ابى حنيفة رحمة الله عليه و ابى يوسف رحمة الله عليه وهو الصحيح" ولي چي ديـنداري او تقوىٰ د لوړو شيانو څخه د فخر ده، او ښځي ته او اقرباوو ته د ښځي خلګ پېغور وركوي بالاتر هغه چي د نسب په كښته والي سره پېغور وركوي،

او امام محمد رحمة الله عليه وايي چي ديـنداري او تقوىٰ د كار څخه د اخرت ده، نواحكام د دنيا نه پر بنا كيږي مګر كه داسي فاسق چي بازار ته به ووتى كشنيانو په سات په تېراوه او دى به نشه وو په شرابو وغيره نو بيا اعتبار لري عند محمد ايضا كذا فى الهدايه.

والمال وهو ان يكون مالكا للمهر والنفقة" او كفائت فى المال هم غواړي او اكفاء د مال داده چي نر به مالك وي د ولور او د نفقې د ښځي.

**پښوه سه**:- چي مراد د ولور څخه هغه قدر مال دي چي په عرف كي په دسمال كي خلګ وركوي چي مهر معجل يې بولي او مهر موٴجل هغه ولور دي چي په وخت كي د ارادې د واده يې وركوي، د مهر قدرت په دې شرط چي هم ولور بدل د بضع د ښځي دي اختلف الفقهاء فى النفقه

بعضي وايي چي د هري ورځي پر نفقه به قادر وي، او بعضي وايي چي په وقت د عقد به قادر وي پر نفقې د يوې مياشتي، او بعضي وايي چي پر نفقې د يوه کال به قادر وي په وقت کي د عقد.

**فائده**:- کالي د ښځي په حسب د عرف او ضروريات د کور يعني د اوارېدو شی د پرېوتو شی د ېڅک او داسي نور هم په نفقه کي داخل دي يعني د هغو قدرت هم اکفاء کي معتبر دي.

**مسئله**:- که زوجه کشنۍ وه چي طاقت د جماع يې نه درلودي بيا نو قدرت د نفقي اعتبار نه لري، کذا في ذو مجمع، در.

قال" وتعتبر في الصنائع" او معتبر دی په اکفاء کي صنعت د مېړه يعني د مېړه صنعت او کسب به تر صنعت او کسب د خاندان د ښځي کم نه وي په اظهر روايت کي د يارانو رحمهم الله،

او د امام ابو يوسف رحمه الله څخه روايت دي چي د مېړه کسب به ډېر بېکاره کسب نه وي په عرف کي لکه د وينو کښل يا کمبلې ودل چي حانګ يې بولي په عربي او په پښتو يې جولا بولي.

**فائده**:- د حضرت الامام الاعظم رحمه الله څخه دوه روايته راغلي په يوه روايت کي چي ظاهر روايت هم دي کسب په کفائت کي اعتبار نه لري، ولي پر سړي خو کسب ذليل لازم نه دي بلکه کولای سي چي کسب ذليل به پرېږدي او کسب شريف به مختاره کړي،

او په بل روايت کي اعتبار لري ولي په ذليل کسب کي د مېړه خلګ پېغور ورکوي ومايني ته او اقرباء ته د دې،

او دی که هغه ذليل کسب پرې هم دي لکن تر ډېري

زمـانې د هغـه ذلـیل نـوم نـه ځندي اوړي او نـه پېغـور د هغـه د فعـه کېږي نـو ځکه پـه اعتبار د حرفت پـه کفائت کي ډېرو معتبرو کتابو د مذهب فتوی ورکړه، کذا فی مجمع الانهر، ودر، وفتح.

قـال القـدوری رحمه الله " واذا تزوجت المرئة ونقصت عـن مهـر مـثلها فلاولـیاء الاعـتراض علـیها عـند ابـي حنـیفة رحمه الله حتـی یـتم لهـا مهـر مـثلها او مربهـا " او کـه نکاح وکړه ښځي پر خپل سر د یـو چا سره او دې ځان ته کم ولور کښېښوی تر مهر مثل یعنې چي د دې د قـوم ښځي په هغه نکاح کېدلې نو د دې قریبانو ته حق د اعتراض ستـه پردې بـاندي یعنـي دا نکـاح مـوږ نـه منو، په نېز د امام اعظم رحمه الله تر څو چي پـوره کـېږي د دې مهر مـثل او یابه مېړه د دې څخه جلا کېږي یعني پرېږدي به یې.

**پـوه سـه**:- چي دا فرقـت قاضـي نـه غـواړي، او یـاران رحمه الله وایـي چي قریبان حق د اعـتراض نـه لـري ولـي چي ولور د دې خپل حق دي نو ځکه پس له ایښولـو د ولـور دا یـې مـېړه تـه بخښلای سي بالاتفاق، امام اعظم رحمه الله وایي چي ولور تر لس درهمه پوري حق د شرعي شریفي دي نو ځکه تـر لـس درهمـه کمـول شرعا ناروا دي او تر مهر مثله پوري حق د اولیاوو دي، ولـي چي تـر مهر مثل کم ولور سره خلګ ودوي ته پېغور ورکوي نو ځکـه دوي اعـتراض کـولای سي او وروسـته تر پوره کولو د مهر مثل او د پېغـور د دفـع والـي بیـا قـبض د ولـور ببشـکه حق د ښځـي دي کـه یـې د مېړه څخه اخلي او که یې وربخښي، مجمع الانهر.

واذا زوج الاب ابنته الصغيرة ونقص من مهر مثلها او ابنه الصغير وزاد فى مهر امرئته جاز ذالک عليها ولايجوز ذالک لغير الاب والجد" او که په نکاح ورکړه پلار يعني يا نيکه خپله لور چي کوچنۍ وه او تر مهر مثل يې کم ولور ورته کښېښوي، او يا يې کوچني زوي ته کوزده وروکړه او تر مهر مثل بالا ولور يې کښېښوي د هغه د مابينې د پاره نو دا عقد پر دوي نافذ دي يعني دوي خيار بلوغ نه لري.

**پوه سه**:- چي دا مذهب دي د امام اعظم رحمة الله عليه دی وايي چي د پلار او نيکه شفقت تر ټولو قريبانو ډېر دي نو پلار يا نيکه چي په دغه کم ولور د لور او يا زيات ولور د زوي راضي سوه نو معلومه ده چي دوي په دې کي يوه فائدهويني،

او نکاح داسي عقد دي چي پټ غرضونه پکښي سته نو د هغو غرضو د لاس ته راوړو د پاره دوي ولور د لور کم کي يا ولور د زوي د مابينې تر مهر مثل بالا کي، او ياران رحمة الله عليه وايي چي دا عقد روا ګرسره نه دي ولي خو ظاهر ضرر دي يعني خيار بلوغ ته ضرورت هم نسته، او نه دی روا داسي عقد په کم ولور تر مهر مثل د ښځي د پاره او يا بالاتر مهر مثل د مابينې د صغير د پاره غير ته د پلار او نيکه يعنی نورو قريبانو ته د ښځي او نر.

قال" ويصح النکاح اذا سمى فيه مهرا و يصح النکاح وان لم يسم فيه مهرا واقل المهر عشرة دراهم فان سمي اقل من عشرة فلها عشرة ومن سمى مهرا عشرة فما زاد فعليه

المسمى ان دخل بها اومات عنها" او صحيح ده نكاح كه مسمى كړه سو په عقد كي د نكاح ولور، او صحيح ده نكاح كه څه هم په عقد كي ولور نه وي معلوم سوى، اوكمه اندازه د ولور لس (۱۰) درهمه ده ولي چي عليه الصلوة والسلام ويلي دي، لامهر اقل من عشرة دراهم" نو كه چېري مسمى كړه سو په عقد كي د نكاح كم تر لس (۱۰) درهمه نو ښځى لره لس درهمه دي حقا للشرع يعني كه څه هم د دې مهر مثل زر روپۍ وي مثلا هغه ته اعتبار نسته ولي چي دا تر لس كم راضي ده نو په لس خو په طريق اولى راضي ده.

او چا وتاكي ولور لس (۱۰) درهمه يا زيات تر لس درهمه نو پر هغه سړي باندي لازم دي هغه مهر مسمى چي لس درهمه يا زيات دي، لكن چي دخول په دې وكړي يعني جماعي ورسره وكړي يعني يا خلوت صحيحه ورسره وكړي او يا يې مېړه مړ سي يعني يا ښځه مړه سي.

**درويش وايي** :- چي دليل د دوهمي مسئلې چي مهر يې نه كي مسمى دادي چي نكاح په لغت كي عقد د انضمام ته وايې او مقصود ورڅخه توالد دي مال نه دي نو انضمام په مېړه او ماينه سره پوره دي نو ذكر د مهر شرط د صحته د نكاح نه دي، لكن سره د هغه مهر واجب دي شرعا د جهته د شرافت د عضو د بضع لكه د سرقى د قطع اليد په نصاب كي.

**مسئله**:- كه سړي په وقت كي د عقد نكاح عدم د مهر شرط كړي هم عقد صحيح دي د حنيفيانو رحمة الله عليه په نيز او امام مالك رحمة الله عليه وايي چي نكاح سره د نفي د مهر نه صحيح كيږي دى يې پر بيع قياسه وي، مور

وايـو چي بـيع خـو عقد مالي دي او مقصـود ځـندي مـال دي، ولهـذا لايصح عند نفی المال بخلاف النكاح كما عرفت.

**فائده**:- امام شافعي رحمة الله عليه وايي چي هر څه مال چي ثمن دي په عقد كي د بيع كيداى سي هغه قدر ولور هم كيداى سي زموږ دليل هغه حديث دي چي د مخه تېر سو، ومزيد التفصيل فی الشروح.

قال القدوری رحمة الله عليه " فان طلقها قبل الدخول بها ولخلوة فلها نصف المسمی"

نو كه دغه سړي طلاقه كړه دغه مابينه د مخه تر دخول په دې سره يعني قبل الجماع او قبل الخلوه نو دې لره نيمی د مهر مسمیٰ دي.

لقوله تعالی فان طلقتموهن من قبل ان تمسوهن وقد فرضتم لهن فريضة فنصف ما فرضتم" يعني كه تاسي طلاقي كړې ماينې خپلي د مخه تر مسحه كولو نو پر تاسي باندي نيمی د هغه ټاكلي ولور سته.

قال القدوری رحمة الله عليه " وان تزوجها ولم يسم لها مهرا او زوجها علی ان لامهر لها فلها مهر مثلها ان دخل بها او مات عنها"

او كه سړي ښځه په نكاح كړه او ولور يې نه كي معلوم او يا يې داسي په نكاح كړه چي ولور به نه وي دې لره نو دې ښځي لره مهر مثل د نورو ښځو يعني د دې د قوم څخه سته، كه يې دخول په كړي وي او يا يې مېړه مړ سو د دې څخه، په يوه وړد حديث كي راغلي دي چي د عبد الله ابن مسعود رضي الله عنه د د غسي مسئلې په باره كي چا فتویٰ وغوښته نو ده ورته وويل چي دغې ښځي لره ولور د ښځو د دې د قوم دي يعني د قوم څخه به نه كمبوت او نه به بالابود وي.

قال" وان طلقها قبل الدخول بها او الخلوة فلها المتعة وهي ثلثة ثياب من كسوة مثلها وهي درع وخمار ومسلحفة" او که سړي دغه مذکوره ښځه طلاقه کړه د مخه تر دخول په دې سره او تر خلوت يعني په يوه خونه کي د دې سره يوځای کيده ښله مانع شرعي لکه فرضي روژه او ښله مانع طبعي لکه د ناجوړۍ او غير ذالك نو دې لره متعه ده، او متعه درې جامې دي او دا تقدير مروي دي د بي بي عائشه رضی الله تعالی عنها او د عبدالله بن عباس ﷺ او دا درې جامې به د قام څخه د مثل د دې ښځي وي چي هغه نو يو لوي قميص دي او بل پوړنی دي چي په کور کي پر سر کوي او بل لوي پوړني چي سر تر پايه پکښي پټې دای سي.

**فائده**:- مصنف ﷫ مثلها ووايې مثله يې نه وويل اشاره يې ودې ته وکړه چي په دې متعه کي چي واجبه ده اعتبار حال لره د ښځي دي په غنا او سکنت کي د مېړه حال ته اعتبار نسته، او دا هم قول د امام کرخي ﷫ دي دی وايي چي دا متعه په ځای کي د مهر مثل ولاړه ده او د مهر مثل اعتبار خو په ښځي پوري اړه لري، لکن قال صاحب الهدايه ﷫ چي صحيح داده چي حال د مېړه معتبر دې د دې آيت په مقتضی، على الموسع قدره وعلى المقتر قدره" يعني دا متعه پر غني سړي په قدر د غنی د ده ده، او پر مسکين باندي په قدر د قدرت د ده ده، لکن دا متعه به زياته تر نيمايي د مهر مثل نه وي او تر پنځه درهمه چي نصف د مهر شرعي کمه به هم نه وی، هدايه، ودر.

قال" وان تزوجها المسلم على خمر او خنزير" مثلا ښځه کتابيه وه " فالنكاح جائز ولها مهر مثلها" او که په نکاح کړه يوه ښځه يوه

مسلمان پر ولور د شرابو او یا د سرکوزي نو نکاح خو روا ده ولې شرط د قبول د خمر او خنزیر شرط فاسد دي، او په فقه شریفه کي وایي چي نکاح په شروط فاسده وو نه فاسدیږی بلکه شرط یې لغوه دي، بخلاف البیع لانه یبطل بالشرط الفاسدة، نو چون مهر مسمٰی چي خمر او خنزیر دي صحیح نه سو، لعدم کونها مالا عند المسلم ولا یقدر المسلم علی تسلیمهما" نو اصل عوض ته د بطع یعنی فرج رجوع کیږي، وهو المهر المسمٰی.

**فائده**:- اصل عوض د عضو محترم د ښځي چي فرج دي خو مهر مثل دي لکن تر هغه چي تېری کېږي په سبب د رضا د نر او ښځي پر مهر مسمٰی باندي، لان العرضی اذا اقتضاه المقام یفوق الذاتی کما قال اهل المعانی فی الحمد لله، تامل.

قال" وان تزوجها ولم یسم لها مهرا ثم تراضا علی تسمیة مهر فهو لها ان دخل بها او مات عنها وان طلقها قبل الدخول بها والخلوة فلها المتعة" او که یوسړي په نکاح کړه یوه ښځه او مهر یې نه کي معلوم د دې د پاره وروسته بیا دواړه راضي سوه پر معینه ولور نو هغه معین ولور وروسته تر عقد نکاح د ښځي حق دي که یې دخول په وکړي او یا په مرګ د دې څخه جلا سو، او که دغه مېړه ماینې ته طلاق ورکړي د مخه تر دخول په دې سره او د مخه تر خلوت نو دې لره متعه حق ده.

**درویش وایي**:- چي دا مذهب دي د امام اعظم رحمة الله علیه، او امام ابو یوسف رحمة الله علیه وایي چي نیمی د مهر مسمٰی دي، او د امام شافعي رحمة الله علیه هم دغه مذهب دي دوی وایي چي دلته مهر مسمٰی موجود دي. ولو بعد

العقد والمسمى ينصف عند الطلاق قبل الدخول والخلوة كما هو المقرر في الفقه" حضرت الامام الاعظم رحمة الله عليه وايي چي اصل العقد خو د مهر مسمٰى څخه خالي وو نو د اصل عقد مقتضى خو مهر مثل وو او مهر مثل خو په وقت كي د طلاق قبل الدخول نه نيمى كيږي بلكه متعه واجبه ده كما مر، او عارضي رضا د نر او ښځي پر ولور معين كه څه هم په وخت كي د دخول او يا مرګ د مېړه اعتبار لري، لتمام الملك بهما لكن دا عارض پسله طلاق قبل الدخول اعتبار نه لرى.

قال" وان زاد في المهر بعد العقد لزمته الزيادة ان دخل بها او مات عنها وتسقط الزيادة بالطلاق قبل الدخول"

او كه زياتى وكړي مېړه د ښځي په ولور كي د هغې وروسته تر عقد لاژم دي پر مېړه باندي هغه مقدار زائد يعني رجوع نه سي كولاى، لكن زيادت هلته لاژم دي چي دا مېړه جماعي ورسره وكړي او يا دى مړ سي او دا پاته سي يعنى ورثه د مېړه به ټوله ولور سره د مقدار زائد ودې ته وركوي، او هغه زائد مقدار د مېړه د ذمې څخه ساقطېږي په طلاق قبل الدخول سره.

**پوهه نسه**:- چي مذكور فى المتن مذهب دي د امام اعظم رحمة الله عليه او د امام محمد رحمة الله عليه چي د فقهي په كتابو كي دوي دوو ته طرفين وايي دوي وايي هر مبلغ چي د عقد په صلب كي نه وي لكه دلته دا زائد مقدار هغه باطله وي طلاق قبل الدخول، او امام ابو يوسف رحمة الله عليه وايي چي هغه د نورو ائمه ثلثه وو يعني امام شافعي رحمة الله عليه امام مالك رحمة الله عليه او امام احمد رحمة الله عليه مذهب هم دي چي په طلاق قبل الدخول سره لكه اصل ولور چي نيمى كيږي دغه رنګه قدر زائد هم نيمى كيږي ولي دا قدر

زائد خو مېړه او مايني سره فرض کړي او خداى پاك ﷻ په دې باره کي وايي، فنصف ما فرضتم" مجمع لانهر.

قال" فان حطت من مهرها صح الحط" او که ښځي کم کړي د خپل ولور مقرر فى العقد څخه وروسته تر عقد دا کموالي صحيح دي يعني وروسته بيا دا دعوى د دغه مقدار چي دې کم کړي نه سي کولای ولي ولور حق د دې دي ابتداء وبقاء دا اختيار د ټوله ولور د بخښلو او د بعض د کمولو لري، کذا فى الهدايه.

قال القدورى رحمة الله عليه" واذا خلا الزوج بامرئته وليس هناك مانع من الوطى ثم طلقها فلها كمال مهرها" او که چېري يوځاى سو مېړه د خپلي مايني سره او هيڅ مانع د جماعو نه وو په هغه خلوت کي او بيا دې مېړه دا ماينه طلاقه کړه نو دې لره پوره ولور سته پر مېړه باندي يعني کې څه هم وطي نه وې ورسره کړي، او امام شافعي رحمة الله عليه وايي چي دې ښځي لره نيم ولور دي ولي چي عقد د نکاح خو د دې پر فرج سوي وو نو د فرج تسليمي خو په وطي سره کيږي او دلته خو وطي نه دي سوي نو پوره ولور يې حق نه دي مونږ وايو چي ماينې خو تسليم د فرج حتى الوسع وکړي چي موانع يې لري کړه نور نو وطي خو د مېړه کار دي دا خو داسي نسي کولاى چي د مېړه ذکر خپل په فرج کي داخل کړي نو د دې پوره ولور حق دي لکه په بيع کي چي بائع مبيعه د مشتري مخ ته ودره وي نو د هغه پوره ثمن حق دي که يې مشتري بوزي او که يې نه.

قال المصنف رحمة الله عليه " وان كان احدهما مريضا او صائما فى رمضان او محرما بحج او عمرة او كانت حائضا فليست بخلوة صحيحة ولو طلقها فيجب نصف المهر. په بيان كى د موانعو د جماعو.

**پوه سه**:- چي سره د بعض موانعود وجو د خلوت د مېړه د ماينې سره خلوت فاسده بولي او چي ټوله موانع پورته وي هغه خلوت صحيحه دي.

**ترجمه**:- كه چېري وو يو د نر او ښځي څخه ناجوړي يعني داسي ناجوړي چي سره د هغې ناجوړي يې وطي د وسه نه وي پوره چي دې ته

مانع عقلي وايې، او يا د يوه د دوي دوو روژه وه په مياشت كي د روژې او يا احرام بنده وه په حج يا په عمره سره، چي دې ته مانع شرعي وايي او يا ښځه په حيض كي وه چي دې ته مانع طبعي وايي نو دغه خلوت صحيح نه دي نو كه يې طلاق پسله دغسي خلوته وركړي نو پر مېړه نيمى ولور واجب دي.

**مسئله**:- كه د مېړه يا مايني معمولي پر سر درد وه يا بدن خوږېدي مثلا نو خلوت يې صحيح دي په صورت كي د طلاق پوره ولور لازم دي.

**پوه سه**:- چي كه يو د مېړه او مايني څخه صائم وو لكن نفلي روژه يې وه بيا خلوت صحيحه دي، كذا فى الهدايه.

قال" واذا خلا المجبوب بامرئته ثم طلقها فلها كمال المهر عند ابى حنيفة رحمة الله عليه " او كه خلوت صحيحه وكړي مجبوب يعني چي خوټي او غنړ يې څني پرې كړه سوي وو، او بيا يې طلاقه كړه نو د مايني يې پوره ولور حق دي په نېز د امام اعظم رحمة الله عليه او ياران رحمة الله عليه وايي چي

نیمی ولور یې کیږي ولي چي په مجبوب کي خو مانع د وطي حسا موجود دي چي آله د وطي نه دي، او امام اعظم رحمه الله وايي چي په هر عقد کي لازمه داده چي معقود علیه به حتی الامکان پوره وسپارل کیږي وه جانب مقابل ته تا چي د پوره عوض مستحق وه ګرځي، کما فی البیع اذا سلم البائع المبیعة الی المشتری کاملا یستحق الثمن کاملا او فیمانحق فیه" مانع د مجبوب معقود علیه چی د دې بضع او فرج دي په پوره ډول مجبوب ته تسلیم کي نو حق د پوره ولور لري په طلاق کي.

**پوښتنه**:- چي د مېړه فرضي روژه وي، او یا محرم وي او یا سخت ناجوړي وي او ماینه ځان او بضع ور تسلیم کي او هغه یې طلاقه کړي نو ولي نیمی ولور کیږي سره د دې ښځي خو پوره تسلیم بحسب الامکان وکړي مانع خو د مېړه د خوا دي، کما فی المجبوب فما الفرق بین هاتین المسئلتین؟

**ځواب**:- په صورت مذکوره کي ماینې حتی الامکان بضع نه ده تسلیم کړې ولي چي موجوده اعذار خو پاي درلو دي نو دې به هلته بضعه ور تسلیم کړې وايي چي د مېړه عذرونه پای ته رسېدلې وايي مثلا چي روژه یې ماته کړي وای دې به بضعه وروپېش کړې وای یا د احرام څخه خلاص سوي وای دې به بضعه ورته اینښې وای او یا جوړ سوې وای او په مسئله کي د مجبوب خو جب (مقطوع الذکر) پای نه لري چي دا یي وه پای ته انتظار وکړي نو په حال د جب تسلیم د بضع تسلیم کامل دي نو حق د پوره ولور لري په وخت کي د طلاق په جوهره کي وايي چي د عنین ماینه چي بېله موانعو مذکوره وو د مېړه سره خلوت وکړي او بیا یې طلاقه کړي پوره ولور یې حق دي ولي چي خلوت صحیحه وکړي، مع ان

العنة ايضا مانع من الجماع" نو څه فرق دي د جب او عنته او سره د دي چي ياران رحمهم الله د امام اعظم رحمه الله سره متفق دي د عنين په مسئله كي، جوهره، ودر.

قال القدورى رحمه الله "ويستحب المتعة لكل مطلقة الا المطلقة واحدة وهى التى طلقها قبل الدخول ولم يسم لها مهرا" او مستحب ده متعه يعني د مخه يې بيان تېر سو هري طلاقي ښځي لره مګر يوې طلاقي ښځي لره نه ده مستحب بلکه واجبه ده هغه هغه طلاقه سوې ماينه ده چي طلاق مېړه ورکړي د مخه تر دخول يعني جماعو او مېړه نه وي مسمٰى کړي دې لره ولور.

**فائده**:- د دې کليه قاعدې څخه د قدورى رحمه الله دا معلومېږي چي هغې طلاقي سوي ښځي لره قبل الدخول چي مهر مسمٰى لري هم متعه مستحبه ده لکن حکم داغسي نه دي، کما قال بدرالدين العينى رحمه الله په شرح کي د کنز.

**پوښتنه**:- چي مطلقات څلور (۴) قسمه دی (۱) مطلقه قبل الدخول ولم يسم لها مهر نودی ته متعه ورکول واجب دي کما فى متن القدوري. (۲) مطلقه د بعد الدخول اومهر مسمٰى لري ودې ته متعه ورکول مستحبه ده. (۳) مطلقه د بعد الدخول چي مهر مسمٰى نه لري ودې ته هم متعه مستحب ده. (۴) مطلقه د قبل الدخول چي ولور مسمٰى لري دې ته متعه ورکول نه واجبه ده او نه مستحب ده، جوهره عينى، در.

**درويش وايي**:- چي د دې سوال پر عبارت مذکوره د قدوري ځواب دي په شروح کي و لټول سي والله اعلم بالصواب.

**قال المصنف رحمه الله" واذا زوج الرجل ابنته على ان يزوج الاخر اخته او بنته ليكون احد العقدين عوضا عن الاخر فالعقدان جائزان ولكل واحدة منهما مهر مثلها"**

**درويش وايي**:- چي داسي عقد ته په اصطلاح كي مخې واى او كه يوه سړي خپل لور مثلا په نكاح و بل چا ته وركړه په دې شرط چي هغه بل سړي به خپله خور يا لور وده ته په نكاح وركوي په دې معنا چي دغه دوه عقد به يو د بل عوض وي يعني مهر به په مابين كي نه وي نو دواړو عقد صحيح دي او هرې ښځي لره د دغو دوو (٢) ښځو مهر مثل لازم دي، نو مهر مثل د دوي كه سره برابر وي او كه يو تر بل بالاوى اوامام شافعي رحمه الله وايي چي دواړه عقد فاسد دي ولي چي په حديث شريف چي روايت يې ټولو صحابه وو رضي الله عنهم كړي دي په روايت د نافع د عمر رضي الله عنه څخه چي آنحضرت ﷺ نهي وكړي د شغار څخه چي نوي په مابين كي ولور يعني فرج د فرج بدل وي، او په بل حديث شريف كي راغلي دي په روايت د عبدالله بن عمر رضي الله عنه چي عليه السلام وويل لاشغار فى الاسلام يعني فرج د فرج عوض نه سي كيداى په اسلام كي موږ وايو چي ببله شكه دا شرط خوفاسد دي لكن عقد د نكاح په فاسد شرطو نه فاسديږي مثلا كه يو سړي د چا لور په نكاح كړه چي زه به ويني دركوم مثلا، يا بل داسي شي شرط كړي چي هغه مال نه وي نو عقد يې صحيح دي او ښځي لره مهر مثل د، نو چي عقد نكاح په شرط فاسد نه فاسديږي بلكه شرط لغوه دي نو گويا نكاح ببله تسميه د مهر ده نو خود مهر مثل لازم دي، او د حديث مروي لاشغار آه، محمل پر هغه نكاح ده چي په وخت كي د جاهليت رواج وه چي په هغې نكاح كي به نه

تسميه د ولور وه او نه بل مال بلکه صرف او صرف تعويض د بضع په بضع سره به وو په شرع شريف کي خو تعويض مذکور لغوه دي بلکه دوارو ښځو لره مهر مثل دي، وهذا فرق دقيق يجب التامل فيه.

**سوال**:- په پښتنو کي خو هم دا رواج دي بعض وخت پيدا کيږي چي دوي مخې ورته وايي نو د دې عقد هم لزوم د مهر مثل دي او که څرنګه؟

**ځواب**:- د پښتنو د مخې په عقد کي د هري ښځي ولور تاکل کيږي يا لږ يا ډېر يعني تر مهر شرعي بالانو په دې عقد کي خو مهر مسمى سته هغه هري ښځي ته لازم وي نو مهر مثل په دې عقد کي نسته،

تبيين، ودر.

قال" واذا تزوج حر امرئة على خدمته سنة او على تعليم القران جاز فلها مهر مثلها" يعني مثلا او يا تعليم د کتاب د فقهي شريفي، او که په نکاح کړه حر سړي يوه ښځه په دې شرط چي دى به د دې خدمت کوي يو کال او يا به تعليم او ښونه د قرآن ورته کوي عقد خو ورته روا دي او دې لره مهر مثل سته ولي چي خدمت د حر خو مال نه دي او دغه تعليم القران هم مال نه دي نو خود مهر مثل لازم دي، او امام محمد رحمة الله عليه وايي چي په صورت کي د خدمت قيمت د يوه کال د خدمت لازم دي او مذکور فى المتن مذهب د شيخينو دي رحمة الله عليه.

**پوښتنه**:- په قرآن مبارك کي په قصه د موسى او شعيب عليهما السلام داسي راغلي دي، على ان تاجرنى ثمانى حجج الآيه" نو په عقد کي خو خدمت د حر چي موسى عليه السلام ولور د لور د شعيب عليه السلام وکرځېدي؟

**ځواب**:- هو، لكنه منسوخ فى ديننا.

قــال القــدوري رحمه الله " وان تـزوج عـبد امـرئة حـرة بـاذن مـولاه على خدمته سنة جاز ولها خدمته" او كه په نكاح كړه مريي ښځه حره په اجازه د بادار پر خدمت د ده ښځي لره يو كال، نو ښځي لره د ده خدمت دي ولي چي منافع د مريي كه څه هم حقيقت مال نه دي لكن مال دي حكما نو ځكه په ځاى كي د ولور مالي دريږي، ج.

واذا اجـتمع فـى المجنونة ابوهـا وابـنها فـالولى فى نكاحها ابـنها عـند ابى حنيفة وابـو يوسـف رحمهمـا الله وقـال محمد رحمه الله ابوهـا" او كه چيري جمعه سوه په ليونۍ ښځه كي يعني په وخت كي د نكاح د دې پلار او زوي د دې نو ولي په نكاح كي د دې زوى دي په نيز د امام اعظم رحمه الله او ابـو يوسف رحمه الله، او امـام محمد رحمه الله وايي چي ولـي د نكـاح يې پلار دي دليل د مذهب د شيخينو دادي چي ولايت د نكاح بنـاء پر عصوبت دي، او اقـرب د عصباتو زوي دي كما تقرر في علم الميراث، او امـام محمد رحمه الله وايـي د پـلار شفقت تـر زوى ډېر دي والله اعلم.

قــال" ولا يجـوز نكــاح العــبد ولامــة الا بــاذن مولاتهمـا" او نـه ده روا نكاح كول د مريي او مينځي مګر په اجازه د بادار د دوي او مـالك رحمه الله وايي چي مريـي تـه نكـاح بېله اجازې د بادار رواده دي وايي چي مريي خپله ماينه بېله اجازې د بـادار طلاقـه ولاى سي نو نكاح هم كولاى سي، موږ وايو چي پـه صـحيح حديـث كـي علـيه السـلام داسي فرمايلي دي، ايـا عبد تزوج بغير اذن مولاه فهوعـاهر" هر مريي چي نكاح وكړي بېله اجازې د بادار هغه زنا كاره دي.

قــال القــدوری رحمه الله " واذا تزوج العبد باذن مولاه فالمهر دیـن فـی ذمـته ورقبته یباع فـیه" او که چېري مريي کوزده وکړه په اجازه د بادار نو ولور د مايني يې پور دي په ذمه کي د مريي لکن په سبب د اجازې د باردار دا پور د ده په رقبه پوري مربوط دي نو رقبه د مريي چي حق د بادار ده په کښي خرڅېږي لکه نور پورونه د تجارت چي پر عبد ماذون باندي وي. ج

قـال" و اذا زوج المولـی امـته فلـيس علـيه ان يـبوئها بيـتا للـزوج ولكـنها تخـدم المولـی ويقـال للـزوج مـتی ظفـرت بهـا وطئـتها" کـه چېري بـادار پـه نکـاح ورکـړه خـپل مـينځه ويـو چا ته نو پر

بادار دا نسته چي د مينځي د پاره يوه خونه ورکوي چي دا او مېړه په کښي اوسېږي او خپلي وطي سره کوي ولي چي د بادار حق د مينځي څخه خدمت غوښتل دي اوس هم باقي دي پـه نکـاح د ده حـق نـه باطلېږي، هدايه. لکن دا به خدمت د بادار کوي لکه په خوا او مېړه ته دې وويـل سي چي هر وخت دي پر منځه چي ستا ماينه ده قدرت پيدا کړي وطي ورسره کوه، ولي مېړه لره حق د وطي پـه نکـاح سره ثابت سو نو بادار مېړه د مينځي د وطي څخه د دې نسي منع کولای مګر هغه وخت يې منع کولای سي چي ميړه مهر معجل نه وي ورکړي، او ميړه هم دا حق نه لري چي دا مينځه ماينه خپله د خدمت څخه د بادار منعه کړي ولي چي په نکاح سره صرف وده ته حق د روا والي د جماعو پيدا سو د رقبې د مينځي ملك خو اوس هم د بادار دي.

**مسئله**:- د دغي مينځي مابينې نفقه پر مېړه نسته ولي چي نفقه خو جزاء د احتباس د مابينې ده د مېړه په کور کي ولم يوجد ، حاصل مجمع الانهر.

قال" وان تزوج امرئة على الف درهم على ان لايخرجها من البلد او على ان لايتزوج عليها امرئة فان وفى بالشرط فلها المسمٰى وان زوج عليها او اخرجها من البلد فلها مهر مثلها"
او که يو چا په نکاح کړه يوه ښځه په زر درهمه مثلا په شرط د دې چي دا به د ښار څخه نه باسي يعني د عقد نکاح د ښار څخه او يا په دې شرط چي پر دې باندي به نه په نکاح کوي بله ښځه يعني بن، نو که مېړه وفا وکړه په شرط مذکور سره نو دې لره هغه مهر مسمٰى دي ولي په هغه ولور دا راضي سوې ده او هغه هم مهر کيداى سي، او که مېړه بله ښځه پردې باندي په نکاح کړه او يا يې د ښاره څخه وه ايستله نو دې لره مهر مثل دي ولي دا ښځه چي شرط يې وه لګاوه غالبا د دې سببه چي زر روپې (١٠٠٠) د دې تر مهر مثل کمي دي نو دغه ښځه په نقصان تر مهر مثل نه ده راضي چي شرط نسي پر ځاى او په دې شرط کي د دې فائده ده کمالا يخفا، نو مهر مثل د دې پوره کيده غواړي، بالغا مابلغ.

قال القدوری رحمة الله عليه" ولو تزوجها على حيوان غير موصوف صحت التسمية ولها الوسط منه والزوج مخير ان شاء اعطاها ذالک وان شاء اعطاها قيمته" او که چېري سړي په نکاح کړه ښځه چي ولور يې يو حيوان ورته وټاکي او د هغه وصف يې بيان نه کړي يعني چي جيد به وي يا اوسط يا ادنى نو مسمٰى والي صحيح دي او دې ښځي لره ميانه د هغه حيوان کيږي، او مېړه يې اختيار لري که هغه

وسط حيوان ورکوي او که قيمت د حيوان وسط ورکوی، وجه داختيار د مېړه داده چي که هغه وسط حيوان ورکړي هغه خو ګويا اصل مسمی دي او که يې قيمت ورکوي هم روا دي ولي چي حيوان وسط خو په قيمت معلومېږي نو قيمت هم ګويا اصل دي.

**يوه ښه**:- چي مراد د حيوان څخه جنس حيوان نه دي ولي چي په جنس حيوان کي محض تفاوت دي او اوسط يې نه معلومېږي، لاختلاف انواعه فالتسمية اذا باطله ولها مهر مثلها" بل که مراد نوع د حيوان د يعني آس، يا خر، يا اوښ وغيرها چي نوعي اوسط معلوميږي په قيمت سره، او امام شافعي رحمه الله وايي چي په صورت د ارادې د نوع هم تسميه باطله ده، او ښځي لره مهر مثل دي، لفرط التفاوت فی افراد نوع واحد ولهذا لايجوز البيع بجعله ثمنا فی البيع" موږ وايو چي د بيع او د نکاح فرق سته ولي چي بناء د بيع پر چنو او ټينګ والي ده نو چي حيوان متعين النوع ثمن وګرځوي نو هم مفضی وه نزاع ته ګرځي چي په وسط کي هم تفاوت سته، او بناء د نکاح او ولور پر مسامحه ده، او يو بل ډېر نه ټينګ ولو باندي ده نو چي حيوان اوسط پېش کړه سي د دواړه طرفو يعنی مېړه او مايني مراعات پکښي موجود دي نو نزاع تر مابين نه راځي فافهم.

**ولو تزوجها علی ثوب غير موصوف فلها مهر مثلاها"**
او که يې ښځه په نکاح کړه پر يوه جامه يعني فقط يې ثوب ذکر کړي او وصف او بيان د جامې نه وکړي چي ابرشمي به وي يا نخي به وي ګلدار به وي يا بېګله بخمل به وي يا خوشبو به وي، الی غير ذالك من انواع الثوب" نو دې لره مهر مثل دي په اتفاق ولي ثوب لفظ شامل اجناسو

ډېرو لږه دي نو دلته جنس هم مجهول دي نو د وسط هيڅ حال نه معلومېږي، فلهذا بطل المسمى وجب مهر المثل كذا فى الهدايه.

ونكاح المتعة والموقت باطل" او نكاح د متعې چې اهل ايران يې صيغه بولي او روا يې هم بولي په نېز د اهل السنة والجماعة باطله ده، صورت يې دادي چې يو نر و ښځي ته ووايې، اتمتع بک كذا مدة بكذا من المال" يعنى زه فائده اخلم ستا څخه يعني وطي درسره كوم دونه مده يعني يوه مياشت يا يو كال په دونه روپو يا سل روپۍ يا زر روپۍ او ښځه يې قبوله كړي، فهذا باطل.

پوهنه:- چي د حديثو په كتابو كي راغلي دي چي عليه الصلوة والسلام يو وار اجازه د نكاح متعه وه اصحابو ؓ ته وركړه او څو ورځي وروسته يې بيرته منعه څندي وكړه او په بله غزا كي بيا اجازه وكړه لكن وروسته يې د ابد د پاره منعه څندي وكړه، والتفصيل فى شروح كتب الاحاديث.

مسئله:- كه په متعه كي دونه ډېره مده ذكر كړه چي تر هغو نده مدې پوري غالبا ژوند د دوي نه وو ممكن لكه چي ووايي، اتمتع بك ثلث مائة سنة" نو دا متعه نه ده باطله بلكه دا نكاح شرعي ده او مال يې ولور دي. كذا فى شرح البرجندى رحمه الله.

او نكاح موقت هم باطله ده صورت يې دادي چي يو سړي په حضور كي د شاهدانو د يوې ښځي سره نكاح وكړي يوه مياشت.

فائده:- فرق د متعې او نكاح موقت دادي چي متعه په لفظ، اتمتع بك آه" او نكاح موقت په لفظ د نكاح ياتزوج وي، قاله البرجندي رحمه الله، دليل د بطلان د نكاح موقت دادي چي په دې نكاح كي قلب دي د موضوع د شرعي شريفي ولي چي نكاح په شرعت كي د پاره د ابد يعني

مدة العمر فالتوقيت ينافيه" او بل داچي دوي که څه هم لفظ د نکاح ذکر کړي دي لکن په معنا کي دا د زنا عقد دي العبرة للمعنی فافهم. در

قال القدوري رحمه الله" وتزويج العبد والامة بغير اذن مولاهما موقوف فان اجازه المولی جاز وان رده بطل" او نکاح ورکول د فضولي سړي وه مريي ته د يوچا، يا وه مينځي ته د يوچا بې اجازې د بادار د دوي موقوف ده يعني نه جائز ده او نه باطله بلکه که مولی اجازه وکړه نکاح روا ده او که يې رد کړه باطل ده.

**پوهه**:- چي مونږ قيد د فضولي ووايه نو هغه سوال نه واريديږي چي په دې عبارت کي خو تکرار دي د هغه د مخني عبارت، ولايجوز نکاح العبد والامة الا باذن مولاهما آه" ولي چي د هغه عبارت معنا دا وه چي دوي په خپله عقد وکړي، او د دې عبارت معنا داده چي بل سړي د دوي د پاره عقد نکاح وکړي، جوهر

قال" وکذالک ان زوج رجل امرئة بغير رضاها" يعني د دې ښځه يې رضا او وکالت د نکاح نه وو ترلاسه کړي، او دا غه رنګه رجل بغير رضاه يعني د ده ښځه يې رضا او وکالت نه وو حاصل کړي، او دغه رنګه نکاح د فضولي سړي د يوې ښځي د يو سړي سره بېله رضا د دې يعني دا نه وه په خبره نو دا نکاح هم موقوفه ده که ښځي پسله خبرېدو ځخه اجازه وکړه نو نکاح يې روا ده او که ښځي هغه نکاح رد کړه نو نکاح باطله ده، او دغه رنګه نکاح موقوفه ده پر اجازه که يو فضولي سړي وه يوه نر ته کوزده وکړه نو پس د هغه چي نر خبر سو که يې اجازه وکړه نو نکاح مذکوره نافذه ده او کې رد کړه نکاح باطله ده.

**پوهه**:- چي فضولي هغه چاته وايي چي نه اصيل وي او نه وکيل.

**سوال**:- ولي دا نكاح د فضولي د اول الامر څخه مردود نه ده؟
**ځواب**:- ښځه او نر چونكه محل د نكاح وي او فضولي هم اهل د عقد د نكاح دي نو صرف رضا د ښځي او نر پاتـه ده نو ځكه دا نكاح د فضولي د ابتدا څخه مردود نه ده، بلكه تر رضا پوري د دوي موقوفه ده، كذا في رد المحتار وغيره.

قال" ويجوز لابن العم ان يزوج بنت عمه من نفسه" يعني په حضور كي د شاهدانو، او روا ده د اكازوي لره چي په نكاح كړي د اكا لور د ځان د پاره، دليل يې دادي چې دغه د اكا زوي خو ولي د ښځي دي چي نور تر ده نژدې عصبات نه وي نو ده لره ولايت د تزويج د اكا د لور ثابت دي، او د فقهي شريفي په ټولو كتابو كي وايي چي يو سړى د دواړو طرفو د عقد يعني ښځه او نر دي كيداى سي كه څه هم په بيع كي يو سړى د بائع او مشتري په ځاى كي نسي دريدلاى،
وجه د فرق داده چي حقوق د بيع لكه تسليم د مبيعې يا طلب د ثمن راجع وه عاقد ته دي نو كه يو سړى عاقد د بيع سي نو دي به هم طالب او هم به مطالب سي، وهذا محال بخلاف النكاح" ولي چي حقوق د عقد نكاح لكه طلب د ولور او ولور ردول د ښځي راجع وه عاقد ته نه دي بلكه په خپله مېره او مايني ته دي، نو تمانع نه پېښېږي، د دې مسئلې صورت دادي چي يو سړى په حضور كي د شاهدانو دا ووايي چي ما خپل د اكا لور چي فلانۍ يې نوم دي او د فلاني لور ده په زر روپۍ مثلا، ځان ته په نكاح وركړې ده او زما هم قبوله ده بلكه هغه مخنى عبارت يوائي پر ځاى د ايجاب او قبول دريږي، كما في كتب الفقه.

قال" واذا اذنت المرئة للرجل ان يزوجها من نفسه" يعني دی وکيل کړي نو دې سړي دا عقد نکاح په حضور کي د شاهدانو وکړي روا دي.

قال" واذا ضمن الولی المهر للمرئة صح ضمانه" او که ولي د ښځي د نکاح يعني هر ولي چي وي ضمانت د ولور پر غاړه واخستي و ښځه ته نو دا ضمان يې صحيح دي ولي چي د ولي پر غاړه خو طلب د ولور نسته نو دی د ولور په باره کي لکه اجنبي سړی داسي وي نو خود يې ضمان صحيح دي.

مسئله:- که ولي د ښځي ولور ادا کړي نو که يې ضمانت په امر د زوج وو نو پر مهړه د ښځي رجوع کولای سي اوکه يې امر د زوج نه وو بيا نو دي متبرع دي پر مهړه رجوع نه سي کولای، کذا فی الجواهر.

قال" وللمرئة الخيار فی مطالبة زوجها او وليها" او ښځي لره اختيار دي که طلب د ولور د مهړه څخه کوي او که يې د ولي څخه کوي لکه چي د ټولو کفالاتو چي دغه حکم دي.

قال" واذا فرق القاضی بين الزوجين فی النکاح الفاسد قبل الدخول فلامهرلها" او که قاضي جلا والي په مابين کي د مهړه او ماينې په نکاح فاسده کي راولي د مخه تر وطي د مهړه نو ښځه د ولور حق نه لري ولي چي د ولور وجوب خو په نفس عقد سره نه دي بلکه وجوب د ولور په قبض د منافع د فرج دي چي هغه قبض وطي دي او هغه نه دي پيدا سوي.

**پوه سه**:- چي عقد فاسد د نکاح لکه چي په درمختار کي راغلي دي هغه عقد نکاح دي چي يو شرط د شرائطو د صحت د نکاح نه وي پکښي لکه نکاح د ښځي سره په عدت د بل مېړه، که د طلاق عده وي او که د وفات عده وي او يا د سړي څلور ماينې وي دی يوه طلاقه کړي او د هغې عده نه وي تېره سوې، دی پنځمه ښځه په نکاح کړي، او يا نکاح بېله شاهدانو وي، او نوري ورته مسئلې چي په بحث کي د عقد فاسد د نکاح راغلي وې.

وكذالک بعد الخلوة" او دغه رنګه تر خلوت وروسته هم دې ښځي لره ولور نسته ولي چي نکاح د دوي چي فاسده ده نو هر رنګه خلوت يې فاسد دي، او ولور چي لازمېږي خو په خلوت صحيحه سره لازمېږي حتی زمونږ مشائخ رحمهم الله وايي چي خلوت صحيحه په نکاح فاسده کي لکه خلوت فاسده په نکاح صحيح کي لکه خلوت د ښځي سره په حال کي د حيض، په جوهره کي وايي چي په نکاح فاسده کي ښځه مېړه مسحه کړي او يا مچه څندي واخلي او يا يې په کونه کي وطي کي (يعني لواطت ورسره وکړي) هم ښځه د ولور حق نه لري.

**پوښتنه**:- چي د کوني د خوا کار ورسره وکي نو منافع د ښځي يې قبض کړه نو ولي ولور يې حق نه دي؟

**ځواب**:- منافع د ښځي په نکاح کي د کوس د خوا کار کول دي کوني لره اعتبار نسته، جوهره، ودر.

قال القدوری رحمه الله " واذا دخل بها فلها مهر مثلها ولايزاد علی المسمٰی وعليها العدة ويثبت نسب ولدها منه"

او که مېړه سره د فاسدي نکاح په ښځه سره دخول کړي وو يعني يقيني وطي يې ورسره کړي وې نو دغي منکوحې لره مهر مثل پر مېړه لازم دي لکن که مهر مثل د دې تر مهر مسمٰی فی العقد بالاوو، بالابود يې حق نه کيږي او پر دې ښځه که قاضي حکم د تفريق وکړي يا يې مېړه طلاقه کړي پر دې باندي عدت تېرول سته او کې عيال پېدا سو نسب يې د مېړه څخه ګڼل کيږي يعني ولد زنا نه ورته ويل کيږي ولي چي د نسب په اثبات کي احتياط کول کيږي تاچي دا عيال په سبب د نسب ژوندي ګڼلای سي، ولي ارموني په حکم کي د مړه دي نو په دغه نکاح فاسده سره هم نسب ثابتيږي چي دا نکاح فاسده په سبب د وجود د رکن د نکاح چي ايجاب وقبل دي من وجه نکاح ده، نو د اثبات نسب د پاره دغه هم کافي دي، هدايه ودر.

او دليل د عدت پردې دادي چي شبه د نکاح چي په نکاح فاسده کي سته په ځای کي د حقيقت نکاح حسابيږي. للاحتياط فی اشتباه انسب. هدايه.

**پښوه نسه**:- چي عدم زيادت پر مهر مسمٰی هلته دي چي مهر مسمٰی معلوم المقدار شی وي او که يې داسي ورته ويلي وه چي يو شی په ولور کي درکوم يا يو څو روپۍ به درکړم نو په دې صورت کي دا نکاح فاسده ده چي مهر مسمٰی مجهول وي نومهر مثل د ښځي بالغا مابلغ دی، کذا فی حاشيه الطحطاوی رحمه الله، ودرايه، چي عدم زيادت د مهر مثل پر مهر مسمٰی په نکاح فاسده په هغه صورت کي دي چي عقد د نکاح د ښځي غير محرم د دې لکه پلار ورور وغيره يعني د اکا زوي مثلا کړي

وي، او كـه محـرم عقـد كـړي وو بـيانو مهـر مـثل بالغـا مـابلغ لازم دي. كذا فى الخانيه.

**فائده**:- د عقد فاسد مهر مسمٰی كه تر لس (۱۰) درهمه كم وي هم تر هغه بالاتوب نه كيږي بخلاف النكاح الصحيح چي په هغې كه مهر المثل لازم سو او مهر مسمٰی تر لس (۱۰) درهمه كم وو لس درهمه به خواه مخواه وربوره كوي. كذا فى هامش القدورى.

قـال القـدورى رحمة الله عليه " ومهـر مـثلها يعتـبر باخواتهـا وعماتها وبـنات عمهـا " او مهر مـثل د ښځي معتـبر دي په خوندو سره د دې او په امه ګانو سره د دې او په نونړو سره د اكا د دې يعني د پلار د طرف په ښځو ولي چي هر انسان د قوم څخه د پلار شمېرل كيږي.

**پوهـه**:- كـه د ښځي خوندي په يوه اندازه مهر په نكاح وركړه سوي وې او امه ګانې يې تر هغه مقدار كمي يا بالا په نكاح وركړه سوي وې نو اعتـبار ولـور لـره د خونـدو دي، وهكذا الترتيب فى بنات العم والاخوات والعمات فتامل، در.

قـال" ولايعتـبر بامهـا وخالـتها اذا لـم تكونـا مـن قبيلـتها" او اعتـبار د مهـر مـثل پـه مـور سره د ښځي او يـا پـه خالـه سره د دې نـه كېږي چي مـور يـا خالـه د دې د قـوم او قبيلې څخـه د دې نـه وي حاصل داچي جانـب تـه د مـور اعتـبار نستـه مګر هلته چي مور يې د قوم څخه د پلار وي لكـه چي مـور يې د پلار د اكا لور وي نو د مور ولور يې په مهر مـثل كي د لـور اعتـبار لـري، كذا فى الهدايه. او ابـن ابي ليلى رحمة الله عليه وايي چي اعبتار د مهر مـثل په مور د ښځي دي او په قوم د مور، ولنا حديث ابن مسعود رضي الله عنه لها مهر مثل نسائها وهن اقارب الاب، كذا فى مجمع الانهر ودر.

قال القدوری رحمة الله علیه " ويعتبر في مهر المثل ان يتساوی المرئتان في السن والجمال والمال والعقل والدين والبلد والعصر" او معتبرېږي په مهر مثل کي چي سره برابري به وي دغه دوې ښځي يعني دوې خوندي او يا ښځه او عمه او يا ښځه او د اکا لور چي په دغو شيانو کي اول (۱) په سن کي يعني په عمر کي.

پوه شه:- چي مراد د مساوات څخه د سن دا نه دي چي په يوه ورځ او يا په يوه مياشت يا کال کي به دواړي زېږيدلي وي بلکه مراد دادي چي تر مابين د دوي په سن کي دونده فرق نه وي چي په هغه د دوي په مهر کي فرق راسي، دوهم ۲) په ښايست کي.

پوه شه:- چي مراد د مساوات د ښايست حقيقي مساوات نه دي مراد چي د امکان څخه وتلي کار دي، بلکه مراد دادي چي دونه فرق بې په ښايست کي نه وي چي په هغه سره د مهر فرق راځي.

دريم (۳) مساوات دي په مال کي ولو که د پلار ګنی مال وي يعني داسي به نه وي چي يوه ښځه د ډېر سرمايه داره کور وي او بله د مسکيني کورنی وي ولي په دې سره هم ولور فرق کوي او حقيقت برابري د مال هم نه ده مراد کما مر.

ځلورم (۴) په عقل او پوهي کي به برابری وي د دې څخه حقيقت برابري نه ده مراد بلکه دومره تفاوت به يې په عقل کي نه وی چي په ولور کي تفاوت راولی مثلا يوه ښځه ليونی وي، او يا پاګله په کار وبار د کوز نه پوهېږی او بله پر سد وي او په کاروبار پوه وي ولي په دې سره تفاوت په ولور کي راځي.

او پنځم (۵) په دینداري او تقوٰی کې برابري ده د دې څخه هم حقیقت برابري نه ده مراد بلکه یوه ښځه لمونځ کوي او روژه نسي وغیره او بله ښځه د لمانځه په غم کي نه وي، وهکذا الصوم وغیره من الامور الدینیه" او شپږم (۶) چي دغه دوې ښځي د یوه ښار وي مثلا ولي چي په ښارو کي هم د ښځو مهر سره متفاوت وي. ووهم (۷) او دا دوې ښځی به د یوه عصر وي ولي چي په تفاوت د زمانې سره هم مهرونه بدلېږي، زما په یاد دي چي تردې اوسنۍ سنه چي ۱۴۲۳ هجري قمري ده، پنځوس کاله د مخه د ښځو غالب ولور لس زره (۱۰۰۰۰) افغانۍ وو چي هغه تخمینا لس (۱۰) کالداري پاکستانۍ کېږي، او په اوسنۍ زمانه کی لږ ولور د ښځي یو لك (۱۰۰۰۰۰) کالداري دي، نو حاصل د دې متن دادي چي په نفس قرابت مذکوره سره د مهر المثل اعتبار نه کول کیږي حتٰی چي دغه دوې ښځي په مذکور فی المتن شیانو کي سره برابري نه دي.

پوه سه:- چي په فتح القدیر کې داهم زیاته کړی ده چي په بکارت او ثیبه کي به هم سره بابري وي یعني که یوه ښځه کونډه وي او بله باکره پېغله وي مهر مثل یې نه سره قیاسېږي، او په اخلاقو کي به هم سره برابري وي، که د یوې ښځي په گزاره کي ښه اخلاق وي، او بله بدپوزه بد اخلاقه وي، نو مهر مثل پر یوه اندازه نه کېږي، او په عیال درلودلو کي اونه درلودلوکي به هم سره بربري وي، نو که دوې (۲) دغه قریباني ښځی کونډیاني وې او یوې عیال درلودي او بلې نه درلودي مهر مثل یې نه سره قیاسیږی ولي چي د عیال داري کونډي څخه د خلگو بد راځي نو ولور یې سپك وي.

**مسئله**:- که د پلار ګنی د خوا په ښځو کي اشتراك او برابري په دغه مذکوزه او صافو کي نه پیدا کیدله نو اعتبار مهر مثل د بېګانه قوم په ښځو سره کیږي لکن هغه بیګانه قوم چي دغي ښځي ته چي موږ په تلاش کي د مهر مثل کي د دې یو په قومیت کي نژدې وي.

قال" ویجوز تزویج الامة مسلمة کانت او کتابیة ولایجوز ان یتزوج امة علی حرة ویجوز تزویج الحرة علیها" او روا دي په نکاح کول د مینځي که مسلمانه وي او که د اهل کتابو څخه وي یعني یو سړی کولای سي چي مینځه دبل سړي په نکاح کړي.

**فائده**:- که دغه سړي لره طاقت مالي د نکاح د حري ښځي وي او که نه وي او امام شافعي رحمة الله علیه وایي که یې طاقت د نکاح د حري ښځي وو نو د مینځي نکاح نه ده ورته روا، او د حنیفیانو رحمهم الله دلیل عموم دي د دغه آیت، واحل لکم ماوراء ذالکم الآیة" ولي چي مینځه په ماوراء کي د محرمات داخله ده، او نه ده روا سړي ته چي حره ماینه لري اودی پر هغې باندي مینځه په نکاح کوي، لقوله علیه الصلوة والسلام لاتنکح الامة علی الحرة" او روا ده د حري ښځي کول پر مینځه باندي.

**پښوونه**:- چي په نکاح کي د مسلماني مینځي خو اختلاف نسته ولي چي دا مسلمانه ده نو د مسلماني نکاح رواده لکه حره او په کتابیه مینځي کي امام شافعي رحمة الله علیه زموږ څخه مخالف دي، دی وایي چي د کتابیه مینځي نکاح ومسلمان ته نه ده روا زموږ دلیل هغه آیت سابق دي چي عام دي، او بل داچي د کتابیه مینځي وطي په ملك یمین سره مسلمان ته روا دي نو په ملك نکاح سره په طریق اولي روا دي، او روا ده په نکاح کول د حري ښځي پر مینځه باندي.

قال" وللحر ان يتزوج اربعا من الحرائر والاماء وليس له ان يتزوج اكثر من ذالک" او حر سړي ته روا ده چي په نكاح كړي څلور مايني كه حري وي او كه مينځي، او د لره نسته يعني نه ده روا چي بالاتر څلور په نكاح كوي، قال الله تعالى فانكحوا ماطاب لكم من النساء مثنى وثلاث ورباع" او دا تصريح په اعداد مذكوره وسره په مقام د امتنان الهي دلالت كوي پر عدم جواز د زيادت پر څلورو ماينو، كما تقرر فى كتب التفاسير.

**فائده**:- نكاح د څلورو ښځو كه څه هم روا ده لكن كه سړى پردې ببرېدى چي زه به عدالت ددغه متعددو ماينو تر مابين مراعات نه كړم نو بيادي يوه ماينه وكړي، لقوله تعالى فان خفتم ان لاتعدلوا فواحدة" يعنى كه تاسي ببريدلاست چي زه به عدالت وه نه كړم د ډېرو ماينو ترمابين نو بيا يوه ښځه په نكاح كوي تاچي تر درانه بار د ظلم لاندي رانه سي، په صحيح حديث شريف كي راغلي دي چي هغه سړى چي متعددي مايني يې درلودلې وي، او عدالت يې ترمابين د هغو نه وي كړي هغه په ورځ د قيامت داسي حشرگاه ته راځي چي يو اړخ بې خړيږي.

**تجربه**:- په اوسنى زمانه كي ماته په تجربه ثابته سوې ده چي د ډېرو ماينو څښتن هرګز عدالت نه سي كولاى الا ماشذ ندر، يو سړى ما وليدي چي اوله ماينه يې ډېره بدرنګه تور وه او څو عياله يې هم څندي سوي وه نو بيا چي يې دنيا ډېره سوه بله ښائسته ماينه يې وكړه اخير بې هغه بدرنګه طلاقه كړه سره دعيال يې د كوره ويستله.

**پوه سه**:- چي که څه هم سړی تقوٰی داره هم وي او قصد د عدالت هم لري لکن ماينې يې عدالت ته نه پرېږدي ولي چي په اوسنۍ زمانه کي خصوصا په پاکستان کي او بيا په کوټه کي په نامه د ملايانو جادوګران سحر ګران کوډګران سته چي د سلو روپو د پاره مثلا خپل اسلام دلاسه ورکوي او دغه تعويذونه د تفريق او د بغض د مېړه او ماينې ترمابين کوی، کما قال الله تعالی عز سلطانه يفرقون به بين المرء وزوجه" نو ښځي په دغو کوډګرانو آموخته سوي دي او ورته تعويذونه راوړي په خپله غاړه او په مېړه يې چيښي حتٰی چي د مېړه د دماغ څخه تقوٰی او عدالت بېخي سلب کړي، په دغسي صرف په نامه ملايانو باندي بايد موږ دا بيت ووايو.

برزبانت يا صمد پيدا ودردل يا صنم
ای به باطن کافرو ظاهر مسلماني چي سود.

قال القدوری رحمه الله " ولايتزوج العبد اکثر من اثنتين" او نه به په نکاح کوي مريي بالاتر دوو ښځو ولي نعمت او عذاب د مريي خو نيمی دي د حر سړي، او شك نسته چي نکاح خو نعمت دي، درويش.

قال" فان طلق الحر احدی الاربع طلاقا باينا لم يجزله ان يتزوج رابعة حتٰی تنقضی عدتها" که حر سړي طلاقه کړه يوه د څلورو ماينو څخه يعني چي د ده په نکاح کي وي په طلاق بائن سره که مخفف وي او که مغلظ وي، نو نه ده روا ده لره چي په نکاح کوي څلورمه ماينه تر څو پوري چي تېرېږي عدت د طلاقي سوي ښځي، د دې مسئلې دليل دادي چي نکاح د طلاقي سوي ښځي که څه هم په طلاق بائن سره پوره سوه لکن چونکه حکم د نکاح چي عدت د باقي

دي نو ګویا نکاح من وجه باقي ده، نو که دی ځلورمه ماینه وکړي نو حکما د ده ماینې پنځه سوې، در.

او د هم دې سببه که سړي ماینه طلاقه کړه په بائن طلاق سره نو دغه سړي ته ناروا ده چي د هغې ماینې خور په نکاح کوي تر هغو پوري چي د طلاق کړه سوي ماینې عده یې نه وي تېره سوې. لانه یلزم الجمع بین الختین حکما وهو حرام.

**پوهنه:-** چي که مېړه هغه ماینه چي ده طلاقه کړه دخول یې نه وو په کړی نو ده ته ځلورمه ښځه روا ده، لعدم العدة فیرفع بطلاقها النکاح من کل الوجوه. او همداغه حکم دي په دوو خوندو کي چي طلاقي کړي خور طلاق یې قبل الدخول بها وي لعدم الزوم جمع الاختین حکما ایضا بعدم العدة فافهم. در. ط.

**نوربیښتي وایي:-** چي په دغو دواړو مسئلو کي امام شافعي رحمة الله علیه مخالف دي، والتفصیل فی الشروح المطوله ودلائل الجانبین ایضا یطلب هناك.

قال المصنف رحمة الله علیه " واذا زوج الامة مولاها ثم اعتقت فلها الخیار حرا کان زوجها او عبدا" که په نکاح ورکړه مینځه بادار د دې وروسته بیا دا مینځه ازاده کړه سوه نودې لره اختیار دي که د هغه مېړه سره اوسي یعني چي بادار هغه ته دا په نکاح ورکړي ده او که د هغه مېړه څخه جلا کیږي کې مېړه حروي او که مریي وي، او امام شافعي رحمة الله علیه وایي کې مېړه حر وو بیا دې لره اختیارنسته زموږ دلیل دادي چي بریره چي د عائشه رضي الله عنها مینځه وه او هغې ازاده کړه او دا په نکاح کي د مغیث وه نو علیه السلام بریره ته داسي وویله، ملکت

بضعك فاختياری" يعني ته مالك سوې د خپل بلاګی نو ته اختيار لري، د دې حديث آخر داسي دي چي بريره وويل چي مغيث نه مېړه کوم راوي وايي چي مغيث په بريره پسي ګغاستي او اوښکي يې په ږيره کې بهېدلې چي زما څخه مه جلا کيږه او بريره ويله چي هرګز دي نه مېړه کوم نو عليه الصلوة والسلام وخلګو ته وويله چي تعجب دي وه محبت ته د مغيث د بريره سره او وبغض ته د بريره د ده سره بيا عليه الصلواة والسلام وه بريره ته وويله چي کاشکي ته د مغيث څخه ځان نه کې جلا بريره ورته وويل که ستا دا حکم وي خوزې منم عليه الصلوة والسلام ورته وويل چي حکم نه دي بلکه د مغيث شفاعت درته کوم بريره ورته وويل چي حکم نه دي نو زه مغيث نه مېړه کوم که څه ماته څوك اويازره (۷۰۰۰۰) اوښان راکوي، او عقلي دليل زموږ دادي؛ کمافي نور الانوار وغيره منكتب الاصول والفقه" چي د طلاق اعتبار په ښځه پوري اړه لري باتفاق آلاراء، يعني که ښځه مينځه وي په دوه طلاقه مغلظه طلاقيږي کې مېړه حر وي او که مريي، او که ښځه حره وه نو طلاق مغلظ د دې درې (۳) طلاقه دی، نوښځه چي مينځه وي او بيا ازاده کړه سي د مېړه ملك پردې سختيږي کې مېړه حر وي او کې ميړه مريې وي يعني په درې طلاقه د مېړه د ملك څخه وځي نو چونكه ضرر ودې ته متوجه دي نو ځکه اختيار د دې دي، او امام شافعي رحمه الله دا دليل وايي چي عائشه رض وايي چي عليه الصلوة والسلام چي بريره ته اختيار ورکړي په دې سبب چي مېړه يې مريي وو او کې مېړه حر واي نو بې اختيار نه وايي ورکړي موږ وايو چي دا د عائشه رض اجتهاد وو نو د صريح نص سره مقابله نه سي کولای يعني ملکت بضعك فاختاری.

**درویش وایي**:- هذا ما اخذته ولخصته من کتب متعددة من الاحادیث والفقه والاصول.

قال القدوری رحمه الله " وکذا لک المکاتبة"او داغسي حکم دي د مکاتبي مینځي چي په اجازه د بادار يې مېره کړي وي او بیا آزاده سي یعني هغه هم د خپل ځان اختیار لري.

قال المصنف رحمه الله " وان تزوجت امة بغير اذن مولاها ثم اعتقت صح النكاح ولاخيار لها" اوکه چېري مینځي مېره وکړي بېله اجازې د بادار ددې نو بیا آزاده سوه هغه نکاح چي دې کړې وه هغه صحیح سوله لکن دې لره خیار عتق نسته، وجه د صحت د نکاح داده چي مینځه خو عاقله بالغه ده اهل د تصرف ده په ځان او مال کي لکن د بادار حق مانع د صحت د نکاح وو د اول الامر څخه حتی چي د دې دغه نکاح موقوفه وه پر اجازه د بادار نو چي دا آزاد سوه هغه مانع زائل سو نو ځکه هغه د دې نکاح نافذه سوه، او خیار عتق چي نه لري په دې سبب چي نفوذ د نکاح ددې خو پسله عتق څخه د دې حاصل سو او پسله حریت د دې خو پردې ملك د مېره نه سختېږي بلکه د حري ښځي طلاق ددې برخه دی او اختیار وه مینځي ته چي وو خو په سبب د ازدیاد الملك وو کما مر و لم یوجد هنا ذالك فافهم، درویش.

قال القدوری رحمه الله " ومن تزوج امرئتين في عقدة واحدة احداهما لايحل له نكاحها صح نكاح التى يحل له نكاحها وبطل نكاح الاخرى" او که یو سړی په نکاح کړي دوې ښځې په یوه عقد سره او یوه د د غو ښځو څخه داسي وه چي نکاح يې وده ته نه وه

روا مثلا رضاعي خور يې وه نو صحيح ده نکاح د هغې ښځې چې نکاح يې وده ته روا وه او باطله ده نکاح د هغې بلې ښځې.

**پوښتنه**:- په کتاب البيوع کي وايي چي که يوچا حر او مربي په يوه عقد پر بل چا خرڅ کړه د دواړو عقد باطل دي حر خو په دې سبب چي دي محل د خرڅېدو نه دي، او د مربي عقد په دې باطل دي چي بائع قبول د حر، د مربي په بيع کي شرط وګرځاوه ولي چي عقد د دواړو يو دي نو په دې دوو ښځو کي هم بايد د دواړو عقد باطل وايي ولي چي په دې نکاح کي خو هم قبول د محرم ښځي شرط د نکاح د حلالي ښځي ګرځول سوي دي، لاتحا دالعقد فما الفرق؟

**ځواب**:- اشتراط په عقد نکاح کي خو هم موجود دي لکن په اتفاق سره عقد نکاح په شروط فاسده وو نه فاسدېږي او بيع په شرط فاسد فاسدېږي، کذا فى الهدايه ثم قال فى الهدايه چي هغه مهر مسمى ټوله د حلالي ښځي حق دی په نيز د امام اعظم رحمه الله او په نيز د يارانو رحمهم الله مهر مسمىٰ دي د دې پر مهر مثل وويشي هر څونه چي د حلالي ښځي حق سو هغه دي ودې ته ورکړي باقي ساقط دي.

قال المصنف رحمه الله " واذا كان بالزوجة عيب فلاخيار لزوجها" که چېري وو په ماينه کي يو عيب يعني داسي عيب چي مانع بالکليه د جماع نه وي که څه هم يوڅه خلل په جماعو کي واقع کوي نو خيار مېړه لره نسته يعني که عقد نکاح باقي پرېږدي او کې فسخ کوي ولي د مېړه حق پر ماينه باندي د عقد له سبب خو وطي دي او عيب خو وطي بېخي د مابين څخه نه وړي، کما قلنا البته څه خلل په وطي کي راولي مثلا داسي عيب وي چي د مېړه به په سبب د صحت او ځواني

**درويش وايي**:- هذا ما اخذته ولخصته من كتب متعددة من الاحاديث والفقه والاصول.

قال القدوری رحمة الله عليه " وكذا لک المكاتبة"او داغسي حكم دي د مكاتبي مينځي چي په اجازه د بادار يې مېړه كړي وي او بيا آزاده سي يعني هغه هم د خپل ځان اختيار لري.

قال المصنف رحمة الله عليه " وان تزوجت امة بغير اذن مولاها ثم اعتقت صح النكاح ولاخيار لها" اوكه چېري مينځي مېړه وكړي ببله اجازې د بادار ددې نو بيا آزاده سوه هغه نكاح چي دې كړې وه هغه صحيح سوله لكن دې لره خيار عتق نسته، وجه د صحت د نكاح داده چي مينځه خو عاقله بالغه ده اهل د تصرف ده په ځان او مال كي لكن د بادار حق مانع د صحت د نكاح وو د اول الامر څخه حتی چي د دې دغه نكاح موقوفه وه پر اجازه د بادار نو چي دا آزاد سوه هغه مانع زائل سو نو ځكه هغه د دې نكاح نافذه سوه، او خيار عتق چي نه لري په دې سبب چي نفوذ د نكاح ددې خو پسله عتق څخه د دې حاصل سو او پسله حريت د دې خو پردې ملك د مېړه نه سختېږي بلكه د حري ښځي طلاق ددې برخه دی او اختيار وه مينځي ته چي وو خو په سبب د ازدياد الملك وو كما مر و لم يوجد هنا ذالك فافهم، درويش.

قال القدوری رحمة الله عليه " ومن تزوج امرئتين فی عقدة واحدة احداهما لايحل له نكاحها صح نكاح التی يحل له نكاحها وبطل نكاح الاخرى" او كه يو سړی په نكاح كړي دوې ښځې په يوه عقد سره او يوه د د غو ښځو څخه داسي وه چي نكاح يې وده ته نه وه

روا مثلا رضاعي خور يې وه نو صحيح ده نكاح د هغې ښځې چې نكاح يې وده ته روا وه او باطله ده نكاح د هغې بلې ښځې.

**پوښتنه**:- په كتاب البيوع كي وايي چې كه يوچا حر او مربي په يوه عقد پر بل چا خرڅ كړه د دواړو عقد باطل دي حر خو په دې سبب چې دي محل د خرڅېدو نه دي، او د مربي عقد په دې باطل دي چې بائع قبول د حر، د مربي په بيع كي شرط وګرځاوه ولي چې عقد د دواړو يو دي نو په دې دوو ښځو كي هم بايد د دواړو عقد باطل وايي ولي چې په دې نكاح كي خو هم قبول د محرم ښځي شرط د نكاح د حلالي ښځي ګرځول سوي دي، لاتحا دالعقد فما الفرق؟

**ځواب**:- اشتراط په عقد نكاح كي خو هم موجود دي لكن په اتفاق سره عقد نكاح په شروط فاسده وو نه فاسديږي او بيع په شرط فاسد فاسديږي، كذا في الهدايه ثم قال في الهدايه چې هغه مهر مسمى ټوله د حلالي ښځي حق دی په نيز د امام اعظم رحمة الله عليه او په نيز د يارانو رحمة الله عليه مهر مسمیٰ دي د دې پر مهر مثل وويشي هر څونه چې د حلالي ښځي حق سو هغه دي ودې ته وركړي باقي ساقط دي.

قال المصنف رحمة الله عليه " واذا كان بالزوجة عيب فلاخيار لزوجها " كه چېري وو په ماينه كي يو عيب يعني داسي عيب چې مانع بالكليه د جماع نه وي كه څه هم يوڅه خلل په جماعو كي واقع كوي نو خيار مېړه لره نسته يعني كه عقد نكاح باقي پرېږدي او كي فسخ كوي ولي د مېړه حق پر ماينه باندي د عقد له سبب خو وطي دي او عيب خو وطي بيخي د مابين څخه نه وړي، كما قلنا البته څه خلل په وطي كي راولي مثلا داسي عيب وي چې د مېړه به په سبب د صحت او ځواني

سره هره شپه وطی زړه غواړي او د ماینې په سبب د عیب چي په دې کي سته طاقت یې نه لري، او چي په مرګ سره د ماینې نکاح نه فسخه کېږي، نو په خلل د وطي به څرنګه مېړه خیار د نسخي د عقد ولري، نو بناء علی هذا که ماینه ګوډه وي او یا ړنده وي یا کنړه وي مثلا مېړه لره خیار د فسخي نسته ولي په دغو عیبو کي خو خلل په خدمت د کور راخي وطي خو کولای سي.

**پوښتنه**:- مېړه څه ضرورت لری وه خیار الفسخ ته کې د عیب سره نه وه خوښه خو طلاقه دې کړي څان دي ځندي خلاص کړي؟

**ځواب**:- په طلاق کي خو د میړه تاوان دي ولي که یې قبل الدخول طلاقه کړي نیمي ولور پر لازم دي، او کې بعدالدخول طلاقه کړي پوره ولور پر لازم دي او په فسخه کي د عقد خو د ته دنیاوي هیڅ تاوان نه راجع کیږي.

قال القدوری رحمة الله عليه " واذا كان بالزوج جنون او جذام او برص فلا خيار للمرئة عند ابى حنيفة رحمة الله عليه وابى يوسف رحمة الله عليه وقال محمد رحمة الله عليه لها الخيار" او که په مېړه کي لېونتوب وو یعني لیونی وو او یا اتشك وو چي هغه یو مایوس العلاج مرض دي چي پوست یې سره چوي او او به ترتوېږي او غوښي د اندامو یې توېږي اعاذنا الله من المرض المذکور،

او یا پیس وو چي یو معلوم مرض دي چي نه په یوناني دوا وو جوړېږي او نه په عصري ډاکټري علاج ښه کېږي نو په درو سرو عیبو کي ښځي لره خیار د فسخي د عقد نسته په نزد د شیخینو رحمة الله عليه او امام محمد رحمة الله عليه وایي چي ښځي لره خیار دفسخې د

عقد سته امام محمد رحمه الله دغه مرضونه پر جب او عنت قیاسه وي کما سیاتی لپاره د دفع د ضرر د ښځي څخه باید دې لره خیار د فسخ وي بخلاف د دې چی په مابنه کي دغه عیبونه وی نو مېړه لره خیار د فسخ نسته ولي که ددغو عیبو په سبب د ماینې څخه خوا ګرځي خو په یو لرمالي تاوان یعني طلاق قبل الدخول به ځان ځندي خلاص کړي او ماینه خو د طلاق حق نه لري، شیخان رحمه الله وایي چي دا قیاس مع الفارق دي ولي چي په جب او عنت کي خو هغه مطلب چي نکاح د هغه د شروع د بالکلیه فوت دي یعني وطي او جماع نو ځکه ماینې لره خیار سته او په دغو امراضو کي خو مېړه وطي ورسره کولای سي د ماینې به بد ځندي راځي نو که دې لره خیار جائز سي د مېړه حق چي وطي دي بالکلیه د مابین څخه ځي، کذا فی الهدایه، ودر.

قال القدوری رحمه الله " واذا کان الزوج عنینا اجله الحاکم حولا فان وصل فی هذه المدة فلا خیار لها والا فرق بینهما ان طلبت المرئة ذالک والفرقة تطلیقة بائنة ولها کمال المهر اذا کان قد دخل بها" او که میړه عنین وو.

**پوه سه**:- چي عنین هغه چاته وایي چي د جماعو قدرت نه لري نو بعض خلګ د اصل خلقت څخه عنین وي چي د هغه هیڅ علاج نه سي کېدای نه په دوا او نه په تعویذ او څابنت،

او بعض خلګ د جهت څخه د ناجوړی یا د جهته د ضعف جماع نه سي کولای د هغه علاج په دوا د طبیبانو کیږي چي د مرض دوا ورکړي یا د قوت دوا ورکړي او بعض دکبر سن په سبب چي دېر سپین ږږی وي او د دې علاج هم نه کیږي

مګر په لوی مصرف د روپو چي ډاکټران د ده د بلاګي سره تخته تړی چي سیده سي او بیا هره ورځ په زر زر کالداري پېچکاري ورلګوي، او په بعض خلګو نر یا ښځي جادو کړي وي او د جماعو څخه یې بند کړي وي ددې علاج په قرآني آیاتو سره کیږي کما جربناه مرارا،

او بعض خلګ د خپلي ماینې سره جماع نه سي کولای او د بېګانه ښځي سرې کولای سي هغه نو د ماینې د خوا څخه یو جادو په سوي وي چي د دې بد ځندي راځي نو د ځانه څخه یې بند کړی وي د دې غرض داوي چي ګوندي طلاقه مي کړي بل مېړه به وکړم د دې علاج په تعویذه او ځاښت سره کیږي کما جربته مرارا ایضا، او بعض د کونډي سره وطي کولای سي ولي چي د ده غنړ ډېر کلك نه دریږي نو د کونډي بلاګۍ خو فراخه وي نو مړ ژواندي غنړ هم په ننوزي، او د پېغلي سره جماع نه سي کولای ولې د هغې کوس خو تنګ وي د ده آله نه په ننوزي د دې علاج په طبي دوا وو کېږي چي آله ورسختته کړي وهذا اقسام العنین، نو عنین ته دي مهلت ورکړي حاکم یعني قاضي یو کال نو که مېړه د یوه کال په دوران کي دې ته ورسېدي یعني وطي یې ورسره وکړې نو خیار نسته ښځي لره ولي د دې مطلب چي وطي، وې پوره سو،

اوکې په یوه کال کي جماع نه وکړه نو قاضي دي حکم په جلاوالي د دوي دوو وه کړي، که ښځي طلب د جلاوالي کاوه یعني که ماینې طلب د فرقت کاوه ولي چي وطي خو حق ددې دي نو دا چي تر خپل حق تېره سوه نو قاضي څه کار په لري او که قاضي تفریق وکړي دا تفریق طلاق بائن دي او ماینې لره پوره ولور ستته که چېري مېړه د دې سره خلوت صحیحه کړي وو، ولي چي ښځي خو

خپله بضع مېړه ته په خلوت سره تسليم کړه نور نو وطي خو د ده کار دي نو دې چي معوض تسليم کړي نو دا د پوره عوض حق داره ده چي ولور ذي. فی الهدايه تحت قول المصنف رحمة الله عليه جلد الحاکم آه" چي د اتاجيل مروي دي د عمر او علی او د ابن مسعود رضي الله عنه څخه، او عقلي دليل د تاجيل دادی چي مابينې لره خو حق د وطي ثابت دي شرعا ، او د مېړه وطي نه کول شايد د آفت اصلي او خلقي څخه وي او شايد دا امتناع د وطي به عارضي وي، نو د دې دوو آفتوو د پېژندنې د پاره مدت غوښت غواړي نو چونکه کال مشتمل دي پر څلور فصله (۱) دوبی (۲) ژمی (۳) منی (۴) پسرلی، نو که عارضي آفت وو نو د فصلو په تبدُل به يې د فعه وسي نو چي کال تېر سي او آفت دفعه نه سي نو معلومه داده چي دا آفت اصلي دي او قابل د جبران نه دي نو امساك بالمعروف د ښځي خو فوت سو نو پر مېړه ايله کول بالاحسان لازم سو، قال الله تعالی فامساك بمعرف او تسريح باحسان" نو چي مېړه ماينه نه ايله کوي نو قاضي په ځاي کي د ده ولاړ دي هغه دي تفريق د دوي دوو تر مابين وکړي، او فقهی قانون دي چي هر تفريق چي د قاضي د خوا وسي هغه طلاق بائن دي، فکذا هذا انتهی مع زيادة ونقصان.

قال القدوری رحمة الله عليه" وان کان مجبوبا فرق القاضی بينهما فی الحال ولم يوجله" او که مېړه مجبوب وو يعني په بېخ کي غنړ او خوټي دواړه ځندي پرې کړه سوي وي کما فی البنايه نو قاضي دي دستي تفريق وکړي او مهلت دي نه ورکوي لعدم الفائدة.

ولخصی يوجل کما يوجل العنين" او خصي ته يعني چي ذکر يې پاته وی صرف يې خوټې ځند قطع کړي وي مهلت ورکوي لکه چي عنين

ته یې ورکاوه ولي شاید د خصي یورګ د شهوت پاته وي او هغه رګ به ژوندی سي او د ده غنړ ته به حرکت ورکړي او وطي به وکړای سي که څه دا ډېره نادره خبره ده لکن احتمال یې سته، او قاضي دي په تفریق کي د مهرړه او ماینې ډېر احتیاط وکړي نو د یوه کال په تېرېدو سره دا احتمال هم قطعه کیږي، در.

قال المصنف رحمه الله " واذا اسلمت المرئة وزوجها كافر عرض عليه القاضى الاسلام فان اسلم فهى امرئته وان ابى عن الاسلام فرق بينهما وكان ذالک طلاقا بائنا عند ابى حنيفة ومحمد رحمهما الله وقال ابو يوسف رحمه الله هو الفرقة بغير طلاق" او كه اسلام راوړی ښځي او مېړه یې کافر وو نو پېش دي کړي پر ده قاضي دین د اسلام یعني ورته وه دي وایي چي ته کلمه ووایه مسلمان سه نو که هغه اسلام قبول کړی نو هغه ماینه دده چي د مخه مسلمانه سوې وه دده ماینه ده او کي منع وکړه د اسلام څخه نو قاضی دي دوي دوه سره جلا کړي، او دغه د طلاق جلا کول د قاضي طلاق بائن دي یعنی که وروسته بیا مسلمان هم سي وه ماینې ته رجوع نه سي کولای او احکام د طلاق پر مرتب دي لکه عدت د ماینې په نېز د طرفینو رحمهما الله ، او امام ابو یوسف رحمه الله وایي چي دا جلا کول جلا کول دي بېله طلاقه یعني احکام د طلاق نه پر مرتبېږي ولي چي ماینې لرې عدت نسته.

**درویش وایي**:- چي زموږ د مذهب دلیل هغه واقعه ده چي په خلافت د امیر المومنین عمر بن الخطاب رضي الله عنه پېښه سوه چي یو سړي د بني تغلب

ښځه چي ماينه يې نصرانيه وه هغې ايمان راوړي نو عمر ﷺ يې وه مېړه ته وويل چي ته مسلمان سه ورنه ماينه دي در ښځه جلا کوم هغه اسلام نه کي قبول نو حضرت عمر ﷺ يې ماينه ځندي جلا کړه، وعن ابن عباس ﷺ مثل تلك الواقعه" او دا فيصله د عمر ﷺ په حضور کي د صحابه کرامو ﷺ صادره سوه هېڅ چا انکار پر ونه کړي فکان اجماعا منهم على ذالك، او امام شافعي رحمه الله وايي که اسلام د ښځي قبل الدخول وو نو د مېړه ښځه بائن سوه في الحال، او که اسلام د دې بعد الدخول وو نو د دې بينونت د عدې تر تيريدو پوري معطل دي نو که په دغه وقت د عدې کي مېړه مسلمان سو نو د ده ماينه ده، او کې عده تېره سوه مېړه يې مسلمان نه سو نو فرقت ددوی تر مابين واقع سو.

قال القدوری رحمه الله " وان اسلم الزوج وتحته مجوسية"

**پوه سه**:- چي مصنف رحمه الله مجوسيه وويله د دې سببه که ماينه د مسلمان جديده کتابيه وه پر هغې عرضول د اسلام نه غواړي ولي چي نکاح د کتابيه خو مسلمان ته روا ده، ابتداء فبقاء اولى بخلاف المجوسيه" چي د هغې نکاح وه مسلمان ته نه ابتداء روا ده او نه بقاء.

قال" عرض عليها الاسلام فان اسلمت فهى زوجته وان ابت فرق القاضى بينهما ولم تكن الفرقة طلاقا" ولي چي دا فرقت خو د ښځي د خوا پيښ سو او ښځه حق د طلاق نه لري.

"فان كان دخل بها" يعني وطي يې ورسره کړي وې.

فلهاكمال المهر" ولي چي په وطي سره ولور ټينګ سو"

وان لـم يكـن دخـل بهـا فـلا مهر لها" ولي خو دا مفارقت ددې د خوا پيدا سو نو لکه ردت د دې دي او يا د مهره د زوي سره وطي وکړي.

**ترجمه**:- که چېري مېړه مسلمان سو او دده ماينه مجوسيه يعني اتش پرسته وه نو قاضي دې پېش کړي وه ماينې ته دده اسلام که چېري دې اسلام قبول کي نو دا د مېړه ماينه ده، او که ښځي د اسلامه څخه منع وکړه نو قاضي دې جلا والى وكړي تر مابين د دوي، او دا جلاوالى طلاق نه دي نو که چېري مېړه د ډې سره په وقت کي د کفر وطي کړي وي نو دې لره پوره ولور دي او که يې وطي نه وي ورسره کړي نو دې لره ولور نسته، مجمع الانهر هدايه، درويش.

قـال المصنف رحمة الله عليه " واذا اسلمت المرئة فى دار الحرب لم تقع الفرقة عليها حتى تحيض ثلث حيض فاذا حاضت بانت من زوجها" او که اسلام راوړي ښځي يعني چي د کافر ماينه وه پردې جلاوالي د مېړه څخه نه واقع کيږي تر هغو چي درې حيضه ودې ته ورځي او چي درې حيضه وره غله دا د مېړه څخه بائنه سوه، په هدايه کي وايي چي اسلام دِ دې خو سبب د فرقت نه دي ولي چي اسلام خو حافظ د حقوق دي سالب د حقوق نه دي، بلکه سبب د فرقت اباء د جانب آخر د اسلام څخه او اباء د جانب آخر په عرض د قاضي د اسلام پر جانب آخر راځي او په دار حرب کي خو دا عرض ممکن نه دي ولي چي هلته خو قاضي نسته اونه ولايت د اسلام سته او فرقت خو ضروري دي ولي چي نکاح د مسلماني ښځي د کافر سره نه ابتدا رواده او نه بقاء، نو د مجبوريت د کبله مونږ شرط د فرقت چي درې حيضه دي په ځاى کې

د فرقـــت ودر وي، نوچـــي درې حيضـه تېر سي نو داده کافـر مېړه ښځه خلاصه سوه په دې مسئله کي د مدخول بها او غير مدخول بها فرق نسته، او که چېري ښځي ته حيض نه ورتلی په سبب د کوچنوالی او يا د سپين سرتوب پـه سبب نـو بيا درې مياشتی وروسته پردې فرقت د مېړه واقع کېږي، هدايه، درويش، مجمع الانهر.

قـال المصـنف رحمة الله عليه " واذا خـرج احـد الزوجيـن اليـنا مـن دار الحـرب مسـلمِا وقعـت البينونة بينهـما " او که راووتی يو د مېړه يا مايني څخه زموږ دار الاسلام تـه د دار الحرب څخـه چي مسلمان سوی وو، واقـع سو جلا والی په مابين کي د دوی دوو او امام شافعي رح وايي چي پـه اخـتلاف د دار الاسلام او دار الحـرب بينونـت فرقـت نـه راځي، و الدلائل فی الشروح المطوله.

وان سبی احمدهما وقعـت البينونة بينهما وان سبيا معًا لم تقـع البيـنونة" او کـه يـو د مېړه او مايني څخه په مينځي توب يا مريي تـوب ونـيول سول جدايي يې واقـع سوه او کـه دواړه پـه سبي کي ونيول سول جدايي نه ده واقع.

پـه اوله مسئله کي چي يو ددوی دوو څخه په سبي راوستل سي که څه هم پر يوه ديـن وي لکـن چي دار مختلف سو نـو منافع د نکاح يې سره قطع سوه نو په بقا کي د زوجيت ددوی څه فائده ده.

او پـه دوهمـه مسـئله کـي چي دواړه پـه سبي راوستل سي هم يې دين سره يو دي او هم يې دار سره يو دي نو د قطع د نکاح هيڅ وجه نسته.

قـــال" واذا خرجـــت اليـــنا مهاجرة جاز لها ان تتزوج فی الحال فلا عدة عليها عند ابی حنيفة رحمه الله فان كانت حاملا لم تتزوج حتی تضع حملها" او كه ښځه يعني ماينه د يو كافر موږ ته يې هجرت وكړي يعني دار اسلام ته راغله معنا دا چي مسلمانه سوي وه او مېړه دورې په دار حرب كي پاته سو نو دې ته روا ده چي دستي بل مېړه وكړي او پر دې باندي عدت هم نسته په نېز د امام صاحب رحمه الله تعالى ولي چي هم دين بدل سو او هم دار او عده خو د پاره د احترام د نكاح ده، د كافر نكاح احترام نه لري او كه چيري دې حمل درلودي د كافر مېړه څخه نو تر هغو پوري به نكاح نه كوي چي لنګه سوې نه وي

**درويش وايي**:- چي دا د امام اعظم رحمه الله څخه صحيح روايت دي او په بل روايت كي وايي چي نكاح كول ورته روا دي مګر مېړه به وطي نه ورسره كوي تاچي د بل پر كښت دې اوبه ونه لګوي چي دا په شريعت پاك كي ناروا ده، او كه مېړه د ښځي هجرت وكړي او ښځه په دار كفر كي پاته سوه بيا په اتفاق د درو سره امامانو زموږ د مذهب پردې باندي عده نسته ولي چي عده اسلامي حكم دي په دار كفر كي نه اجراء كيږي، او د منځي د هجرت په مسئله كي ياران رحمهم الله وايي چي پردغه ښځه عده سته ولي چي ددې قطع د نكاح هلته وسوله چي دار اسلام ته داخله سوه نو پردې مراعات د اسلامي احكامو لازم دي، يعني چي عده ده، او امام اعظم رحمه الله وايي چي عده خود جهت څخه د احترام ده، او بتباين الدار لم يبق النكاح حتي يلزم عليها احترامه ،كذا فی مجمع الانهر وكذا فی در والهدايه.

قـال القـدوری رحمة الله عليه" واذا ارتـد احد الزوجين عن الاسلام وقعـت البيـنونة بيـنهـما وكانـت الفـرقة بيـنهما بغـير طـلاق"
او داهم مذهب دي د شيخينو رحمهما الله او امام محمد رحمة الله عليه وايي که ردت د مېړه د خوا وو نو طلاق دي ولي مېړه اهل د طلاق دي او که ردت د ښځي د خوا وو بيا طلاق نه دي ولي ښځه اهل د طلاق نه ده، او امام اعظم رحمة الله عليه وايي چي ردت خو منافي د نکاح دي او طلاق خو رافع د نکاح دي، فالجمع بينهما کالجمع بين الضب والنن، جوهره، زياده.

**ترجمه**:- که مرتد سو د اسلام څخه يو د مېړه او ماينې څخه واقع سوه جدائي په مابين کي د دوي او جدائي هم بې طلاقه ده، وقد مر ههنا عنقريب والاختلفا فيه.

فـان کـان الـزوج هـو الـمرتد وقـد دخـل بهـا فلهـا کمـال المهـر"
ولي چي مهر قرار پيدا کړي په دخول سره.

وان لـم يدخـل بهـا فلهـا نصـف المهـر" ولي چي دا فرقت د مېړه د خوا پېښ سو د مخه تر دخول نو حکم يې د طلاق قبل الدخول دي، جوهره.

وان کانـت المـرئة هـي المـرتدة فـان کـان قبـل الدخـول فـلا مهـر لهـا" ولي چي دې خپله بضعه د مېړه څخه منع کړې په ارتداد سره نو حکم د طلاق قبل الدخول نه ورکول کېږي ولي چي طلاق خود ښځي د خوا څخه نه وي.

وان کانـت الـردة بعـد الدخـول فلهـا المهـر" ولي چي په دخول سره مهر مستحکم سو په ردت نه باطلېږي.

**ترجمه**:- که مرتد سو يو د ميړه او مايني څخه د اسلام څخه جدائي خو واقع سوه او دا جدائي هم طلاق نه دي نو که ميړه مرتد وو او وطي د دې سره کړي وي نو دې لره پوره ولور سته او کې وطي نه وي ورسره کړي، نو دې لره نيمى ولور حق دي او که ښځه مرتده سوې وه نو که د مخه تر وطي دا مرتده سوې وه نودې لره هيڅ ولور نستهٔ او که ردت د ښځي بعد الوطى وو نو دې لره پوره ولور دي وقد مر الدلائل لتلك المسائل.

قال المصنف رحمه الله "**ولو ارتدا معا ثم اسلما معا فهما على نكاحمها**" او که مرتد سوه ميړه او مايـنه دواړه يـو ځـاي او بيايې وروسته اسلام راوړي يو ځاي نو دوي پر خپل نكاح پاته دي، وفى شرح الاقطع والهدايه، چي دا حكم استحساني دي او قياسي حكم دادي چي فرقت دي واقع سي، واليه ذهب زفر رحمه الله والشافعي رحمه الله د استحسان دليل دادي چي پسله وفاته د آنحضرت ﷺ بعض قبائل د عربو مرتد سوه نر او ښځي يعني د زکوٰة د فرضيت څخه يې انكار وكړي، كما فى البخاری نو ابو بكر صديق رضي الله عنه اراده وكړه چي لښكر ورواستوي او د دوي سره غزا وكړي نو حضرت عمر رضي الله عنه وه حضرت ابو بكر رضي الله عنه ته وويل، كيف تقاتلهم وهم يقولون لا اله الا الله الى آخر الحديث بقوله في البخاري، وروسته تر دلائلو حضرت عمر رضي الله عنه هم اتفاق ورسره وكړي پر جنګ د دوي نو لښكرونه چي يې ورواستول هغو جنګ نه وكي اسلام يې از سر نو قبول كړي، يعني د زكوٰة فرضيت يې ومانه نو حضرت ابوبكر رضي الله عنه او اصحابو رضي الله عنهم د مړو او ماينو تر مابين تفريق ونه كړي فكان اجماعا علي ذالك.

**سوال**:- دغه قبائل د عربو چي مرتد سوي وه نو دا څه معلومه ده چي نر او ښځي يو ځاي مرتد سوي وه او بيايې يو ځاي ايمان راوړي؟

**جواب**:- چونکه پر ارتداد د دوي ډېر وخت تېر سوی او تاريخ د ارتداد د نر او ښځو يې مجهول وو نو مونږ ځکه دا فرضه وو چي ارتداد د نر او ښځو د دواړه وو، كما فى السراجى فى بحث الغرقى والحرقى والهدمٰى، يعني يو خاندان په اوبو كي غرق سي يا په اور كي وسوځي او يا خونه پر راوه نړېږي كه څه هم د دوي په روح ختلو كي پس وپېش وي لكن د سبب د جهالته د تاريخ د دوي د مرګ داسي حكم كيږي چي ګويا دوي معًا يوځاي مړه دي نو د دوي ميراث پر پس ماندګانو وېشل كيږي او دوي يو د بل ميراث خواره نه بلل كيږي، فارجع الى شرح سيد علی السراجی وغيره من كتب الميراث.

قال المصنف رحمه الله " ولا يجوز ان يتزوج المرتد مسلمة ولا مرتدة ولا كافرة وكذالک المرتدة لا يتزوجها مسلم ولا كافر ولا مرتد" او نه ده روا چي په نكاح كوي مرتد مسلمانه ښځه او نه په نكاح كوي مرتده ښځه اونه كافره ښځه، او داغسي حكم دي د مرتدي ښځي چي نه به يې نكاح كوي مسلمان سړى او نه كافر سړى او نه مرتد سړى،

د دې اولي مسئلې دليل دادي چي مرتد والي تهوله املاك زائله وي نو ملك نكاح فائده نه لري سره د وجود د ردت نو ردت لكه مرګ دي او بله خبره داده چي په ردت سره بقاء د نكاح پورته كيږي نو ابتداء د نكاح خو په طريق اولی نه ده روا.

او د دوهمي مسئلې دليل دادي ﴿قال الله تعالی ولاتنكحوا المشركات﴾ وهو عام قاله الاقطع رحمه الله

او دا دليل غلط دي ولي چي د ښځي ارتداد خو په دې هم راځي چي يهوديه يا نصرانيه سي، د کتابيه نکاح خو مسلمان ته روا ده آيت خو صرف د مشرکاتو ښځو نکاح منع کړې فکيف يصح وهو عام، بلکه صحيح دليل دادي چي په ارتداد د ښځي پخواني نکاح د مابين څخه ځي نو نوې نکاح به دا څرنګه وکړي.

قال" واذا كان احد الزوجين مسلما فالولد على دينه"

او که يو د مېړه او مايني څخه مسلمان وو نو کوچني عيال د هغه پر دين دي، دليل دادي چي عيال به يا د کافر تابع کوي يا د مسلمان لکن چونکه عليه السلام وائي، الاسلام يعلوا ولا يعلى" د اسلام دين غالب دي مغلوب نه سي کيدلي نو غلبه د اسلام داده چي ولد تابع د مسلمان سي.

وكذالک ان اسلما احدهما وله ولد صغير صار ولده مسلما باسلامه " او داغسي حکم دي که يو د مېړه او مايني څخه نوی اسلام راوړي او د لره ولد صغير وي نو دده ولد دده په اسلام مسلمانېږي فرق د اولي مسئلې او د دې مسئلې دادي چي په اوله مسئله کي مراد اسلام اصلي دي لکه چي د مسلمان سړي ماينه کتابيه کافره وي او دوهمه مسئله په اسلام عارضي کي ده يعني اولاد دواړه کافران وي بيا يو مسلمان سي.

**سوال**:- په اسلام عارضي کي خو کيدای سي چي مېړه او ماينه دواړه دي کافران وي په هره نوعه د کفر چي وي بيا دي يو مسلمان سي نو کوچني بچي يې د هغه په اسلام سره مسلمان بلل کيږي لان الولد يتبع اشرف الوالدين" اما په صورت د اسلام اصلي داسي خو کېدای سي چي

پلار د کوچني دي مسلمان وي او مور دي کتابيه کافره وي نو کوچنی په اسلام د پلار مسلمان دي او داسي خو نه سي کيداي چي مور دې مسلمانه وي او پلار دې کافر وي کما مر نو ځرګه مصنف رحمه الله د مخه په متن کي وويل، اذا کان احد الزوجين آه" بلکه پکار دا وه و اذا کان الوالد مسلمًا آه.

**جواب**:- قانون د متن سابق خو کلي دي يعني هر يو د زوجينو چي مسلمان وي ولي د هغه تابع دي والصورة المذکورة امتناعها لامر خارج وهو ان الاسلام يعلو ولا يعلى.

دوهم (۲) جواب دادي چي اذا کان احد الزوجين الخ قضيه مهمله آه، په صدق د يوه فرد هم مهمله صادق ګڼرل کيږي کما تقرر فی المنطق معذوره، دوهم جواب که څه هم د ډېرو متعلمانو تر فهم ډېر لوړ دي لکن بعض طلباء به شايد فائده ځني واخلي.

قال المصنف رحمه الله " وان کان احد الزوجين کتابيا والاخر مجوسيا فالولد کتابی" که چېري يو د مېړه او مايني څخه کتابي يعني د اهل کتابو څخه وو او هغه بل ددې دوو څخه آتش پرسته وو نو ولد صغير په کتابي ګڼل کېږي ولي چي کتابي يو څه فضيلت لري پر مجوسي.

قال" واذا تزوج الکافر بغير شهود او في عدة کافر وذالک فی دينهم جائز ثم اسلما اقرا عليه" او که چېري کافر نکاح وکړه ببله شاهدانو او يا په عده د بل کافر او دا هم په دين کي د دوي روا وه او بيا دواړه مسلمانان سوه پر هغه نکاح دې پرېږدي، او که چېري دغه دوې نکاح وي ددوي په دين کي هم نا جائزي وي نو پسله اسلامه دې پر

نکاح نه پرېږدي بلکه تجديد د نکاح دې وکړي، مجمع الانهر، ودر، او قرار پر نکاح اوله په اول صورت کي مذهب د امام ابو حنيفه رحمه الله دي. وهو الصحيح لانهم غير مخاطبين بفروع الاسلام" او ياران رحمهم الله وايې چي په صورت د نکاح په عده کي د بل مېړه تجديد د نکاح دي وکړي لان ذالك حرام بالاجماع، ق.

قال" وان تزوج المجوسي امه او بنته ثم اسلما فُرق بينهما" که چېري په نکاح کړې وه يوه مجوسي خپله مور او يا لور چي د محارمو ټولو نکاح د دوي په دين باطل مغلظ کي روا ده ولي چي نکاح د محارمو لکه مور لور خور وغيره نکاح ابتداء وبقاء په اسلام کي په اجماع د امه مرحومه ناروا ده، مجمع

قال" وان كان للرجل امرئتان حرتان، او يا درې يا څلور فعليه ان يعدل بينهما في القسم" او که وي يو سړي لره دوي ماينې چي ازادي وي نو پر ده واجبه ده چي ددوي تر مابين به عدالت او برابري کوي په وېش کي.

**يوه مسئله**:- چي قسم د ماينو دادي چي د ماينو په مابين کي په اختياري کارو کي برابري کوي يعني په خوراکي شيانو، د چښلو په شيانو، په کالو کپړو کي، او په شپه تېرولو کي د هري ماينې په خونه کي.

**تنبيه**:- په محبت قلبي سره د يوې ماينې مېړه ماخوذه نه دي ولي محبت بې اختيارَ شئ دي او په دې کي هم ماخوذه نه دي چي د يوې ماينې سره د هغې په وار کي وطي کوي او د بلي په وار کي د هغې سره وطي نه کوي ولي داهم اختياري کار نه دي ولي يوه به څوانه او ښائسته

وي او بله به بدرنګه يا سپين سرې وي نو غير خو دده په اختيار کي نه دي چي بد رنګي سپين سري ته نه پورته کيږي او ځواني ښائستې ته پورته کيږي، اما وجوب القسم، په دې حديث سره ثابت دي، من کانت عنده او له امرئتان فمال الى احدهما جاء يوم القيامة وشقه مائل" که چا لره دوې ښځي وې او ده ميل وکړي وه يوې ته ددوي دوو، دي به په ورځ د قيامت راسي چي طرف به يې ځوړنده وي، يعني دا يې علامه د عذاب يې على حده ده، اما عدم الوجوب التسويه فى الحب وغيره، فلحديث عائشه رضى الله عنها ، چي رسول الله ﷺ خو عدل کوي په مابين کي د ازواجو ﷺ او دا به يې هم ويله، يا الله ﷻ دا خو زما قسم دي په هغه شى کي چي زما په وسه پوره دي نو ته يا الله ﷻ ما مه نسې په هغه شي سره چي زما په وسه نه وي پوره لکه زياده محبت د يوې ښځي وغيره كذا فى الهدايه.

قال" بكرين كانتا او ثيبتين او احداهما بكرا والاخرى ثيبا" که دواړې ماينې يې پېغلي وې او که دواړي کونډيانې وې او که يوه باکره وي او بله کونډه، وزاد فى بعض الحواشى چي ځواني ماينه او نوې ماينه هم سره برابري دي.

**درويش وايي**:- چي په اوسني زمانه کي د مسلمانانو په اکثرو کي داغه حال نه دي، بلکه بدرنګه او زړه ماينه د کوره څخه بېځي وه باسي د ښائستې نوي ماينې سره ژوند کوي او د هغه بلي وخوا ته په مياشتو او کلو نه ورتېرېږي.

قال" وان كانت احداهما حرة والاخرىٰ امة فللحرة الثلثان وللامة الثلث"

او که یې یوه ماینه حره وه او بله مینځه وه نو حري لره دوې حصې دي یعني په قسم کي او مینځي لره یوه حصه ده.

ولاحق لهن فی القسم فی حالة السفر" او حق نسته ماینو لره په قسم کي په حال د سفر د مېړه یعني د مېړه اختیار دي هره یوه چې ورسره بیایي.

ویسافر الزوج بمن شاء منهن والاولی ان یقرع بینهن فیسافر بمن خرجت قرعتها" او اولی داده چي په مابین کي د دوي قرعه اندازي وکړي چي په پښتو پچه ورته واي یا اسکه نو دی سفر کوي په هغه ماینه چي د هغې قرعه اندازي راووزي.

**یوه سه**:- چي دا قرعه اندازي د دوي د زړو د خوشحالۍ د پاره ده وبس او پردغه تطیب القلب باندي محمول دي هغه حدیث د عائشه ﷺ چي بخاري او مسلم یې روایت کړي دي چي علیه الصلوة والسلام چي به اراده د سفر وکړه نو به یې قرعه اندازي وکړه په مابین کي د ښځو خپلو نو د هري یوې قرعه چي به وختله هغه به یې ورسره بېوله سفر ته، والقرینة علیه ان النبی ﷺ لم یکن التسویة بین النساء واجبا علیه بالاجماع فی الحضر مع انه یفعله تفضلا منه وتطیبا لقبولهن"

**درویش وایي**:- چي په حدیث د عائشه ﷺ دلیل ویل د امام شافعی ﷺ پر دې چي د سفر په حالت کي قرعه اندازي واجبه ده پر مېړه تام نه دي، والله اعلم بالصواب.

قال" واذا رضیت احدا الزوجات بترک قسمها لصاحبتها جاز ولها ان ترجع فی ذالک" او که راضي سوله یوه د ماینو په

پرېښولو سره د خپلي برخي وبلي ته د دې روا ده ليکن دې لره حق د رجوع سته، په حديث کي د بخاري راغلي دي چي آنحضرت ﷺ چي اراده وکړه وطلاق ته د سوده بنت زمعه رضي الله عنها نو دې ورته وويل چي ما مه طلاقه وه يعني د دې لپاره چي په اخرت کي ستا د ازواجو رضي الله عنهن په ډله کي وه پاڅېږم نو زه به خپل نوبت وه عائشه رضي الله عنها ته وبخښم نو عليه الصلوة والسلام دا خبره ومنل او دا يې نه کړه طلاقه وروسته به عليه السلام د عائشي رضي الله عنها په حجره کي دوه شوا روزه تېرول او د نورو ښځو په کورو کي به يې يو شبانه روز تېرول، او بل روايت د حديث چي فقهاء يې روايت کوي داسي راغلي دي چي عليه الصلوة والسلام سوده رضي الله عنها په طلاق رجعي طلاقه کړې وه دې ورته وويل چي ماته رجوع وکړه الى اخير الحديث، او حق د رجوع چي لري، لما في الهدايه لانها اسقطت حقا لم يجب بعد فلا يسقط" يعني دې ساقط کي هغه حق د دې چي تر اوسه واجب نه وو يعني معدوم دي نو په اسقاط د دې نه ساقطيږي يعني قسم په تدريج سره پيدا کيږي، يوما فيوما والمعدوم لا يقبل السقوط فافهم.

**درويش وايي**: چي د کتاب النکاح څخه په خير او عافيت پر څلور نيمي بجې د ماسپښين د يکشنبې په ورځ د جمادى الاول په څلورمه ورځ، په سنه ۱۴۲۳ هج فارغ سوم فلله الحمد على توفيقه اياى لذالك هم دا اوس کتاب الرضاع شروع کيږي ان شاء الله.

## خوشخبري

# كتاب الرضاع

دا كتاب په بيان كي د شدو وركولو يعني چي رضاع په باره كي د نكاح د جواز او عدم جواز څه تاثير لري .

**پوښتنه**:- تا په پخوا كي پر عربي درسي ګرانو او مشكلو كتابو باندي حاشيې كولې اوس دا يو څو كاله كيږي چي د عربي آسانه كتابو ته لكه شروط الصلوه، قدوری صلوة، قدوری نكاح، نور الايضاح په درې (۳) جلده كي، نور الظلم، ابو المنتهی، وپښتو ژبي ته را اړولي دي او بعض كتابونه دي په دري ژبه ليكلي دي لكه شهادت الحسنين، نو زما پوښتنه داده چي دغه مذكوره كتابونه خو په عربي ژبه كي ډېر آسانه وه چي هر امام او طالب به كوچنيانو ته درسول نو پښتو كولو ته يې څه ضرورت وو؟

**جواب**:- اول خو دغه كتابونه چي دروېش پښتو كړي دي صرف په لفظي ترجمه د عربي په پښتو باندي اكتفاء نه ده كړې بلكه د نورو علمي كتابو څخه د فقهي او عقايدو يې ډېري مسئلې پر بالا كړي تاكه څوك عربي لوي كتابونه نه سي مطالعه كولې او يا نه په پوهيږي لكه د ښوونځي وړونه او خوندي چي پښتو خط يې زده وي د دغو كوچني كتابو د فقهي او عقائدو څخه به د لويو كتابو مسائل زده كړي، ته فكر وكړه كه د دروېش لفظي ترجمه غرض واى او دعلم فقهي لمن يې نه فراخه كولاى په شرحه د دغو كوچنيو كتابو، نور الايضاح چي هرچا ته معلومه ده چي يو كوچنی كتاب د فقهي دي شرحه به يې ولي درې جلده (۱۶۰۰) صفحې ته رسېدلاى وهكذا دوهم د دنيا د حالاتو ته په فهم

نیولو سره درویش ته دا خاطر محسوس سو چي خداي ناکرده د عربي مدرسو دروازې به ډېري بندي سي اخر الامر به خلک د دغه پښتو شرحو څخه به عقائد او اعمال زده کوې یعني په اوسني زمانه کي چي ټولو مسلمانانو ته دا معلومه ده چي کافرانو د اسلامي دیني مدرسو بندولو ته لستوني راپورته کړي دي چي په دې ذریعه د دوي په زعم فاسد به اسلام براي نام پاته سي او مسلمانان به په عقائدو او اعمالو کي ددوي پر مسلك روان سي او له درسته د کفارو وه مسلمانانو ته سره زر او سپين زر ورکول دي، کما هو المعلوم فی هذا الزمان، او کافران یو اندازه په دې پالیسي کي په بعض ځایو کي بېله نوم اخستلو کامیابه سوي هم دي چي خپل زر خرید همخیاله خپل یې په مسلمانانو کي پیدا کړي هم دي، نو خداي جل سلطانه دي دا مرض د طاعون په شکل نه عامه وي په اسلامي نړۍ کي.

اللهم انصر الاسلام والمسلمین ودمر واهلك اعداء الدین آمین.

**پوه سه**:- چي په مسائلو د رضاع باید سړي ډېر غور وکړي ولي جواز او عدم جواز د نکاح د رضاع د لاري پر دغو مسئلو موقوف دی او باید ملا صاحب په جواز او نه جواز کي د نکاح چي په رضاع پوري اړه لری په حکم ورکولو دي تلوار نه کوي ولي چي مسئلې د رضاع دومره ساده نه دي چي هر امام مسجد دي په وه پوهیږي نو باید "فاسئلوا اهل العلم ان کنتم لاتعلمون ط" څخه دي کار واخلي او په لاادری کي دي ځان ته شرم نه دروي بلکه په صورت کي د نه پوهېدو دي وبل عالم کامل ته خبره راجع کړي، ولي چي امکان لري په صورت کي د عجلت او شرم ناروا ښځه د رضاع د لاري د روا تر حکم لاندي رانسي، وبالعکس کس گفته

اند نه هر که سر بتراشد قلندري داند، ونيز گفته اند، انجير خوردن نه کار هر مرغي است.

**سوال**:- بايد مصنف رحمه الله باب الرضاع ويلي واي ولي چي کتاب په عرف کي د فقهاء هغه مبحث ته واي چي مشتمل پر انواعو مختلفوو وي مع ان الرضاع نوع واحد وليس کالجنس قاله الامام الطحطاوي رحمه الله

**ځواب**:- نعم امر د رضاع خوداغسي دي لکن چونکه رضاع د محرماتو سببيه څخه وو لکه محرمات نسبيه کما مرت لکن د رضاع داسي مسئلې دي چي د مسائلو د محرماتو نسبيه وو څخه يې ډېر تفاوت درلودي کما سياتی، نو گويا هره مسئله د رضاع نوع علحده ده نو ځکه يې په عنوان د کتاب راوړي، کذا فی ملتقی الابحر.

قال القدوری رحمه الله " قليل الرضاع وکثيرة اذا حصل فی مدة الرضاع تعلق به التحريم" لږ تی ورکول او ډېر تی ورکول چي موجود سي په مده کي د رضاع تعليق په هغه پوري نسي تحريم کما سياتی تفصيله ان شاء الله.

**پوهه سه**:- چي دا مذهب دي د جماهيرو علماؤ د ليل يې دادي چي آيات قرآنيه چي په باره کي د محرميت د رضاع راغلي دي ټوله عام دي، وامهاتکم التی ارضعنکم واخواتکم من الرضاعة" او احاديث نبويه هم په دې باره کي مطلق اوعام دي، قال عليه الصلوة والسلام تحرم من الرضاعه ما تحرم من النسب" او امام شافعي رحمه الله وائي چي پنځه (۵) واره رضاع هغه هم په ماړه نس تحريم راولي په کم تر هغه تحريم نسته، والحجة عليه ماذکرناه تفصيل المقام، په بخاري شريف کي وايې چي په ابتداء کي په قرآن شريف کي داسي آيت نازل سوي وو، عشر رضعات

يحرمن، ثم نسخ ونزل بدله خمس رضعات يحرمن" بي بي عائشه رض وايي چي امر د رضاع پر دغه پنځه واره پاته سو نو امام شافعي رحمه الله هم مذهب د عائشه رض ته تللي دي، او جمهور وائي چي خمس رضعات هم منسوخ سوي دي، حضرت عائشه رض ته علم د نسخي گويا نه وو، والدليل عليه، چي قرآن مبارك چي په اجماع د صحابه كرامو رضي الله عنهم په زمانه كي د خلافت د ابوبكر صديق رضي الله عنه، او بيا په زمانه كي د حضرت عثمان رضي الله عنه جمع سوي دي په هغه كي د پنځو رضعاتو آية نسته بلكه آيات قرآنيه چي په دې باب كي كما مر مطلق راغلي دي، والله اعلم.

**فائده**:- په رضاع كي دا شرط دي چي د ښځي به يقين وي چي دغه شدې و نس ته د رضيع ورسېدې درويش وايې د مذاهبو شاذه وو ځخه دا مذهبونه دي بعض وايې چي رضاع تر (۱۵) كاله پوري تحريم پيدا كوي او بعض وايې تر (۴۰) كاله پوري د رضاع تحريم راولي او بعض وايې چي رضاع تر اخيره د عمره تحريم پيدا كوي او زفر رحمه الله وايې چي تر درې كاله پوري تحريم راولي.

**والجواب**:- چي په حديث شريف كي راغلي دي چي رضاع هغه معتبر ده چي فتق او فراخي د كلمو په راسي يعني غذاء د كوچني وگرځي او پس له مده ځخه د رضاع داسي نه كيږي، او كه امام شافعي رحمه الله ووايې چي آيت د خمس رضعات آه منسوخ التلاوة دي حكم يې باقي دي نو جواب دادي چي په نفس احتمال سره خو حكم نه ثابتيږي.

قال" ومدة الرضاع عند ابى حنيفة رحمه الله تعالى ثلثون شهرا وعندهما سنتان"

او مدت د رضاع یعني ئر دغي مدې به بالاتې نه ورکوي دېرش میاشتي دي یعني دونیم کاله په نیز د امام اعظم رحمه الله او په نیز د یارانو دوه کاله دي.

**پوه سه**:- چي قول د یارانو رحمهم الله هو الاصح، فتح، وبه یفتی تصحیح القدوري.

**مسئله**:- پس له دونیم کاله تېئ ورکول حرام دي وعلیه الفتوی کذا فی الدر المختار، والدلیل قولهما قوله تعالی، والوالدات یرضعن اولادهن حولین کاملین" وایضاً قال الله وحمله وفصاله ثلثون شهراً" نو چونکه اول مدت د وضع حمل شپږ میاشتي دي نو رضاع ته دوه کاله پاتيږي وهذا قول الائمة الثلاثة الشافعی، واحمد، ومالك رحمهم الله.

**درویش وایي**:- چي د امام اعظم رحمه الله د مذهب ډېر معقول دلیل سته هغه دادي چي مونږ منو چي اصل رضاع خو دوه کاله کما ورد فی الایة لکن، طفل رضیع خو په یوه پلا د تي څخه نه بندیږي او نه په یوه وار د ډوډۍ په خوراك اموخته کیږي نو باید تر دوه کاله یوڅه مده نور ده ته مور ګاه ګاه تی ورکوي او ګاه ګاه ډوډۍ ورکوي تاچي رفته رفته د تي عادت پرېږدي او د ډوډۍ د خوراك سره عادت ونسي، نو امام اعظم رحمه الله ودغه ته ادنی مدت د حمل چي شپږ میاشتي دي متعین کړي دي نو د یك لخته تي څخه د پرې کېدو مده دوه نیم کاله سو، لکن یاران وایي مونږ چي مده د رضاع دوه کاله ټاکلې ده ددې دا معني نه ده چي په دې دوه کاله کي به مور وخپل کوچني ته بېله شیدو خپلو بل شئ نه ورکوي بلکه په دوران کي د دوو (۲) کلو دي مور هم خپلي شیدې ورکوي او هم دې په ډوډۍ وغیره عادت کوي لکه ښځي چي اوس دا

غسي کوي چي کوچني تـه لـږ زمانـه وروستـه ګاهي پـه لاس کـي ډوډۍ ورکوي او ګاهي پـه چايو کي پـه کاچوغه يې پـه خوري او ګاهي بسکوټ ورکوي بلکـه ګاهي ګاهي د وخت موجودي مېوې ورکـوي چي پـه دغه سبب پـه دغو دوو کلو کي د تي د مور الفت ډېر پکښي کم سي نو چي پر دوه کالـه يې يـك لختـه د تي څخه بند کړي کوم تاوان بدني و کوچني تـه نه پېښيږي، والتجربة شاهدة لذالک، والعلم عند الله.

قال" واذا مضت مدة الرضاع لم يتعلق بالرضاع التحريم"

او چي تېره سي مده د رضـاع نـو تعلق نـه لـري پـه رضـاع پـوري هـيڅ تحريم، لقوله عليه السلام لا رضاع بعد الفصال" رضاع نسته يعني حکم د تحريم وروسته تر پرېکولو د کوچني، او بل حرمت خو پـه اعتبار د نشو او نما د کوچني وو پـه شيدو د ښځي او دا معلوم خبره ده چي پس لـه مدت څخه نشو او نما د مور پـه شيدو نـه کېږي.

قـال" ويحـرم مـن الرضـاع ما يحرم من النسب الا ام اخته من الرضـاع فـانـه يجـوز ان يـتزوجها" او حرامـيږي د رضـاع د لاري هغه څوك چي د نسب د لاري حرامه وي لکه مور او خور وغيرهما مګر مور د خور د سـړي د رضـاع څخـه ولـي چي سـړي تـه روا ده چي پـه نکاح کړي هغه.

**درويش وايي**:- وايي چي پـه مذکوره عبارت کي دوه احتماله دي.

(۱) يابـه خـور د سـړي رضعي وي يعنـي يـو هلـك او نجلـۍ د بېګانـه ښځي شيدې سره رودلـي وي نـو د هغـې نجلـۍ مور وده تـه روا ده چي د سړي هيڅ نـه کيږي.

(۲) او یا مور د سړي رضعي وي یعني یو سړي نسبي خور لري او هغه خور يې رضعي بېګانه ښځه مور لري نو د هغې د مور نکاح ورته روا ده.

قال" ولا یجوز ام اخته من النسب" اونه ده روا نکاح د خور نسبي د مور سره ولي هغه به یا د ده هم مور وي، او یا به د ده میره وي د دواړو نکاح نه ده روا، او یا به يې مور د نسب د خوا وي نو بیا خو د هغې مور خور دده خاله کیږي نکاح يې نه روا ده.

قال المصنف رحمه الله " واخت ابنه من الرضاع یجوز ان یتزوجها ولا یجوز ان یتزوج اخت ابنة من النسب"

او روا ده خور د زوي د سړي د رضاع څخه یعني د یو سړي ماینې ویو کوچني ته شیدې ورکړي نو دا سړی خو د دې کوچني رضعي پلار دي نو د هغه کوچني خور ودغه سړي ته روا ده ولي چي دي د دې هیڅ نه دي او دا سي نه ده روا چي خور د نسبي زوي په نکاح کوي ولي چي دغه خور د نسبي زوي یا به د ده لور وي او یابه د سړي د کونډې ماینې لور وي چي د ده ربیبه کیږي، او په قرآن شریف کي راغلي په محرماتو کي وربا یبکم الآیه.

قال المصنف" ولا یجوز ان تزوج امرئة ابنه من الرضاع کما لا یجوز ان یتزوج امرئة ابنه من النسب" او نه ده روا چي څوك په نکاح کوي ماینه د خپل زوي چي د رضاع د لاري وي یعني د ده ماینې شدې ورکړي وي ولي چي دا ښځه دده مېږور ده، لکه څګه چي نه ده روا چي سړي په نکاح کوي ماینه د نسبي زوي چي دا هر څوك مېږور بولي.

قال القدوري رحمه الله" ولبن الفحل"

**پوښتنه**:- چي مراد د لبن الفحل څخه دانه دي چي د نر د تيو څخه شيدې راووزي او يوې شير خوري نجلۍ ته دا شيدې د خپل تي ورکړي ولي چي په دغه ارضاع پوري تحريم تعلق نه لري بالاجماع حتیٰ چي دغه نجلۍ وده ته رواده، فتح، بلکه اضافت د لبن فحل يعني نر ته يې اضافت دي د مسبب وه سبب ته يعني هغه د ښځي شيدې چي د نر په سبب پيدا سوې چي ده وطي کړې وه او هغه اميدواره سوه او لنګه سوه او شيدې يې پيدا سوې هذا حاصل ما فی العنايه.

يتعلق به التحريم" يعني هغه نجلۍ چي دغه شيدې ورودې وده ته نا روا ده، او امام شافعی رحمه الله وايې چي په دغو شيدو پوري تحريم تعلق نه لري ولي شيدې د ښځي جزء دي نه د نر جزء، والتفصيل فی فتح القدير وغيره.

قال" وهو ان ترضع المرئة صبية فتحرم هذه الصبية على زوجها وآبائه وابنائه ويصير الزوج الذی نزل لها منه اللبن ابا للمرضعة" او صورت د لبن الفحل دادي چي يوه ښځه شدې ورکړي وه يوې نجلۍ ته نو پس حرامه ګرځي دغه نجلۍ پر مېړه د هغې ښځي او پر پلار او نيکه ګانو د هغه سړي او پر ځامنو او لمسيانو د هغه سړي او دغه سړي چي د ښځي شدې پيدا سوي د ده لخوا چي ده وطي ورسره وکړې او دا لنګه سوه، پلار ګرځي د دغي شير خوري نجلۍ يعني رضعي پلار يې دي.

قال" ويجوز ان يتزوج الرجل باخت اخيه من الرضاع كما يجوز ان يتزوج باخت اخيه من النسب" او روا ده چي په نکاح کړي يو سړی خور د ورور چي رضعي ورور يې وي يعني دوو هلکانو د يوې ښځې شدې رودلي وې نو دوي دوه خو رضعي ورونړه سوه نو هر يو چي نسبي خور لري هغه بل ته روا ده، لکه څنګه چي روا ده چي سړی نکاح وکړي د خور سره د ورور چي نسبي ورور يې دي، صورت د دې مسئلې دادي چي يو سړی ورور لري د پلار د خوا څخه او هغه ورور يې خور لري د مور د خوا څخه يعني د بل مېړه لور يې وي نو دغه نسبي ورور ته روا ده چي هغه خور دا بل ورور چي د مور د خوا دي فقط په نکاح کړي عينی شرح الکنز، لکه مصنف رحمه الله چي هم داغه صورت په دغه عبارت سره بيان کړي دي.

فقال" وذالک مثل الاخ من الاب اذا كان له اخت من امه جاز لاخيه من ابيه ان يتزوجها" قال فی الجوهره لانه ليس بينهما مايوجب تحريرا. وترجمة العبارة قد مرت ناقلا من العينی آنفا.

قال القدوری" وكل صبيين اجتمعا علی ثدی واحد لم ينجز لاحداهما ان يتزوج بالآخر" اوهر دوه کوچنيان چي جمع سي پر يوه تي يعني د يوې ښځې شيدې وروي يعني که د دوې دوو د يوه مور وي او که بېګانه ښځه وي نه ده روا هغه يوه لره چي نکاح وکړي د هغه بل سره.

**پوښتنه**:- صبيين خو تثنيه د صبي ده، صبی خو نر کوچني ته وايې نو د دوو نرو کوچنيانو نکاح خو هيڅ صورت نه لري؟

**جواب**:- مراد د صبيين څخه صبي او صبيه ده مکر تغليبا يې صبيين ورته ويلي دي، كما فى القمرين للشمس والقمر باب التغليب يجيئ فى كثير من المواضع مثل الوالدين والابوين وغير ذالك، دليل دعدم جواز د نكاح دادي چي دوي دوه سره ورور او خور دي رضاعا.

قال" ولا يتزوج المرضعة احدا من ولد التى ارضعت ولا يجوز ان يتزوج الصبى المرضع اخت زوج المرضعة لانها عمته من الرضاع" او نه دي په نكاح كوي شير وركونكي ښځه هيڅ څوك نر د اولاد څخه د هغه هلك چي دې تى وركړي وي ولي خو د دې لمسيان دي او داغه رنګه نه ده روا هغه هلك شير خور ته خور د مېړه د شير وركونكي ولي هغه خو د ده عمه ده من الرضاع.

قال القدورى" وَاِذا اِختلط اللبن بالماء واللبن هو الغالب يتعلق به التحريم فان غلب الماء لم يتعلق به التحريم" او كه ګډې سوي شدې د ښځي يعني دې د خپل تي څخه ولوشلې او په اوبو يې ګډې كړلي او كوچني ته يې وركړې، نوكه شدې غالبي وې پر اوبو يعني په خوند كي او په رنګك كي او په بوي كي نو د دغو شدو سره تحريم تعلق نسي يعني حرمت راولي او كه اوبه غالبي وې نو تحريم نه راولي، ان الاعتبار للغالب" نو په اول صورت كي ګويا كوچني خالص شدې د ښځي وچښلې او په دوهم صورت كي ګويا خالص اوبه يې وچښلي.

قال" واذا اختلط بالطعام لم يتعلق به التحريم وان كان اللبن غالبا عند ابى حنيفة رحمه الله وقالا رحمهم الله يتعلق

به التحريم" يعني په صورت کي غلبه د شدو، او که ګډي سوي شدې د ښځي د خورك په شي کي لکه ډوډۍ نو په هغه سره حرمت نه راځي که څه هم شدې غالبي وي په نيز د امام اعظم رحمه الله او ياران وايې چي تحريم تعلق پوري نسي.

**پوه سه**:- چي قول ديارانو چي تحريم تعلق پوري نسي چي شدې غالبي وي په هغه صورت کي دي چي پر اور نه نه سي پخې او که پر اور طعام او شدې سره پخې سوې بيانو تحريم تعلق نه پوري نسي بالاجماع، هدايه. د امام اعظم رحمه الله د قول دليل دادي چي ډوډۍ چي شدو ته واچوي که څه هم لږ ډوډۍ وي قوت د شيدو د مابين ځخه ځي نو ګويا طعام غالب دي ، او ياران رح وايې چي شيدې چي غالبي وي نو شيدې اصل دي او طعام يې تبع ده نو ځکه تحريم په واقع کيږي لکه د اوبو په مسئله کي، کذا في العيني شرح الكنز.

قال" واذا اختلط بالدواء واللبن غالب تعلق به التحريم" اوکه ګډي سوې شدې د ښځي د دوا سره او شدې پر دوا غالبي وې په دغو شيدو سره تحريم راځي، ولي چي په دې صورت کي دا معلوميږي چي اصلي مقصود شيدې دي، دوا به د دې لپاره په ګډه سوي وي چي شيدې قوت په پيدا کړي او مقصودي ځاي ته يې ورسوي او که دوا غالبه وه بيا تحريم نه راولي، هدايه.

قال القدورى" واذا حلب اللبن من المرئة بعد موتها فاوجر به الصبى تعلق به التحريم" او که چېري چا شيدې ولوشلې د تبر ښځه د ښځي وروسته تر مرګه او بيا يې په کاچوغه د کوچني په حلق کي توي کړې تحريم تعلق پوري لري، يعني اصول او فروع د دغي ښځي

ودغه كوچني ته ناروا دي دليل يې دادي چې دغه خو شيدې حقيقي دي لكه په حال د ژوند كي او امام شافعي رحمه الله وايي چې په دې سره تحريم نه راځي والدليل والجواب فى مجمع الانهر.

قال القدوری" واذا اختلط اللبن بلبن شاة وهو الغالب تعلق به التحريم فان غلب لبن الشاة لم يتعلق به التحريم" او كه ګډې سوي شيدې د ښځي په شيدو سره د ميږي يعني مثلا او غالبه شيدې د ښځي وې يعني په مقدار كي، تحريم تعلق پوري نسي او كه د ميږي شيدې غالبي وې تحريم تعلق نه پوري نسي، په سبب د اعتبار د غالب لكه د ښځي شيدې چې د اوبو سره ګډې كړې او اوبه غالبي وې، كذا فى الهدايه.

قال المصنف رحمه الله " و اذا اختلط لبن امرئتين يتعلق التحريم باكثر هما عند ابى يوسف رحمه الله وقال محمد رحمه الله تعلق بهما التحريم" او كه ګډې سي شيدې د دوو ښځو يعني بيا دغه مخلوطی شيدې ويوه كوچني ته وركړې نو تحريم په اكثر سره د دغو شيدو تعلق لري يعني د هري ښځي شيدې چې په مقدار كي ډېري وي هغه حراميږي فقط، او دا روايت دي د امام اعظم رحمه الله څخه، دی وايي چې مغلوب تبع د غالب دي نو ده لره اعتبار نسته لكه په مسئله كي د اوبو، اود امام محمد رحمه الله د قول دليل دادي چې دغه هم قول د زفر رحمه الله دي چې شيئ چې نابوديږي په غير جنس كي د ده، او په خپل جنس كي نه وركيږي نو د دواړو ښځو شيدې حقيقةً موجودي دي نه بايد د يوې ښځي شيدې به لږ وي او په رضاع كي خو لږ او ډېر فرق نه سره لري.

قال" واذا نزل لبن البكر فارضعت صبيا يتعلق به التحريم"
او كه د پېغلي ښځي تر تيو شدي راووتې او بيا دې ويو كوچني ته
وركړې نو تحريم تعلق پوري نسي ولي دغه انساني شدې سبب د نشو
نماء د كوچني ګرځي لكه د لنګي ښځي شيدې نو خود تحريم په
ثابتيږي، كذا في الهدايه.

واذا نزل للرجل لبن فارضع به صبيا لم يتعلق به التحريم"
او كه راووتلي شيدې د نر د تيو څخه نو ده ويو كوچني ته وركړې تحريم
تعلق نه پوري نسي ، ولي چي دا شيدې حقيقه شيدې نه دي بلكه اوبه
دي په رنګ د شيدو ولي چي حقيقتي انساني شيدې د هغه چا دي چي
د دې څخه ولادت ممكن وي.

**مسئله**:- په جوهره كي وايې كه د نر ښځي تر تيو شيدې راغلې او
ويوه كوچني ته يې وركړي نو كه د نر خوا په دغه نر ښځي كي غالبه وه
تحريم تعلق نه پوري نسي او كه د ښځي خوا غالبه وه تحريم تعلق پوري
نسي اوكه خنثى مشكل وو يعني د نر او د ښځي اسباب يې سره برابر وه
نو د دې حكم ونورو ښځو ته سپارل كيږي كه هغو وويل چي دا دغسي
شيدې دي لكه د لنګو ښځو شيدې نو تحريم تعلق پوري نسي او كه
دوي وويل چي دا صرف نري اوبه دي په رنګ د شيدو نو تحريم تعلق نه
پوري نسي.

قال القدوري" واذا شرب صبيان من لبن شاة فلا رضاع
بينهما" او كه وچښلې دوو كوچنيانو يعني نر او ښځي د مېږي شيدې
نو د دوي تر مابين حرمت د رضاع نسته، ولي په دغو شدو سره نه مېږ د
دوي مور ګرځي او نه د هغې مېږي عيال د دوي ورور او خور ګرځي

بلکه شیدې د حیواناتو حکم د طعام لري ، ګوا دې دوو کوچنیانو يو طعام په ګډه سره وخوړي، کذا فی الجوهره شرح القدوری، والهدایه.
**حکایت**:- د تاریخ په کتابو کې وایې چې څه وخت امام بخاري رحمه الله بغداد ته وارد سو او خلیفة الوقت ډېر لوړ احترام د ده وکړي او د ده لپاره یې ریاست د علوم دینیه ورکاکي، نو په سبب د دې چې امام بخاري رحمه الله په بخاري شریف کې بعض اهانت امیزه ردونه پر امام اعظم رحمه الله باندي کړي وه، او په بعض الناس یې د امام اعظم رحمه الله څخه تعبیر کړي وو چې علماء په دې پوهیږي چې دا لفظ د اهانت دی، دلیل یې دادي که په عالم کبیر پسې بل یو سړي نعره وکړي چې اې سړیه هغه عالم بد په وړي او خپل اهانت یې بولي، نو د دې سببه حنیفي علماؤ رحمهم الله د بغداد په دغه اعراز د خلیفه و امام بخاري رحمه الله ته ناراض سوه، نو ابو حفص کبیر رحمه الله چې د حنفي مذهب لوي عالم وو په بغداد کې یوه ورځ داسي مسئله نوشته کړه او امام بخاري رحمه الله ته یې ورواستوله، چې څه حکم کوې أمام المسلمین فی الحدیث په دې موضوع کې چې دوه کسه وه د ډواړو ماینې مړې سوي او شیر خور بچیان یې پاته سول یو نر او یوه ښځه نو دوي په ګډه یوه مېږ رانیوله او دادوه نر او ښځه کوچنیان په شیدو د دې مېږې لوي کړه آیا د دغه نر او ښځې نکاح سره روادہ او که نه بینوا تحریرا توجروا، امام بخاري رحمه الله چې مضمون د پوښتنې مطالعه کړي، نو یې داسي حکم صادر کې چې په حدیث شریف کې راغلي دي چې دوه کوچنیان چې پریوه ثدي سره جمع سي د هغو نکاح سره ناروا ده، ابو حفص کبیر رحمه الله چې دا جواب د امام بخاري رحمه الله ورسیدي هغه فورا خلیفة الوقت ته ورغلي چې تا څرنګه رئیس د اشرافو

دينيه وو محمد بن اسماعيل رحمه الله مقرر کړي او ده هغه تر اوسه پوري عربي ژبه نه ده زده، او دا مسئله يې ورته کښېښوله چې په حديث شريف کي لفظ د ثدي راغلي دي او ثدي لفظ د ښځي وتي ته وايي او د حيواناتو تي ته ضرع وايي نو امام بخاري رحمه الله تر اوسه د ثدي او ضرع په فرق نه پوهيږي، هغه وو چې خليفة الوقت د خپلي ورسپارل سوي عهدې څخه بر طرف کړي او امام بخاري رحمه الله په بغداد کي ضرب المثل وګرځېدي آخر الامر يې بغداد ته الوداع وويله.

قال القدوری" واذا تزوج الرجل صغيرة وكبيرة فارضعت الكبيرة الصغيرة حرمتا علي الزوج" او که په نکاح کړه يو سړي شير خوره نجلۍ، او بله لو ښځه او دې لوي ښځي شدې ورکړې کوچنۍ نجلۍ ته نو پر مېړه دواړي حرامي سوي ولي دوي دوې سره مور او لوردي د رضاع د لاري او جمع د دوي ناروا لکه جمع د لور او مور د نسبت څخه، هدايه.

**پوه سه** :- چي د لوي ښځي شدې د دغه مېړه د خوا نه دي ولي چي دا وروسته ترديد نه صحيح کيږي فان كان لم يدخل آه، بلکه دا لويه ښځه کونډه وه او د بل مېړه څخه يې کوچني پر تي وو، فافهم.

قال المصنف" فان كان لم يدخل بالكبيرة فلا مهر لها وللصغيرة نصف المهر" نو که يې دخول يعني وطی د کبيرې سره نوې کړي نو دې لره هيڅ ولور نه سته ولي چې دا فرقت د دې د خوا څخه پيدا سو د مخه تر دخول نو داسي مثال يې دي لکه دا ښځه چي مرتده سي قبل الدخول، ط، ع، ق. او که يې دخول او وطی ورسره کړي وې نو په هغه دخول سره که څه هم يو وار وي پوره ولور پرده لازم دي، او

صغيرې لره نيم ولور دي ولي فرقت د دې قبل الدخول دي او د دي د خوا هم نه دي، هدايه.

قال" ويرجع به الزوج على الكبيرة ان كانت تعمدت به الفساد فان لم يتعمد الفساد فلا شيئ عليها" او رجوع به کوي نر په هغه نيم ولور چي د کوچنۍ جنلۍ ته ورکړي پر لوي ښځي ولي دا فرقت خو دي واقع کړي که چيري دې اقرار وکړي چي ما په قصد شيدې ورکړې چي دا نکاح فاسده سي، او که هغې وويل چي زه په فساد د نکاح نه پوهېدم اتفاقا چونکه دا انجلۍ وږې وه نو ما شيدې ورکړې نو بيا پر کبيرې تاوان ده ولور د صغيرې نسته.

قال القدوری" ولاتقبل فی الرضاع شهادة النساء منفردات وانما يثبت بشهادة رجلين او رجل و امرئتين" او نه قبليږي په رضاع کي شاهدي د ښځو چي يوازي وي يعني که څه هم ډيري وي، بلکه رضاع ثابتيږي په شاهدي د دوو نرو او يا د يوه نر او د دوو ښځو.

**مسئله**:- په در مختار کي واي چي تفريق د ميړه او مايني چي رضاع يې ثابته سي په شرعي ډول وروسته تر نکاح قاضي به يې کوي او امام شافعي رحمه الله وايې چي رضاع په شاهدۍ د څلورو ښځو هم ثابتيږي دوې ښځي په ځاي کي د يوه نر درېږي، موږ وايو چي رضاع خو داسي پټ شی نه ده لکه لنګېدل د ښځي چي نر هلته نسي ورتلاي نو شاهدي د يوازي ښځو پکښي منظور ده بلکه رضاع خو محارم د ښځو هم ويني، او قانون فقهي دي چي هغه کار چي اطلاع د نرو پکښي ممکنه وي يوازي شاهدي د ښځو نه ده منظور، کما فی الامور المالية كالبيع والشراء والاجارة وغيرها، قد تم كتاب الرضاع.

# كتاب الطلاق

يعني دا كتاب ثابت دي په بيان كي د احكامو او د اقسامو د طلاق.

**پوه سه**:- چي فقهاء رحمهم الله وايې چي ابغض د مباحاتو كارو په نېز د خداي ج طلاق لري د دې معنى داده چي بېله ضرورته دي سړي ومايني ته طلاق نه وركوي، دروېش.

قال القدوری رحمه الله " الطلاق على ثلثة اوجه احسن الطلاق وطلاق السنة وطلاق البدعة، فاحسن الطلاق ان يطلق الرجل امرئته تطليقة واحدة فی طهر واحد لم يجامعها فيه ويتركها حتى تنقضى عدتها" طلاق پر درې قسمه دي (۱) يو احسن الطلاق دي يعني تر ټولو ښه طلاق دي (۲) او بل طلاق سنت دي يعني دا خو هم ښه طلاق دي ليكن اول پر ښه دي (۳) او بل طلاق بدعت دي يعني د سنت طريقې څخه مخالف دي.

نو احسن الطلاق دادي چي طلاق وركړي نر و خپلي مايني ته يو طلاق د دې فائده داده چي كه وروسته سړی پښېمانه سي بيله تجديده د نكاح به رجوع ورته وكړي او دا طلاق به په يوه طهر كي وي ولي چي په حيض كي طلاق وركول خو بدعت دي چي مېړه د دې سره جماع نه وي كړي په دغه طهر كي د دې فائده داده، چي ښځي خپل د عدت حال معلوم كي، ولي كه يې په دغه طهر كي وطى ورسره وكړې نو دا نه پوهېږي چي زه مېندواره سوي يم چي عده به مي وضع حمل وي، اوكه حامله سوي به نه يم چي عده به مي حيضونه وي البته د بل حيض تر وخت دې ته دا درك نه معلومېږي وروسته به معلوم سي او دا ښځه دي پرېږدي تر هغو چي

عده يې تېرېږي يعني بل طلاق دي نه ورکوي ولي چې عده يې تير سو او دا په خپله باينه سوه، د دې طلاق د احسنيت وجه داده چې د ابراهيم النخعي څخه روايت دي چې د صحابه کرامو ﷺ دا خوښه وه چې طلاق دي تر يوه بالا نه ورکوي وښځي ته ترهغو چې عده يې تير يږي كذا فى شرح الكنز.

**قال القدورى رحمة الله عليه "وطلاق السنة ان يطلق المدخول بها ثلثا فى ثلاثة اطهار"** او طلاق سنت دادي چې مدخول بها ښځي ته يعني چې وطي يې ورسره کړې وي دري طلاق په دري طهره کي ورکړي په مدخول بها يې متعين کړه ولي چې غير مدخول بها کي تفريق ممکن نه دي.

**سوال**:- د طلاق السنت معنی خو په اصطلاح کي داده چې ثابت په سنت نبوي رحمة الله عليه سره وي نو احسن الطلاق خو هم طلاق السنت دي په دغه معني كما فى الفتح القدير، نو طلاق السنت يې په دې طلاق پوري ولي خاص کړي؟

**جواب**:- هو احسن الطلاق خو هم سني وو کما مر فى الرواية ابراهيم النخعي رحمة الله عليه ، ليکن چونکه احسن الطلاق سني باجماع الصحابه ﷺ و الائمه رحمة الله عليه وو نو تصريح ته يې په سنيت د هغه ضرورت نه وو، بخلاف طلاق السنة ولي چې د هغه په سني والي کي امام مالك رحمة الله عليه مخالف دي چې هغه وايې چې دغه طلاق هم بدعت دي نو تصريح په سني والي چې وکړه احتراز يې د مذهب څخه د مالك رحمة الله عليه وکړي نو په تصريح د سني والي د دې طلاق فائده داده چې دغه طلاق زموږ په نيز سني دي نه په اجماع بخلاف الاول، كذا فى مجمع الانهر، ودر.

او تفصيل د دليل د امام مالك رحمه الله او زموږ د جواب په عيني شرح الكنز او نورو شرحو كي مطالعه كي.

**درويش وايي**:- چي د تفصيل څخه په بعض مسئلو اختلاف فيه كي ډډه كوي په مراعات د حال د مطالعه كونكو چي اكثره مبتديان دي او يا اميان خط پوهېدونكي ورونه او خويندي دي.

قال المصنف رحمه الله " وطلاق البدعة ان يطلقها ثلثا بكلمة واحدة او ثلاثا فى طهر واحد فاذا فعل ذالک وقع الطلاق وبانت امرئته منه وكان عاصيا" او طلاق بدعت يعني مخالف السنة دادي چي مېړه طلاق ورکړي ماينې ته درې طلاقه په يوه كلمه يعني داسي ورته ووايې چي ته پر ما په درې طلاقه طلاقه يې، او يا درې طلاقه په يوه طهر كي وركړي يعني په تفريق سره نو كه سړي داغسي وكړي نو ماينه جلا سوه د ده څخه يعني په بينوته غليضه چي بيا نو ده ته نه روا كېږي بېله بل مېړه، او دى ګناه ګار هم سو په سبب د مخالفت د سنت نبوي ﷺ.

**يوه سه**:- چي درې طلاقه وركول بدعت دي كه په طهر كي وي كه په حيض كي وي او داغه رنګه بدعت دي يو طلاق په حيض كي او داغه رنګه بدعت دي دوه طلاقه په حيض كي، او داغه رنګه بدعت دي دوه طلاقه په طهر كي او يو په حيض كي، او امام شافعي رحمه الله وايې چي د درو طلاقو پر يو ځاى وركولو سره ګناه كار نه دي ولي چي ماينه د ده ملك ده نو د ته هر رنګه تصرف روادي.

قال القدوری" والسنة فی الطلاق من وجهین سنة فی الوقت و سنة فی العدد فالسنة فی العدد یستوي فیها المدخول بها وغیر المدخول بها" او سنت په طلاق کي د دوو طریقو څخه سته یو سنت دي په وقت کي یعني په څه وخت کي به سړي ماینې ته طلاق ورکوي، او بل سنت دي په عدد کي یعني څو طلاقه ورکول سنت دي، نو سنت په عدد کي یعني چي یو طلاق دي په سنت کي برابره ده مدخول بها ښځه یعني چي وطي یې ورسره کړي وي، او غیر مدخول بها یعني د دواړو سني طلاق یو طلاق دي، لقوله تعالی فتلقوهن لعدتهن" وجه د استدلال په دغه آیت داده چي د ابن مسعود او ابن عباس او ابن عمر ﷺ څخه روایت دي چي معني د دې آیت داده چي د مخه د عدت ښځي تاسي طلاق وي، وهو عام مدخول بها او غیر مدخول بها" دواړه پکښي داخلي دي، الاقطع.

والسنة فی الوقت تثبت فی حق المدخول بها خاصة" او سنت په وخت ثابت دي په حق کي د مدخول بها خاصه ولي چي غیر مدخول بها په یوه طلاق بائن ګرځي، فلایمکن فیها تفرق التطلیقات علی الاطهار.

وهو ان یطلقها واحدة فی طهر لم یجامعها فیه" او هغه سنت د وخت چي خاص په مدخول بها سره دي دادي چي مېړه بې په یوه طلاق طلاقه کي په طهر او پاکي د ښځي د حیض څخه او داسي طهر به وي چي په هغه کي یې وطي هم نه وي ورسره کړي، تاچي دې ته د خپلي عدې درك دستي معلوم سي چي عده زما په حیضو ده.

قال القدوري" وغير المدخول بها يجوز ان يطلقها في الطهر والحيض" او چي د ښځي سره دخول او وطي نه وي سوي روا دي چي طلاق ورکړي مېړه که په طهر کي وي او که په حيض يعني دواړه وخت يې سني دي ، ولي شوق د مېړه و غير مدخول بها ته په دواړه حال کښ تازه دي او د وطي سودا د ده سره ورسره ده تر څو چي غوولې يې نه وي، بخلاف د مدخول بها ولي چي وه هغې ته د مېړه سودا په حيض کي نسته ولي ده زړه په سوړ کړي دي په حال کي د طهر نو څه وخت چي دا ده حيضه څخه خلاصه سي نو ده ته نوي رغبت ورپيدا کيږي نو سره د هغه چي دي طلاق ورکړي نو دا معلومه سوه چي دی وطلاق ته ضرورت لري سره د تجدد د رغبت، و بهذا يرد قول د زفر رحمه الله چي هغه وايې د غير مدخول بها طلاق په حيض کي هم بدعت دي دي قياسوي پر مدخول بها باندي، وقد عرفت الفرق بينهما هذا حاصل ما في الهدايه.

قال المصنف" واذا كانت المرئة لاتحيض عن صغر او كبر فاراد ان يطلقها للسنة طلقها واحد فاذا مضى الشهر طلقها اخرى واذا مضى الشهر طلقها اخرى" او که وښځي ته يعني د يو سړي مايني ته حيض نه ورتلي په سبب د کچنوالي يعني بالغه نه وه او يا په سبب د سپين سر توب ، او مېړه يې اراده وکړه چي د طلاق سنت پر طريق يې طلاقه کي نو يو طلاق خو ده ورکړي نو بيا چي مياشت تېره سوه بيا دي بل طلاق ورکړي او بيا چي بله مياشت تېره سوه بيادي بل طلاق ورکړي غرض دا چي په طلاق سني کي مياشت ددې د يوه حيض په ځاي کي درېږي.

قال المصنف رحمه الله " ويجوز ان يطلقها ولا يفصل بين وطيها وطلاقها بزمان" او روا ده چي سړی ماينه طلاقه کړي او فصل يعني جلا والي نه وي په مابين کي د وطي او د طلاق د دې په زمانه سره.

**پوه سه**:- چي مراد د ضمير موئنث ښځه په دغه عبارت کي هغه ښځه ده چي حيض نه ورځي ولي چي د دغي ښځي سره چي وطي وکړي نو احتمال د حمل خو نسته ولي چي ښځه حيضه خو عمل نه پيداکيږي، نو ددې ښځي عده نه مشتبه کيږي بلکه عده يې يقينا په مياشتو ده.

وطلاق الحامل يجوز عقيب الجماع" او طلاق د حمل داري ښځي روادي وروسته تر جماع ددې سره ولي دا وطي خو سبب د اشتباه ددې د عدې نه ګرځي ولي چي ددې عده خو يقينا وضع الحمل دي او داغه رنګه وطي ددې سره سبب د سرد دلي د مېړه نه ګرځي بلکه زمانه د حمل تر پايه پوري زمانه د رغبت ددې جماعو ده ولي چي د مېړه عيال د دې په رحم کي دي نو رغبت دده په وطي سره ددې ښځه نه لرېږي، محصل الهدايه.

قال ويطلقها للسنة ثلاثا يفصل بين كل تطليقتين بشهر عند ابى حنيفة وابي يوسف رحمه الله وقال محمد رحمه الله لا يطلقها للسنة الا واحدة" او دغه حامله ښځه به مېړه طلاقه وي د سنت پر طريقه درې طلاقه په مابين کي د هرو دوو طلاقو به فصل د يوې مياشتي وي په نيز د امام اعظم او ابو يوسف رحمه الله او امام محمد رحمه الله وايې چي نه دې طلاق وي د سنت د اجراء لپاره مګر يو طلاق به ورکوي.

**پوه سه**:- چي مذهب ته د امام محمد امام زفر رحمة الله عليه هم تللي دي د دوي دا دليل دي چي مدت د حمل د دغي ښځي خو ګرده يو طهر دي نو په طهر کي خو تفريق د طلاقو صورت نه لري لکه بعض ښځي چي حاملي هم نه وي لکن طهر يې اوږد وي يعني دوې درې يا بالا مياشتي حيض نه ورځي نو دغي ښځي ته چي مېړه طلاق سني ورکوي په دغه اوږد طهر کي خو دري طلاق نه سي ورکولای، فکذا الحامل المذکورة لانها بمنزلة تلک المرئة الممتدة الطهر، شيخان رحمة الله عليه وايې چي حاملي لره خو امکان د حيض نسته حتى که په مده کي د حمل دا وينه ووينه هغه استحاض دي، نو د دې مثال لکه د آيسه ښځي دي، يعني د حيض ځخه نا اميده وي بخلاف ممتدة الطهر ولي هغه ته خو هر وقت احتمال د حيض د ورتلو سته ولي عادت د ښځو خو بدليږي، مجمع الانهر ودرويش.

قال القدوری" واذا طلق الرجل امرئته فی حالة الحيض وقع الطلاق و يستحب له ان يراجعها فاذا طهرت وحاضت وطهرت فهو مخير ان شاء طلقها وان شاء امسکها"

او که طلاقه کړه يوه سړي ماينه خپله په حال کي د حيض يعني طلاق بدعي يې ورکړي طلاق خو واقع سو لکن مستحب ده دغه سړي لره چي رجوع دي وروته وکړي يعني د پاره د رفع د بدعت نو چي دا د هغه حيض ځخه پاکه سي چي دي ته مېړه طلاق پکښې ورکړي وو او بيا بل حيض ورغلي او چي د هغه حيض ځخه پاکه سي نو مېړه يې اختيار لري که يې خوښه وو ببرته دې طلاقه کړي چي طلاق يې پر سنت برابر سي او که يې خوښه وي ماينه دي کړي.

**فائده سنيه**:- پوه سه چي وقوع د طلاق په حال کي د حيض مذهب دي د جمهورو علماء وو مګر بعض علماء وايي چي طلاق په حال کي د حيض لغوه دي ولي چي د داسي طلاق څخه نهي راغلي دي بلکه علاوه پر دغه دا ډله داهم وايي چي درې طلاقه په يوه کلمه هم نه واقع کيږي لورود النهى عنه ايضا والجواب فى نور الانوار، او په نورو کتابو کي د فقهي شريفي وايي چي په مابين کي د نفي او نهي فرق سته په دي په دې معني چي نفي امکان د منفي نه غواړي او د وقوع سره د منفي منافي دي او نهي دا غواړي چي منهي عنه به متصور الوجود وي، والا فلا معنى للنهى عنه، او فائده د نهي تحريم دي د منهي عنه والنهي عن ايقاع الطلاق حالة الحيض لانه زمان مدة الشهوة فلعله اوقع الطلاق لذالک وکذا النهى عن ايقاع الطلاق الثلثة لاجل انه لعله يندم على الطلاق" نو بيا خو پر رجوع قدرت نه لري بلکه زوج آخر غواړي، وقد تقرر فى الفقه" چي نهي چي د معنى فى غيره د سببه وي هغه نه منع کوي وقوع د منهي عنه لکه بيعه په وقت کي د آذان د جمعي.

**فائده**:- قدوري رحمة الله عليه تصريح په استحباب وکړه ليکن صاحب هدايه رحمة الله عليه وايي چي رجوع ورته کول واجب دي، لانه عليه الصلوة والسلام امر کي ابن عمر رضي الله عنهما چي هغه په حيض کي ماينه طلاقه کړې وه په رجوع سره، او په اصول الفقه کي وايي چي امر مطلق د پاره د وجوب دي او ندب وغيره معنى مجازي ده بېله قرينې نه مراد يږي ، او بل دا چي د معصيت د ميره څخه دفعه وسي حتى الامکان، يعني اثر د هغه طلاق منهي عنه په رجوع سره پورته سي، او بل داچي د ښځي څخه به هم ضرر د تطويل العدة دفعه سي ولي که دي رجوع ونه کړي داغه موجوده حيض

چي طلاق پکښي واقع سوي دي ددې دعده څخه نه شمېرل کېږي نو درې حيضه به نور تېروي.

**درويش وايي**:- چي يو د دغه دروو وجهو کافي دي د پاره د وجوب د رجوع، فکيف اذا اجتمع الثلثة.

**فائده**:- قدوري رحمه الله طهر ثاني شرط کړي په مبسوط کي د سرخسي هم داغسي عبارت موجود دي، وقال فيه وهو ظاهر الرواية عن الامام الاعظم رحمه الله وهو قولهما" اوفقهيه امام جعفر الطحاوي رحمه الله وايې چي په طهر متصل کي هم طلاق ورکولاي سي، او په تحفه کي د امام کرخي رحمه الله څخه نقل کړي دي چي طحاوي رحمه الله چي ويلي دي هغه د امام اعظم رحمه الله دي او هغه چي په مبسوط کي ذکر سوي دي هغه قول د يارانو رحمه الله دي، او قول د امام اعظم رحمه الله د هغه قانون سره برابر دي چي طلاق دي په داسي طهر کي ورکوي چي جماع يې نه وي پکښي کړي، والطهر المتصل کذالك، مجمع، ودرويش.

قال القدوری" ويقع طلاق کل زوج" يعني که حر وي او که مريي په خپل خوښه طلاق ورکوي او که په زوره، د زړه واي او که مسخرې کوي، لقوله عليه الصلوة و السلام ثلثلة جدها جد وهز لها جد ذکر ههنا الطلاق، يعني واقع کېږي طلاق د هر مېړه.

اذا کان عاقلا بالغا" يعني په عقل مميزه سره، نو نائم او او ليوني خارج سو، بالغا يعني چي بلوغ ته رسېدلي وي نو کوچني خارج سو.

ولا يقع طلاق الصبی والمجنون والنائم" نو نه واقع کېږي طلاق د کوچني چي بالغ نه وي او لېوني او د بېده ولي دغه کسان نه لري قول

صحيح اختياري، په جوهره کي وايي چي د معتوه طلاق هم نه واقع کېږي.

**فائده**:- معتوه هغه سړي بولي چي بعض خبري يې د عاقلانو پر طريقه وي او بعض خبري يې د لېونيانو پر وزم وي چي داسي سړي په پښتو کي پاګل وايي.

**پوهنه**:- چي د معتوه طلاق هلته نه واقع کيږي چي په وقت د عته طلاق ماينې ته ورکړي ، او که يې په حالت کي د صحت ورکړي نو صحيح داده چي طلاق يې واقع کيږي، او که د سړي د بېهوښي په حالت کي طلاق د ماينې تر خوله ووتي هغه هم نه واقع کيږي.

قال القدوري رحمه الله "واذا تزوج العبد باذن مولاه وطلق وقع طلاقه" اوکه نکاح وکړه مرييپه اجازه د بادار او بيا يې طلاقه کړه طلاق يې واقع کيږي.

**درويش وايي**:- چي فرق په مابين کي د نکاح د مريي چي اجازه د مولى غواړي او د طلاق د ده چي اجازه د مولى نه غواړي دادي چي د مريي د نکاح په صورت بادار ته تاوان رسيږي (۱) اول واور خو په رقبه پوري د مريي تعلق لري رقبه د مريي خو ملك د مولاده او (۲) دوهم نفقه د ماينې د مريي خو هم پر مولاده (۳) دريم مريي چي ماينه ولري څه نا څه د مولى په خدمت کي قصور راځي نو د دې سببو پر بناء په نکاح کي اجازه د مولا غواړي، او په صورت کي د طلاق بضع د ښځي خو د مريي ده او مريي عاقل وبالغ هر کلام د ده صحيح دي، او په طلاق مولى ته ضرر هم نه رسيږي نو ځکه د اجازې ته ضرورت نسته، کذا في الهدايه ومجمع الانهر والعيني وغيره.

قال القدوری" ولا يقع طلاق مولاه على امرئته" او نه واقع کيږي طلاق د بادار پر ماينه د مريې ولي ملك النكاح خو حق ده مريې دي نه د مولانو اسقاط يې هم په مريي پوري اړه لري نه په مولا پوري، هدايه.

والطلاق على ضربين صريح وكنايه، فالصريح قوله انت طالق او مطلقة او طلقتک فهذا يقع به الطلاق الرجعی ولا يقع به الا واحدة وان اكثر من ذالک ولا يفتقر فی هذه الالفاظ الی نية" او طلاق پر دوه قسمه دي صريح دي يعني چې مراد يې هر چاته ظاهر وي، او بل قسم كنايه دي يعني مراد يې پټ وي د ويونكي په ارادې پوري اړه لري او يا په قرينه پوري، نو صريح الفاظ د طلاق دادي چې مېړه وماينې ته ووايي چې ته طلاقه يې، او يا ته مطلقه يې او يا ماته طلاقه کړې يې. والفرق بين هذه العبارات دادي، چې اول او دوهم جمله اسميه دي اول چې طالق د مجرد د باب دي او دوهم د مزيد د باب دي، او دريم جمله فعليه ده او په د غو الفاظو طلاق رجعي واقع کيږي يعني چې پس له د غو الفاظو ويلو مېړه بېرته د عده په دوران کي ماينې ته رجوع کولاي سي يا په قول ياپه عمل چې مچه څندي واخلي ياوطي ورسره وکړي او تجديد ته د نكاح ضرورت نسته، سبب دادي چې طلاق چونکه خلاف د ملك نكاح دي نو په د غو الفاظو سره ادنى طلاق ثابتيږي چې رجعي دي، او نه واقع کيږي په دغو الفاظو مګر يو طلاق ولي چې مصدر د دغو الفاظو خو صراحة نه دي ذکر سوي چې ظلاق دي بلكه په مقتضى د مشتقاتو ګويا دي مذکور دي، او قانون فقهي دي

چي پر لفظ چي مذکور اقتضاءً وي هغه په قدر ضرورت يې معني اراده کيږي او ضرورت خو په اقل سره دفعه کيږي چي هغه متيقن دي فلا حاجت الى اثبات الأكثر، که څه هم د سړي مراد اکثر تر يوه طلاق وي ولي لفظ د مصدر يې احتمال نه لري، والاصل فيه قوله تعالى الطلاق مرتان فامساك بمعروف او تسريح باحسان" يعني طلاق چي د رجوع حق ورسره سته دوه واره دي وروسته ترهغه به يا امساك د ماينې کوي يعني رجوع به ورته کوي لکن پر شرعي ډول، يعني رجوع به يې د دې لپاره نه وي چي پسله رجوع څخه يې بيرته طلاقه کړي د پاره د اضرار د ښځي چي عده پر اوږده کړي، کما كان اهل الجاهلية يفعلون ذالك" او يا به ايله کوي ماينه په ښه طريقه يعني رجوع دي نه ورته کوي پرې دې دي چي عده يې تېره سي پخپله د مېړه څخه خلاصه سي ليکن دا ټوله په مدخول بها کي دي او غير مدخول بها چونکه عده نه لري او په يوه طلاق بائن ګرځي نو مېړه پس له طلاقه حق د رجوع نه لري. مجمع الانهر هدايه عيني درويش.

قال القدوری رحمة الله عليه " وقوله انت الطلاق او انت طالق الطلاق او انت طالق طلاقا فان لم يكن له نية فهي واحدة رجعية وان نوى ثنتين لايقع الا واحدة وان نوى ثلاثا كان ثلثا" او دا قول د سړي چي ماينې ته ووايې چي ته طالق الطلاق يې، يعني مصدر معرفه ذکر کړي ، او ياووايي چي ته طلاقه يي يعني يوازي مصدر ذکر کړي ، او يا ووايي چي ته طالقه يې طلاقا يعني مصدر نکره ووايي.

**پوښتنه**:- چي قوله مبتداء ده او دا جمله شرطيه يعني فان لم يكن آه، جز د مبتداء دي نو که د ده په نيت کي هيڅ شي نه وو نو يو طلاق رجعي واقع کيږي ولي چي دمخه تېره سوه چي صريح لفظ د طلاق واحد

رجعي دي او که يې د دوو (۲) طلاقو نيت وو نو دوه نه واقع کيږي مګر يو طلاق ، او که يې نيت ي د دروو (۳) طلاقو وي بيا درې طلاقه واقع کيږي.

**درويش وايي**:- چي حل د دې مقام موقوف دي پر دې چي لفظ د طلاق چي په دغو عباراتو کي صراحة ذکر دي اسم جنس دي او جنس دوه قسمه افراد لري، يو يې فرد حقيقي بولي چي يو فرد دي، او بل يې فرد اعتباري بولي چي ټول افراد د هغه جنس دي نو ګويا دا مجموعه اعتبارا يو فرد دي لکن دا هلته چي مجموع افراد د جنس محصور وي لکه طلاق چي ټوله افراد يې درې دي نو په مثل د رجل فرد اعتباري نه جوړېږي، الا اذا دخله لفظ د کل مضافا الى اسم الجنس المعرف بالام نحو کل الانسان لايسعه هذه الدار" نو په مانحن فيه چي د سړي نيت نه وي نو ففرد حقيقي د طلاق مراد چي يو طلاق دي ودغه رنګه کي نيت د يوه طلاق وو، او که يې نيت د دوو طلاقو وو نو نيت يې نه دي صحيح ولي چي دوه طلاقه نه ففرد حقيقي دي او نه فرد اعتباري مګر هغه وخت که يې ماينه مينځه وه، ولي د هغې د طلاق ټوله جنس دوه دي کما تقرر فی کتب الفقه، نو يو طلاق په دې سبب واقع کېږي چي نيت د دوو چي لغوه سوه نو لفظ د طلاق مطلق پاته او په مطلق طلاق سره واحد رجعي طلاق واقع کېږي، او که يې نيت د دروو طلاقو وو نو بيا درې طلاقه واقع کېږي ولي چي درې طلاقه فرد اعتباري دي لفظ يې احتمال لري او په نيت سره تائيد وسو.

**پوه سه**:- چي دا تفصيل هلته دي چي عربي الفاظ استعمال کړي کما فی عبارت المصنف رحمة الله عليه

**فائده درويش وايي**:- كه څه هم مذكور تفصيل د مبتديانو تر فهم لوړ دي او دغه د خط پوهانو اميانو تر پوهېدو هم لوړ دي ليكن درويش د پاره د حل د مقام ودې تفصيل ته مجبور سو، البته طالبان ښه نفعه پر اخيستلي سي كما لا يخفى فافهم، درويش.

قال القدورى" والضرب الثانى الكنايات"

**پوه سه**:- چي كنات جمع د كنايه ده چي هغه مشتق د كنى څخه دي چي د كني معني ده پټ والي دي نو دا هغه الفاظ دي چي د طلاق هم احتمال لري او د بلي معني احتمال هم لري نو د دې سبب په دغو الفاظ طلاق نه واقع كېږي بېله قرينې د طلاق، در.

ولا يقع بهـا الطلاق الا بالنية" ولي چي په دغه الفاظو كي احتمال د غير د طلاق هم سته كما سياتى.

او بدلالة الحال" لكه حال د جنګ د مبره او ماينې وغير ذالك.

وهى على ضربيـن منها ثلثة الفاظ يقع بها الطلاق الرجعى ولا يقع بهـا الا واحدة" او كنايات پر دوه قسمه دي بعض د كناياتو درې لفظه دي چي په هغو طلاق رجعى واقع كيږي او نه واقع كيږي په هغو سره مګر يو طلاق.

وهى قوله اعتدى واستبرئى رحمک وانت واحدة" او هغه دا درې كلمې دي اعتدى دا قول ده احتماله لري يو دا چي ته وشمېره نعمتونه د خداي ﷻ پر تا باندي، او بل دا چي زما د نكاح څخه عده تېر كړه نو چي دى نيت د دوهمي معنى وكړي نو عده تېرول خو پسله طلاقه وي، نو ده ګويا داسي ورته وويله چي ته دي خپله عده تېره كړه ولي چي

ما طلاقه کړې یې او د طلاق د لفظ وروسته خو رجوع صحیح ده، او بل لفظ استبرئی، یعني ته دي پاك کړه رحم دا لفظ هم احتماله لري یو داچي ته خپل رحم پاك کړه د حیض څخه چي زه وطي درسره وکړم، او بل دا معني کیدلي سي چي ته رحم پاك کړه چي زه دي طلاقه کړم، نو چي دوهمه معني د ده مراد وي خو بیا صریح لفظ د طلاق مابین ته راغلي او تر هغه وروسته خو رجوع صحیح کما مر مرارا، او دریم لفظ انت واحدة دا لفظ هم دوه احتماله لري یو داچي ته یوه ښځه یې په قوم کي په ښائست یا په کمال سره، او بل داچي واحدة صفه د مصدر محذوف ده یعني تطلیقة واحدة او مفعول مطلق خو فعل عامل غواړي ګویا د داسي وویل، طلقتك تطلیقة واحدة، او تر صریح لفظ د طلاق رجوع وروسته صحیح کوي، نو چونکه دغو درووِ لفظو دوه احتماله درلوده نو ځکه حاجت وه نیت ته لري، او طلاق هم یو او رجعي دي ولي د طلاق لفظ چي ښکاره و وایې خو طلاق یې یو او رجعي دي نو چي محذوف وي لکه فیما نحن فیه کي نو په طریق اولی واحد رجعي دي.

**پوښتنه**:- بعض علماء وایې چي په انت واحدة چي معني اوله مراد وي نو خو خبره د انت ده نو باید مرفوع وویل سي کما لا یخفی، او که معني ثاني مراد سي باید منصوب وویل سي ولي چي صفت د مصدر محذوف دي او هغه مفعول مطلق دي او مفعول مطلق خو منصوب وي کما تقرر في النحو نو پوښتنه داده چي په دې لفظ کي دوه احتماله چېري دي که یې مرفوع ووایې هم یو احتمال دي او که یې منصوب ووایې هم یو احتمال لري؟

**جواب**:- بعض شارحان دا جواب ورکوي چي دا دوه احتماله په حال کي وقف دي، ليکن صحيح داده لکه صاحب هدايه رحمة الله عليه چي وايې چي د مشائخو رحمهم الله په نېز اعتبار اعرابو لره نسته ولي چي عوام د وجوهو د اعراب په فرق نه پوهيږي البته نحوي سړي يې په فرق پوهيږي، والاعتبار للاکثر وهم العوام.

**سوال**:- د مخه تېره سوه چي د طلاق په لفظ کي نيت د درو طلاقو صحيح دي دلته تطليقه محذوف دي بايد نيت د درو طلاقو صحيح واى؟

**جواب**:- هو ليکن دلته چونکه قائل تصريح په وحدت وکړه نو د درو طلاقو نيت کول د مابين ښځه ولاړل.

قال القدوری" وبقية الكنايات اذا نوىٰ بها الطلاق كانت واحدة بائنة" او باقي مانده کنايات چي نيت د طلاق په دوي سره وکړه سي نو طلاق يې يو او بائن طلاق دي چي رجوع د مېړه نه ده صحيح البته په نکاح جديده ورته رواکېږي ولي چي طلاق يې مغلظ يعني ثلاثه نه دي ولي ثلاثه په نيت پوري اړه لري، او نيت د طلاق چي غواړي ددې وجهي چي دا الفاظ هم د دوو معنیٰ و احتمال لري، فلابد من النية كما مر وسياتی احتمالان عند ذکر كل لفظ انشاء الله تعالیٰ.

قال" وان نوىٰ ثلاثا كان ثلاثا وان نوىٰ ثنتين كانت واحدة" او که يې نيت د درو (۳) وو نو درې طلاقه واقع کيږي او که يې نيت د دوو (۲) طلاقو وو نو يو طلاق واقع کيږي، او نيت د دوو طلاقو نه دي صحيح، او امام زفر رحمة الله عليه وايي چي نيت د دوو هم صحيح دي، زمونږ

دلیل دادي چي بینونت د عدد احتمال نه لري او دوه په حق کي د حرې عدد دي نو چي احتمال د عدد نسته نو نیت یې هم نه دي صحیح.

**سوال**:- درې خو هم عدد دي نو ولي یې نیت صحیح دی؟

**جواب**:- د دروو نیت په حیث د عدد نه دي صحیح بلکه په دې حیث صحیح دي چي نوعه واحده غلیضه بینو نه ده نو ددې سببه که ماینه د سړي مینځه وي نو نیت د دوو (۲) طلاقو صحیح دي نه من حیث العدد بلکه په دې حیثیت چي دوه طلاقه نوع واحده غلیضه ده بینونه ده په حق کي د مینځي کمامر، لکه درې په حق کي د حري ښځي، هذا حاصل مافی الجوهره.

قال القدوری رحمه الله "وهذه مثل قوله انت بائن و بته وبتلته وحرام" او هغه الفاظ لکه دا قول د مېړه مېنې ته چي ته بائینه یې، په لفظ کي دوه احتماله سته یو داچي ته جلا ښځه یې د قوم ځخه خپل، او بل احتمال یې دادي چي ته زما د نکاح ځخه جلا یې نو چي دي دوهم قصد وکړي نو یو بائن طلاق یا درې طلاقه پر ښځه واقع کیږي ولي چي په رجعي طلاق کي جلاوالي نسته لامکان الرجعي، او بته او بتلته چي د دواړو معني قطعه ده هم دوه احتماله لري یو دا چي ته مقطوع یه د هر کار ځخه د خیر او یا مقطوع یې د پلارګني ځخه، او بل داچي ته زما د نکاح ځخه بري یې نو چي نیت د دوهمي معني وکي نو طلاق بائن واحد یا بائن مغلظ په واقع کیږي ولي چي په رجعي کي قطع د نکاح نسته لامکان الرجوع، او د حرام د لفظ هم دوې معني وي دي یو دا چي ته حرام په غیر زما او محترمه یې پر ما باندي، او بل داچي ستا وطي وماته حرامي دي، فاذا نوی الثانی یقع البائن الخفیف او الغلیظ ان

نوى الثلثة، ولي چي په طلاق رجعي ماينه نه حراميږي بلکه په وطي سره د ده رجوع ثابتيږي.

قال القدوري" وحبلك على غاربك" ماينې ته مېړه ووايې چي ستارسي ستا پر غاړه ده.

**ښوه سه**:- چي اوښ يا اوښه چي مالك يې نه غواړي چي پر ځاى ځړ وکړې نو يې رسي په موږي پوري وتړي نو دا اوښ په په قدر د طول د رسي شاوخوا ځړ کولاى سي وبس، او چي مالك وغواړي چي دا اوښه هر ځاي چي يې زړه وغواړي ځړ دي کوي نو رسي پر غاړه وريږچي او ايله يې کړي نو هغه اوښه پرهر ځاى چي د دې مرضي وي ځړ کولاى سي د مالك د خوا مانع نسته، نو دلته مېړه خپله ماينه مشابه کوي د هغې آزادي اوښي سره ليکن د دې ازادي دوه احتماله دي چي که د مېړه نيت داوي چي ما دي رسي د نکاح پر غاړه در ويېچله هر چيري چي مېړه کوي وې کړه نو پر دې تقدير طلاق بائن دي، او داهم احتمال لري چي مېړه دي وماينې ته اختيار ورکوي چي د پلار کره ځي او که د ورونو کره ته مختاره يې زما د خوا قيد نسته که يې دا نيت وي نو طلاق نه دي، نو ځکه د طلاق نيت غواړي چي دا معني يې اولى حاصل وو.

قال" والحقي باهلك" او ولاړه سه خپلو خپلوانو ته.

**ښوه سه**:- چي دا لفظ هم دوه احتماله لري يو داچي زما د خوا فارغه يې د نکاح څخه ولاړه سه خپلو قريبانو ته، او بل داچي ولاړه سه د خپلوانو کره يو څو شپې به وکړې طبعيت به دې رسته سي، ولايقع الطلاق الابالنية الاولى كما لايخفى.

قال" وخلية وبرية" او ته خالي يې يا خلاصه يې.

**پوه سه**:- چي دا دوه لفظه هم دوې معني وي لري يوه دا چي ته خالي يې د عقل او ادب څخه او خلاصه يې د كور د كار څخه، او بله دا معنى چي ته خالي يې زما د نكاح څخه يا خلاصه يې زما دزوجيت څخه، ولا يقع الطلاق الا بالنية الثانية، نو ځكه نيت ضروري دي.

ووهبتك لاهلك" ماتـه بخښلې يې وخپلو قريبانو ته، دا لفظ هم دوې معنا وي لري يا دا چي ته مابخښلې يې ستا و قريبانو ته د هر قريب كره چي ځې تلاى سې، او يا ما بخښلې يې ستا قريبانو ته ولي زما څخه طلاق او بائن يې، والطلاق يقع بالنية الثانية.

پوه سه:- چي امام اعظم رحمه الله په دې لفظ كي په زړه پوري تحقيق لري، هغه دا چي كه مېړه وويله، وهبتك لاهلك، او لابيك او لامك او للازواج فهو طلاق" كه يې نيت د طلاق وو ولي چي ښځه چي پس له طلاقه ودغو كسانو ته رديږي، او بل څوك د دې مېړه ګرځي پس له طلاقه.

**درويش وايي**:- چي آخر د فكر ځاى دي فتامل، او كه يې داسي وويله، وهبتك لاخيك او لعمك او لخالك او لفلان الاجنبى لم يكن طلاقا" يعني كه څه هم نيت د طلاق وي ولي په طلاق ښځه پر دغو كسانو نه رديږي، كذا فى الجوهره.

قال" وسرحتك" ماتـه ايله كړې يا معنا دا ده چي د ماينه توب څخه مي ايله كړې يې او يا معنا داده چي ماتـه خپل سر ته ايله كړې هر څه تصرفات چي زما په مال كي كوې او په بازار كي چكر وهي، طلاق په صورت اول كي واقع كيږي.

واختياري" يا معنا داچي ته د ځان د پاره خپل مېړه خوښ كړه نو په دې صورت كي طلاق دي،

او یا معنا دا چي ته ځان ته کالي، سره زر، یا امېل وغیره خوښ کړه نو په دې صورت کي طلاق نسته.

وفارقتك" یامعنا دا چي زه ستا ښځه په عقد نکاح کي جلا سوم، نو طلاق دي او یا معنا داده چي زه د ناجوړی د سبب ښځه تا د ځان ښځه جلا کوم او یا د سفر په وجه تا د ځان ښځه جلا کوم.

وانت حرة" ته ازاده یې یعني زما د نکاح ښځه نو طلاق دي، یا ته ازاده یې په دنیائي تصرفاتو کي نو طلاق نه دي.

وتقنعی" ته مخ پټوه، یا معنا دا چي زما ښځه مخ پټوه نو طلاق دي یا چي د کوره ووځې مخ پټوه نو طلاق نه دي.

واستتریٔ" ځان پټوه د بېګانه وو ښځه نو طلاق نه دي، یا ځان پټه وه د ما ښځه نو طلاق دي.

واغربی" د ما ښځه لېري سه ولي چي په خوله مي نه کوي، یا لېري سه ولي د ما ښځه بائنه یې نو طلاق دي.

وابتغی الازواج" طلب کوه د مېړه چي زما ښځه بائنه یې نو طلاق دي، یا ته تلاش وکړه د مړو د ښځو چي زما غوندي ښه مېړه بله ښځه لري نو طلاق نه دي.

قال" فان لم یکن له نیة الطلاق کما ذکرنا لم یقع بهذ الالفاظ الطلاق، لان النیة ضروری فی الکنایات کما مر الا ان یکونا فی مذاکرة الطلاق فیقع بها الطلاق فی القضاء ولا یقع فیما بینه وبین الله الا ان ینویه" مګر په دغو کنایاتو کي طلاق واقع کیږي که چېري مېړه او ماینه په حال کي د ذکر د طلاق وه، یا ماینې

ورته ویل چي ما طلاقه کړه، یا زما بن طلاقه کړه نو مېړه یوه د دغو کنایاتو څخه ورته ویل نو طلاق واقع سو په حکم کي د قضاء یعني که مرافعه د دغه ماجرا وقاضي ته وسوه قاضي به مېړه ته وایي چي دغه ستا مابینه په طلاق بائن پر تا طلاقه ده، ولي چي قاضي خو وظاهر ته ګوري ظاهرا مذاکره د طلاق قرینه پر ارادي د طلاق که څه هم مېړه ووایي چي زما غرض په دغه کنایه کي هغه معنا مراد وه چي طلاق نه په واقع کیږي، او که خبره داغسي پاته سي اومرافعه وه قاضي ته نه وسي، نو په مابین کي د ده اودخداي ﷻ طلاق نه واقع کیږي یعني وطي او جماع یې ورته روا دي مګر که یې نیت د طلاق وو او معامله تر قاضي نه ورسیدله، نو صرف د ده د خولې په وینا چي زما نیت د طلاق وو مابینه ورته حرامه ده، لانه تعالی ینظر الی السرائر.

قال القدوری" وان لم یکونا فی مذاکرة الطلاق وکانا فی حالة الغضب والخصومة وقع الطلاق بکل لفظة لا یقصد بها السب والشتیمة ولم یقع بما یقصد بها السب والشتیمة الاان ینویه" او که نه وه مېړه او مابینه په حال کي د مذاکرة الطلاق بلکه په غضب او دجنګ وه نو طلاق واقع کیږي په کنایانو چي په هغو سره نه قصد کړه کیږي ښکنځل او بد ویل، او نه واقع کیږي طلاق په کنایاتو چي په هغو کي احتمال د ښکنځلو وي، البته که په هغو کي د مېړه د طلاق نیت وو، نه د بد ویلو بیا طلاق واقع سو، تفصیل دادي چي په انت حرام، او بائن، او بته، او بتله، او خلیه، او بریه، او اعتدی، او استبرئ رحمك" نو که یو د دغو الفاظو څخه مېړه په حال کي د مذاکرة الطلاق استعمال کړي نو طلاق په واقع کیږي، او که دي ووایي چي زما

غرض طلاق نه وو قاضي به يې تصديق نه كوي او د دغو كناياتو څخه يو په حال كي رضا ووايې نو كه يې نيت د طلاق وو ماينه پر طلاقه سوه او كه ده وويل چي زما غرض طلاق نه وو نو قاضي به يې تصديق كوي، او كه دغه كناياتې ده په حال كي د غضب استعمال كړي نو په ټولو كي طلاق واقع كيږي كه څه هم دي وواې چي زما غرض طلاق نه وو، مګر په پنځو (۵) كناياتو كي د دغو مذكوره كناياتو چي مېړه دعوه وكړي چي زما طلاق نه وو غرض ښكنځل وه ومايني ته، ولي دغه پنځه احتمال د ښكنځلو لري بخلاف بقيه الكنايات المذكورة چي په هغو كي احتمال د ښكنځلو نسته، هغه پنځه الفاظ چي احتمال د ښكنځلو لري دادي، انت حرام" يعني ته حرامي توب كوي د مېړه حقوق نه منې، انت بائن" ته د دين څخه وتلې ښځه يې، انت بتة" ته د غيرت انساني څخه قطع ښځه يې، انت بتلة" ته د خير د كارو څخه بېخي خالي يې، انت برية" ته د دين او اسلامه بېزاره ښځه يې نو چونكه حال د غضب دي نو ظاهرا د مېړه په دغو الفاظو ښكنځل غرض دي، او بيا هم كه دی ووايې چي زما طلاق غرض وو طلاق په دغو كناياتو سره هم واقع كېږي.

**درويش وايې**:- چي په دې باب كي مزيد تفصيل په عيني شرح الكنز او په رد محتار او جوهره كښي يې مطالعه كړي ولي چي مبتدي د ډېر تفصيل د درك وس نه لري او دا تفصيل چي درويش وكړي د دې چاره نه وه په فهم د عبارت قدوري چي دلته يې ذكر كړي دي او علماء وايې، ما لا يدرك كله لا يترك كله" يعني ټوله تفصيل د سړي د ادراك وس نه په رسيږي، نو يك لخته تفصيل دي نه پرېږي يعني چي حل د مقام پر موقوفه وي كما فی نحن فيه.

قال" و اذا وصف الطلاق بضرب من الزيادة كان بائنا مثل انت طالق بائن او انت طالق اشد الطلاق او فحش الطلاق او طلاق الشيطان و البدعة" معطوف دي پر شيطان يعني طلاق البدعت، او طلاق البدعت تفسير دي د طلاق الشيطان كما يفهم من الهدايه، چي دى وايي چي سنت خو طلاق رجعى دي نو بدعت طلاق الشيطان دي، او په هدايه كي يې داهم زياته كړې ده چي، او اخبث الطلاق او اسوء الطلاق" او كا لجبل او ملاء البيت"

د عبارت ترجمه:- كه موصوفه كړه سو يعني د مېړه د خوا اطلاق په يو قسم زياتوب سره نو طلاق بائن دي يعني يو طلاق دي لكن بائن، ولي چي زياتوب د طلاق ګاهي په بائن توب سره وي چي تر رجعي زيات دي، او ګاهي په عدد سره وي لكه درې طلاقه نو بائن خو متيقن دي چي په درې طلاقه كي هم بينونت سته، فاخذنا بالمتيقن وهو الواحد البائن" او داهم قول د امام اعظم رحمه الله دى په دې ټولو الفاظو كي، او امام ابو يوسف رحمه الله په بعض الفاظو كي څندي مخالف دي، كما فى شروح الكنز وغيرها.

قال القدورى رحمه الله " كمثل ان يقول انت طالق بائن" په مثال د دې چي مېړه ووايې ته طلاق بائنه يې نو د بائن لفظ يې زيات كړي چي پر زيادت دلالت كوي، كما لايخفى.

او انت طالق اشد الطلاق" او يا ته طلاقه يې په سخت طلاق سره.

او طلاق الشيطان والبدعة" او يا طلاقه يې په طلاق د شيطان او بدعت سره.

اوكالجبل او ملاء البيت" يا طلاقه يې د غره په شان طلاق سره، او يا په دومره طلاق طلاقه يې چې خونه په ډکېږي،امام ابو يوسف رحمه الله وايې چې كه مېره داسي ورته وويل، انت طالق كحبة الخرذل" هغه بائن طلاق نه دي بلكه رجعي دي، امام اعظم رحمه الله وايې چې كه د ده طلاق رجعي مراد واي نو تشبيه ته څه ضرورت وو هغه خو په طلاق سره هم حاصليږي.

**سوال**:- په دې تشبيه كي خو دلالت پر زيادت نسته؟

**ځواب**:- زيادت سته په اعتبار د كيف څونده دي.

قال" واذا اضافت الطلاق الى جملتها او الى ما يعبر به عن الجملة وقع الطلاق" او كه نسبت وكړي مېره د طلاق وټولي ښځي ته او يا وداسي جزء ته چې په هغه لفظ ګاهي تعبير د ټولي ښځي څخه كيداي سواى، نو طلاق د ښځي يقيني دي.

مثل ان يقول انت طالق" ولي چي تا د خطاب عبارت د ټوله مخاطب څخه دي.

او رقبتك طالق" ولي لفظ د رقبې د انسان څخه تعبير كيداي سي، قال الله تعالى فتحرير رقبة" د رقبې څخه مراد ټوله مريي دي.

او عنقك طالق" ولي چي لفظ د عنق هم د ټوله شخص څخه عبارت كيداي سي، قال الله تعالى قطلت اعناقهم" يعني ټوله دوي.

او روحك طالق" وفى المحاورة العربية هلك روح فلان اى نفسه.

او بدنك او جسدك طالق" ولي چي بدن او جسد د ټوله شخصه څخه تعبير كيداي سي وهو ظاهر.

او فـرجك طـالق" ولـي چـي فرج هم د ټوله شخص څخه تعبير كيداي سي، كما ورد في الحديث النبوى لعن الله الفروج على السروج" نو مراد د فروج څخه ټوله ښځه ده يوازي فرج يې نه دي.

او وجهـك طـالق" ولـي پـه لفظ د وجه د ټوله شخصيت څخه تعبير راغلي دي، په عربوكي وايې فلان وجه العرب" او په هدايه كي لفظ د دم هم پر زيـات كړي دي، كما يقول دمك طالق، ولي په لفظ د دم هم تعبير د ذات څخـه روا دي، كمـا يقـال فـلان دمـه هـدر يعني د فلاني وينه لغوه ده، وكذالك لفظ د نفس نحو نفسك طالق وهو ظاهر.

قـال القـدورى" وكذالـک ان طلـق جـزء شـائعا مـنهـا مـثـل ان يقـول نصـفک او ثلثک طـالق" او داغه رنګه ښځه طلاقه كېږي كه يې مېړه نسبت ددې و جزء شـائع تـه وكړي، يعنـي هغـه جزء ته چي د دې په بـدن كـي هـر طرفـتـه ويـل كيداى سي لكه چي مېړه ووايې چي ستا نيمى او يـا سـتـا دريمـه حصـه طلاقه ده، ولي چي نيمى يا ثالث د ماينې طلاق سي هغـه حـرام سـو پـه صـريح طـلاق نـو ټولـه ښځـه حـرامـه سـوه ولـي چي حرمت د ماينې تجزيه نه قبلوي.

قـال الـدورى" وان قـال يـدک طـالق او رجلـک طـالق لـم يقـع الطـلاق" او مېړه كـه ومايـنـې تـه وويل چي ستـا لاس طلاق دي او يا ستا پښـه طلاقـه ده، نـو نـه واقـع كـيږي طلاق ولـي چـي پـه لاس يا پښه سره د ټوله څخه تعبير د كل نه كيږي او نه دا دوه جزء شائع دي، او زفر رحمه الله او نـور ائمـه ثلاثـه رحمهم الله وايې چي طلاق واقـع كيږي ولي چي پر لاس د ماينې او په پښه د ماينې نفع اخستـل كيږي په سبب د نكـاح، رمز، در.

**سوال**:- په لفظ د يد خو تعبير د كل څخه كيداى سي، قال الله تعالى تبت يدا ابى لهب" يعني نفس ابو لهب، وقال ايضا، لاتلقوا بايديكم الى التهلكة اى بانفسكم على ماذكره المفسرون؟

**جواب**:- مصنف رحمه الله د مجمع الانهر وايي چي نفس استعمال په ذات كي د طلاق په باره كي كافي نه دي بلكه د طلاق په وقوع كي دا شرط دي چي هغه استعمال به هم شائع وي، او استعمال د يد په كل كي نادر دي نو ځكه طلاق نه په واقع كيږي.

**درويش وايي**:- چي د اول ايت په جواب كي داسي هم ويل كيداى سي چي په يوه حديث طويل كي راغلي دي، چي آنحضرتﷺ چي د قريش قبائل د صفا پر غره سره راجمع كړه او كلمه توحيد يې پر عرض كړه نو ابو لهب په دواړو لاسو كي شګي را اخستي وې او عليه الصلوة والسلام يې په ووشتي او داسي يې وويله، تبا لك سائر اليوم آلهذا جمعتنا فنزلت هذه السورة فعلى يدا ليس لفظ يدا تعبيرا عن نفس ابى لهب.

قال القدورى رحمه الله " ولو طلقها نصف تطليقة او ثلث تطليقة كانت تطليقة واحدة" او كه سړي مانيه طلاقه كړه په نيم طلاق او يا په دريمه د طلاق، درويش وهكذا په څلورمه په پنځمه په شپږمه د طلاق الى غير النهايه" نو يو طلاق يعني رجعي په واقع كيږي ولي چي طلاق خو تقسيم او تجزيه نه قبلوي، لانه معنى من المعانى، او كلام د عاقل حتى الامكان بايد سړي لغوه ونه بولي، نو ادنى طلاق چي يو رجعي طلاق دي بايد واقعه سي.

قال" وطلاق المكره" پر صيغه د اسم مفعول" والسكران واقع"

او طلاق د هغه چاچي بل په زور سره د ده تر خولې لفظ د طلاق وباسي، او داغه رنګه طلاق د نشه سړي په خمر وغيره سره واقع دي.

**درويش وايي**:- د مکره طلاق چي واقع کيږي په دې سبب چي د ده خو عقل پر ځاى دي ليوني نه دي، او په لفظ د انت طالق هم پوهيږي بيده نه دي او انت طالق يې په اختيار او اراده سره ووايې ولي مکره په صيغه د اسم فاعل ده ته پېښ رو وکړي چي يا به ماينه طلاقه وې او يا دي زه لاس در پرې کوم مثلا او يادي وژنم نو ده ښه فکر وکړي چي ماينه خو بله پيدا کيږي لاس او ژوند خو نه پيدا کږي، نو د ماينې طلاق ته يې ترجيح ورکړه، البته په طلاق د ماينې راضي نه وو نو په دې کي اراده او اختيار د طلاق موجود دي رضا نه ده موجوده او طلاق د اختيار او ارادې سره کار لري، واما وقع طلاق السکران د هغه سبب دادي چي سکران په عين وقت کي د سکر مکلف په لمونځو او روژو دي او ټوله اوامر او منهيات وده ته متوجه دي حتى چي د هغو لمونځو چي ده په حال کي د سکر نه دي کړي قضا يې پر لازمه ده چي پر سد سي او داغسي روژې هم نو د دې څخه دا معلومه سوه چي شرعي شريفي دى په ځاى کي د سليم العقل نازل کړې دي، تشديدا کلية فى استعماله المسکر.

**فائده مهمه**:- فقهاء رحمة الله عليه کما فى الدر المختار د پاره د حق د زوجه تفسير د سکران په مذهب د امام اعظم رحمة الله عليه کړي دي چي سکران په باب کي د طلاق هغه سړي دي چي د نشې د سببه آسمان، مځکه، نر او ښځه نه سره پېژني وهو المعتمد، در. او په باب د وجوب د حد يې زجراله مذهب د يارانو رحمهم الله مختار کړي چي سکران هغه سړي دي چي په ډېرو

خبرو ك چتياتي او بېهوده خبري كوي، او په باره كي د اودس د ماتېدو يې تفسير د سكران داسي كړي دي چي په تلو راتلو كي خلل وي، كذا فى الحاشيه الطحاوى رحمة الله عليه د نشې اسباب، په دې زمانه كي، هيروئن" چرس، د امو بنګو اوبه چنبل، او تارياق، حتى كه نبيذ التمر يا زبيب حد ته د نشې ورسيږي هم يې مسكر بولي، قال فى الدر المختار وبه يفتى.

قال المصنف رحمة الله عليه " ويقع الطلاق اذا قال نويت به الطلاق" او واقع كيږي طلاق كه سكران وويله چي زما نيت په دغه سره طلاق وو.

**پوښته**:- چي دا عبارت د مصنف رحمة الله عليه معركة الآراء د شارحينو رحمة الله عليه ګرځېدلي دي حتى چي بعض احناف رحمة الله عليه وايې چي دا عبارت سهوه د كاتب ده، دوي وايې چي زمونږ د عامو احنافو رحمة الله عليه مذهب دادي چي طلاق د سكران بېله نيته واقع كيږي زجرا ، او بعض شارحان وايې چي مصنف رحمة الله عليه د امام كرخي رحمة الله عليه او امام طحاوي رحمة الله عليه مذهب مختار كړي دي چي هغه وايې چي نفس سكر په طلاق كي تاثير نه لري نوكه سكران چي په هوش كي راغلي او دا يې وويل چي زما اراده د طلاق وه نو طلاق واقع كيږي، او دا هم مذهب د يارانو دي په نېز د دغو دوو امامانو رحمة الله عليه فتفكر وخذ ما صفا ودع ماكدر.

قال" ويقع طلاق الاخرس بالاشارة" او واقع كيږي د ګونګي طلاق په اشاره سره يعني چي خلګ په دې پوه سي چي د ده مراد طلاق دي ولې چي اخرس په اشاراتو سره بيعه او شراء كوي نو د ده اشاره لكه د روغو خلګو عبارت ده نو طلاق په واقع كيږي، نو كه اخرسه يوه ګوته اشاره د طلاق وكړه واحد رجعي طلاق واقع كيږي او كه يې په درو ګتو

اشاره وکړه ثلاثا طلاق ګرځي او د دوو ګوتو اشاره چي دوو طلاقو ته يې وکړه نه ده صحيح بلکه واحد رجعي طلاق واقع کيږي، کما في الشخص الناطق على ما مر من قبل فتذكر.

قال القدوري رحمه الله " واذا اضاف الطلاق الى النكاح وقع عقيب النكاح مثل ان يقول ان تزوجتک فانت طالق او قال كل امرئة اتزوجها فهي طالق" او که چيري نسبت وکړي يو سړي د طلاق ونکاح ته واقع کيږي هغه طلاق وروسته تر نکاح لکه چي يو سړي ويوې معينې ښځې ته وايې که چيري ما ته په نکاح کړي، نو ته پر ما طلاقه يې، او يا داسي ووايې چي هره ښځه چي زه يې په مستقبل کي په نکاح کړم هغه پر ما طلاقه ده.

**درويش وايي**:- چي فرق د دغو دوو مثالو دادي چي په اول مثال کي هغه معينه ښځه پسله نکاح پر ده طلاقه ده، او په دوهم مثال کي هره ښځه چي په مستقبل کي دي په نکاح کړي هغه پر ده طلاقه ده.

**فائده**:- دا مذهب د احنافو رحمه الله دي، او په صحابه رضي الله عنهم وو کي قول د امير المؤمنين عمر رضي الله عنه دي، اوداغه رنګه قول د عبدالله بن مسعود رضي الله عنه دي. او امام شافعي رحمه الله وايي چي داسي نسبت نه دي روا او دا لغوه خبره ده، والدلائل والجوابات في الكتب المبسوطة لا يليق ايراد ها للمبتدين

قال" واذا اضافة الى الشرط وقع عقيب الشرط مثل ان يقول لامرئته ان دخلت الدار فانت طالق" او که نسبت وکړي سړي د طلاق ويوه شرط ته يعني که يې طلاق جزاء د يو شرط وګرځاوه نو دا

طلاق وروسته تر هغه شرط واقع کیږي ، لکه د ټولو جزاګانو او شرطو دغه حکم دي چي جزاء به تر شرط وروسته او متصل په هغه پوري به واقع کیږي، کما تقرر فی النحو.

قال" ولا یصح اضافة الطلاق الا ان یکون الحالف مالکا او یضیفه الی ملکه" او نه دي صحیح نسبت کول د طلاق یعني و یوه شرط ته مګر هغه وخت صحیح ده چي دا ویونکي چي حالف یې بولي مالکا د ښځي یعني بالفعل دي او یابه یې نسبت کوي وملکه ته خپل بان یقول ان ملکتك فانت طالق، یا ان تزوجتك فانت طالق. کمامر.

قال الدوری رحمة الله علیه " فان قال لاجنبیة ان دخلت الدار فانت طالق ثم تزوجها فدخلت الدار لم تطلق" یعني بناءً علی الاصل المذکور ، که یو سړي وویله بېګانه ښځي ته چي ماینه یې نه وو که ته سراي ته ورغلې ته پر ما طلاقه یې وروسته یې هغه ښځه په نکاح کړه او هغه ښځه سراي ته ورغله نو طلاق نه پر واقع کیږي ولي چي دا تعلیق د طلاق د ملك په وخت کي نه دي، ولي خو اجنبیه وه او نه یې نسبت وملك ته سوي دي.

**درویش وایي:-** چي د تعلیق په باب کي یوه ډېره مهمه مسئله سته چي امامان د مساجدو یې حل ته حیران دي هغه داده چي که یو سړي وویل که ما د افلاني کار وکړي نو یې ماینه پر ما درې (۳) طلاقه نو طلاقه ده لیکن کلما یې نه ووایه وروسته وه هغه کار ته دا سړي مجبوره سو، نو امامانو ته که دا مسئله هغه سړي پېش کړي هغه ورته ووایې چي که دي هغه کار وکړي ماینه دي په ثلاثا درباندي طلاقه سوه نو دا

به یو وار عدت تېروي ستا د طلاق څخه، نو بیا که ستا زړه غوښتله چې بېرته یې زه ماینه کړم نو دا به بل مېړه کوي او هغه به هم خوا مخوا وطی ورسره کوي او ولور به ورکوي او بیا به یې هغه مېړه طلاقه وي او بیا د هغه وروسته به بله عده تېروي نو بیا وتاته روا کېږي بله لار د حل نسته، او ستا هم ودې بل مېړه کولو او د هغه غولو ته د غیرت د لارې زړه نه غوښتي، نو د حل لاره داده که څه هم تکلیف پکښې دي لیکن د بې غیرتیا څخه خلاصه ده، نو ته داسې وکړه چې یو وار هغه کار مه کوه وه چې د مایني طلاق ثلاثه دې پوري مربوط کړي دي، بلکه مایني ته یو طلاق رجعي ورکړه او بیا د اسبابو څخه د رجوع ځان ساته، یعني مچه مه ځندي اخله، په یوه ځاي کي مه ورسره بیدېږه، او لمس بالشهوة یې هم مه که، او حاصل دا چي لکه پردۍ ښځه داسې ورته ګوره څو چي پردې ښځه درې حیضه تېرسي، که حیض ورتلي که نه درې میاشتي به پردې تېرېږي، او که حامله وه خو لنګېږي، نو په دغه ډول دا ښځه ستا څخه بالکل بېګانه سوه.ولي چي د طلاق رجعي عدت یې تېر کي، وروسته ته هغه کار وکړه نو پر هغه ښځه چي ستا په خوا ماینه وه ستا د خوا درې طلاقه نه پر واقع کیږي ولي خو دا بېګانه ښځه ده وروسته، نوې نکاح په حضور د شاهدانو په یوه اندازه ولور ورسره وکړه نو ستا بیرته ماینه سوه، نو تر بې غیرتیا که څه هم دا کار وړد دي یعني درې حیضه انتظار غواړي یا درې مایشتي لیکن زړه یې ښه مني او دهغه حدیث د لعنته هم سرې په خلاصیږي چي رسول کریم ﷺ فرمائلي دي. «لعن المعلل والمعلل له» درویش باګناه محمد عبید الله ایوبي کندهاري.

قال" و الفاظ الشرط ان و اذا و اذاما وكل و كلما و متٰى ومتٰى ما" او الفاظ د شرط، ان دي، او اذا دي، او اذا ما دي، كل دي، كلما دي، متٰى دي، او متٰى ما دي، په بنايه كي وايې چي مصنف رحمة الله عليه حروف الشرط نه وويل بلكه الفاظ شرط يې وويل، ولي حرف فقط ان دي، او دا نور ټوله اسماء دي د شرط په معنا راځي، تفصيل ددې الفاظو په مجمع الانهر كي داسي بيان كړي دي، چي ابتداء يې مصنف په ان سره وكړه ولي چي دي فقط حرف شرط دي يعني معنا د وقت نسته پكښي او دا نور د ملحقاتو څخه د ان دي نو اذا ګاهي په قرينه د شرط په معنا د شرط راځي او ګاهي صرف ظرف زمان په معنا د وقت دي، نو كه په معنا د شرط وو نو جزاء هم غواړي "نحو اذا كانت الشمس طالعه فالنهار موجود" او كه په معنا د وقت وو نو جزاء نه غواړي نحو "اتيك اذا طلعت الشمس" او متٰي د پاره د وقت مبهم دي نحو "متٰى القتال" او د مجازات د پاره هم استعماليږي لكن سره د مراعات د معنا وقت نحو "متٰى تذهب اذهب" وتفصيل البواقى فى الجوهره.

قال القدورى" ففى كل هذه الالفاظ ان وجد الشرط انحلت اليمين ووقع الطلاق" نو په دې ټولو الفاظو كي چي شرط پيداسي خلاص سو يمين يعنې تعليق د طلاق مثلا يو سړي وويل ماينې ته ان دخلت الدار فانت طالق، نو ښځه دار ته ورغله نو يو طلاق خو واقع سو لكن تعليق چي په فقه كي يمين ورته وايې خلاص سو، يعني كه ښځه بل وار دار ته ورسي بل طلاق نه پر واقع كيږي او كه مېړه داسي ماينې ته وويل " كلما دخلت الدار فانت طالق، نو هغه هر وار چي سراي ته

ورسي طلاق پر واقع کېږي ځو چي درې طلاقه پوره کيږي او که هغه ښځه چي درې طلاقه پر واقع سوه پس له عدت څخه يې بل مېړه وکړي او هغه هم وطی ورسره وکړې او بيا يې طلاقه کړه پس له عدت تېرېدلو څخه اول مېړه په نکاح کړه او دا بيا سراي ته ورغله هيڅ شئ نه واقع کيږي ولي چي تطليقات او تعليقات ديوې نکاح پر هغي نکاح محصور دي بلي نکاح ته تجاوز نه کوي، وهذا معنا قول المصنف رحمة الله عليه.

قال" الا فی کلما فان الطلاق يتکرر بتکرر الشرط حتی يقع ثلث تطليقات فان تزوجها بعد ذالك وتکرر الشرط لم يقع شیٔ"

**درويش وايي**:- چي لفظي ترجمه د دغه عبارت ظاهره ده، پس له بيان سابق څخه او پاته نور الفاظ بېله کلما څخه چونکه هغه د تکرار مقتضی نه وه په لغت عربی کي نو په يوه وار وجود د شرط طلاق واقع سو او شرط پاي ته ورسېدي.

**پښوه سه**:- چي په پښتو کي سړي ماينې ته ووايې چي هر پلا چي ته سراي ته ورغلې پر ما طلاقه يې، دا مثال د کلما دي او که يې داسي ورته وويل که ته سراي ته ورغلې پر ما طلاقه يې دا مثال د هغو نورو الفاظو دي، جوهره، درويش.

قال المصنف رحمة الله عليه" وزوال الملك بعد اليمين لا يبطلها فان وجد الشرط فی ملك انتحلت اليمين ووقع الطلاق وان وجد فی غير الملك انتحلت اليمين ولم يقع شیٔ" او زائلېدل د ملك نکاح پسله يمين او تعليق څخه يمين نه باطلوي نو که شرط موجود سو

په ملك كي نو يمين خلاص سو او طلاق واقع سو، او كه شرط په غير ملك كي پيدا سو نو يمين خو خلاص سو په وجود د شرط لكن شى نه واقع كيږي، ولي چي ښځه په دغه ږخت كي وجود د شرط محل د طلاق نه ده ولي چي د ده ماينه نه ده،

صورت د مسئلې دادي، چي سړي ماينې ته وويل كه ته سراي ته ورغلې پر ما طلاقه يې نو بيا ده يو طلاق وركړي او ښځي عده تېره كړه نو ملك خو زائل سو ليكن تعليق باقي دي، ولي شرط چي دخول دار دي هنوز نه دي پيداسوي نو جزاء چي طلاق دي هم پاته دي په بقا د يمين سره، نو كه دې سړي بيرته هغه ښځه په نكاح كړه او شرط پيدا سو په ملك كي يمين خومنحل سو مګر طلاق واقع سو لمحليه المرئة للطلاق، او شرط چي دخول الدار دي په هغه وخت كي پيدا سو چي د سړي ملك پر ښځه نه وو نو يمين خو منحل سو لوجود الشرط او طلاق نه واقع كيږي ولي چي ښځه په دغه وخت كي محل د طلاق نه ده.

**فائده**:- دا مسئله پر هغه تقدير بناء ده چي زوال د ملك په يوه يا دوه طلاق سره سوي وي، او كه په درې طلاقه سوي وو بيا تعليق باطل دي كما مر سابقا، جوهره.

**قال" اذا اختلفا فى وجود الشرط فالقول قول الزوج فيه الا ان تقيم المرئة البينة"** او كه اختلاف راغلي په مابين كي د مېړه او ماينې په وجود كي د شرط يعني ماينې وويل چي شرط پيدا سوي دي نوزه طلاقه يم، او مېړه وويل چي شرط نه دي پيدا سوي نو ته طلاقه نه يې پس قول قول د مېړه دي په دې باره كي، مګر كه ښځي شاهدان تېر كړه پر وجود د شرط، دا مسئله پر دې خبره بناء ده چي نر مدعي د اصل

دي چي نكاح ده لكه پخوا، او ښځه مدعي د زوال په وجود د شرط چي د هغه علم يوازي په دې پوري خاص هم نه دي لكه د خول د دار نو ددې قول بېله شاهدانو نه قبلېږي كما تقرر فى الفقه من ان القول قول من يدعى الاصل فى الدعاء الاان يقيم الجانب الآخر البينة على خلافه.

قال القدوری رحمة الله عليه " فان كان الشرط لا يعلم الا من جهتها" لكه حيض " فالقول قولها فى حق نفسها" او كه داسي شرط وو چي وجود دهغه نه معلوميدي مګر نه د جهت د ښځي نو پس قول په وجود كي د شرط قول ددې دي، ولي چي قانون كلي دي چي هر څوك امين دي په باره كي د خپل ځان چي بل چا ته نه معلومېږي نو ښځه په باره كي د هغه شرط چي علم د دې خاص په دې پوري وي آمينه ده، تا چي مېړه يې په حرام كي واقع نه سي چي وطى دي سره د زوال د ملك، بر، در.

قال" مثل ان يقول" اى الزوج" فانت طالق ان حضت فقالت قد حضت طلقت" مثال يې دادي چي مېړه ووائي يعني ماينې ته چي كه تاته حيض درغلي ته پر ما طلاقه يې نو دې ورته وويل چي ماته حيض راغلي نو طلاقه سوه.

**درويش وايي:-** چي فائده د هغه قول د مصنف رحمة الله عليه فى حق نفسها مصنف په دې عبارت كي ښكاره كړه.

وان قال لها اذا حضت فانت طالق وفلانة فقالت قد حضت طلقت هى ولم تطلق فلانة" او كه مېړه داسي وويله چي كه تاته حيض درغلي نو ته طلاقه يې او زما فلانۍ ماينه، وروسته دې وويله چي ما ته خو حيض راغلي نو دا خو طلاقه سوله، لكونها امينة فى

حقها كما مر في الاصل الكلي، او نه طلاقيږي فلانۍ ولي دا خو د فلانۍ په باره كي صرف شاهده ده، او د يوې ښځي شاهدي ببله بعض خاصو ځايو بل ځاي نه قبليږي بلكه سره د هغه دا متهمه ده په حق كي د ښي، مجمع الانهر مع الزياده.

واذا قال لها اذا حضت فانت طالق فرئت الدم لم يقع الطلاق حتى يستمر الدم ثلثة ايام فاذا تمت ثلثة ايام حكمنا بوقوع الطلاق من حين حاضت" او كه مېړه وويله وه ماينې ته چي هر كله تاته حيض درسي نو پر ما طلاقه يې، نو ماينې يېويني وليدلي نو طلاق نه واقع كېږي پردې ولي طلاق خو مېړه معلق ګرځولي وو په حيض سره، او اقل مدت د حيض خو درې (۳) ورځي دي نو د مخه تر درې ورځي د پوره كيدو احتمال لري چي دا وينه دي استحاض (مرض) وي نو ځكه تر هغه وخته پوري طلاق نه واقع كېږي چي ويني درې ورځي استمرار او هميشه توب كوي، نو چي درې ورځي د وينو پوره سي نو موږ حكم په وقوع د طلاق كوو ولي چي شرط چي حيض وو موجود سو نو جزاء چي طلاق دي هم واقع كيږي، او طلاق هم د هغه وخت څخه واقع دي چي دې وينه ليدلې وي ولي پسله درو ورځو دا معلومه سوله چي ويني ابتداء هم د حيض وې، هذا حاصل ما في الهدايه.

واذا قال لها اذا حضت حيضة فانت طالق لم تطلق حتى تطهر من حيضها" او كه مېړه ماينې ته وويله چي تاته حيض درسي يو وار نو ته پر ما طلاقه يې، نو تر هغو پوري نه طلاقيږي چي دا د حيض څخه پاكه نسي.

**پوښتنه**:- چې د صرفو په کتابو کې چې فعلت وزن د پاره د مرئة دي يعني د حيضة معنا داده چې يووار حيض، او يووار حيض هلته پوره کيږي چې ښځه پاکه سي بخلاف مسئلة السابقة يعني اذا حيضة آه، ولي هلته شرط د حيض وجودوو او وجود د حيض په ظهور د وينو دي ليکن د درو ورځو استمرار چې موږ هوري شرط کړي ددې لپاره چې معلومه سي چې هغه وينه چې ښکاره سوي وه د حيض وينه ده فافهم الفرق.

قال المصنف رحمة الله عليه " وطلاق الامة تطليقتان وعدتها حيضتان حراً كان زوجها او عبداً وطلاق الحرة ثلاثة حراً كان زوجها او عبداً" او طلاق د مينځې دوه طلاق دي، يعني په دوو طلاقو مغلظه طلاقيږي چې بيرته نکاح يې وبل مېړه ته ضرورت لري، او عدت ددې دوه حيضه دي يعني که حيض ورتلي، او که چيري حيض نه ورتلي نو بيا دوي مياشتي دي په صحيح حديث کي راغلي دي " طلاق الامة ثنتان وعدتها حيضتان" نو که يې مېړه حُر وي او که مريي، او طلاق د حُري ښځې درې دي که يې مېړه حر وي که مريي وي، يعني په درې طلاقه دا مغلظه طلاقيږي، والسر فيه چې نعمت او فقمت د حُري ښځي او مينځي پر نيمائي دي نو پر دې بناء بايد طلاق د مينځې يو نيم واي او عدت يې هم يو نيم واي، ليکن چونکه طلاق او عدت تقسيم نه قبلوي نو ځکه موږ هر يو دوه کړه.

**سوال**:- اعتبار د طلاق ولي په ښځي پوري دي په ميړه پوري نه دي ؟

**جواب**:- چې ښځه حُره وي مېړه چې يې هر څوك وي ددې په حُريت د مېړه ملك پر دې تنگيږي، او که دا مينځه وي او مېړه يې حُر وي نو که اعتبار د مېړه وحريت ته ورکړل سي نو پر ملك د ميړه محکم کيږي،

ولي چي په دوه طلاقه دا دمېړه د ملك څخه نه وځي بلکه په درې طلاقه سره، او چي اعتبار ددې وحال ته سي مینځه ده نو په دوه طلاقه د ملك د مېړه وځي، وعلى هٰذا فقس العدة للحرة والامة،
نو که ښځه حره وي او مېړه يې هم حر وي نو په اعتبار کي د حال د نر او ښځي فرق نه راځي، او داغه رنګه فرق نه راځي چي مېړه عبد وي او ښځه هم مینځه وي، او که يې مېړه حُر وي او ښځه مینځه وي یابالعکس نو په اعتبار کي د حال د نر او ماينې په طلاق او عدت کي فرق راځي، نو زمونږ او د نورو امامانو رحمهم الله چي اعتبار حال ته د مېړه ورکوي په دوو اخيرو مسئلو کي اختلاف دي،فتامل حتى يكون ذوقياً لك، درويش خوشه چين از خرمن فقهاء رحمهم الله"

قال" واذا طلق الرجل امرئته قبل الدخول وقعن عليها"
او که طلاقه کړه سړي خپله ماينه د مخه تر جماعو په درې طلاقه يعني په يوه کلمه " مثل ان يقول انت طالق ثلاثا ، نو درې سره طلاقه پر واقع کيږي، يعني که بيا دي د نکاح اراده ورته وکړي زوج آخر غواړي وهذا مذهب الجمهور رحمهم الله او امام محمد رحمه الله وايي چي دغه حکم د عليه الصلوٰة والسلام څخه مروي دي او د علي رضي الله عنه او ابن عباس رضي الله عنه او د ابن مسعود رضي الله عنه څخه هم مروي دي، او عقلي دليل يې دادي چي اصلا پر ښځه چي واقع کيږي هغه خو مصدر دي د طالق او هغه مصدر موصوف دي په ثلاثا او قانون دي چي د صفت او موصوف وقت به يو وي، نو ګويا ده داسي ورته وويل چي انت طالق طلاقا ثلثا نو په دې سبب درې سره واقع کيږي او بعض فقهاء رحمهم الله وايي چي يو طلاق واقع کيږي ولي چي سړي وويل انت طالق " حساب ته نارسيده ماينه بائنه سوه، نو ښځه د عدد د

ذکر په وخت کي محل د طلاق نه ده، مجمع، درويش، وهدايه.

قال القدوري رحمه الله " وان فرق الطلاق بانت بالاولى ولم يقع الثانية والثالثة" او که طلاقونه سره جلا جلا کړي يعني داسي ووايي انت طالق" طالق" طالق، نو دا غير مدخول بها ښځه په اول طلاق سره بائنه سوه دوهم او دريم طلاق نه پر واقع کيږي لعدم المحل.

**درويش وايي**:- چي په پښتو کي د اولي مسئلې الفاظ دادي چي ته طلاقه يې په درې طلاقه، او د دوهمي مسئلې لفظ ته پر ما طلاقه يې طلاقه، طلاقه يې، درويش ددې د پاره په پښتو عبارت بيان کړي چي پښتانه خو په عربي جملو سره ماينې ته طلاق نه ورکوي او نه هم په پوهيږي.

قال المصنف رحمه الله " وان قال انت طالق واحدة وواحدة وقعت عليها واحدة" او که مېړه ماينې ته وويله چي ته طلاقه يې يو طلاق او يو طلاق، نو پر دې واقع سو يو طلاق ولي چي اول طلاق خو پر دې واقع سو چونکه دا غير مدخول بها ده نو د بل طلاق دا محل نه ده.

ولو قال لها انت طالق واحدة قبل واحدة وقعت واحدة" او که وويل مېړه ومايني ته چي ته طلاقه يې يو طلاق د مخه تر يو طلاق نو واقع کيږي يو طلاق ولي چي په،انت طالق واحدة، دا بائن سوه، او قبل واحدة لغو خبره ده.

قال" وان قال انت طالق واحدة مع واحدة او معها واحدة وقعت ثنتان" او که مېړه وويل ماينې ته چي ته طلاقه يې په يوه طلاق سره د يوه طلاقه، يا داسي چي د هغه سره بل طلاق هم سته نو دوه

طلاقه واقع کېږي ولي چي لفظ د مع که ضمېر ورسره وي او که نه وي د پاره د مقارنت دي نـو دواړه يـو ځـاى واقـع کېـږي، او غير مدخول بها د دوو طلاقو پر ځاى محل ده.

قـال المصـنف رحمة الله عليه " وان قـال لهـا انـت طـالق واحـدة قـبلها واحدة وقعت عليها اثنان" او که مېړه وويل وغير مدخول بها ماينې ته چي ته طلاقه يې يو طلاق چي تر هغه د مخه يو طلاق بل دي، نو واقع کېږي پردې دوه طلاقه دليل يې دادي چي واقع کونکي د طلاق پر ښځه دغه ملفوظ اولى دي وهو قوله انت آه" وروسته چي ده وويل چي د مخه تر هغه بـل طـلاق سته، او د مخه خو ده هيڅ طلاق نه دی ويلی نو حفظا لکلام العاقل من الالغاء، دواړه طلاقه يو ځاي واقع کيږي.

قـال" وان قـال انـت طـالق واحـدة بعـد واحـدة وقعـت علـيها ثنتـان" او که مېړه وويل وماينې ته چي ته طلاقه يې په يوه طلاق، سره د يوه طلاقـه، ياداسي چي د هغه سره بل طلاق هم سته نو دوه طلاقه واقع کيږي ولـي چي لفظ د مع که ضمير ورسره وي او که نه د پاره د مقارنت دي نو دواړه يـو ځـاي واقع کيږي او غير مدخول بها د دوو طلاقو پر يوه ځاي محل ده.

قـال المصـنف رحمة الله عليه " وان قال لهـا ان دخلت الدار فـانت طالق واحدة وواحـدة فدخلـت الـدار وقعـت علـيها واحدة عـند ابـى حنيفة رحمة الله عليه وقالا يقع ثنتـان" او که وويل مېړه وماينې ته که ته سراي ته ورغلې تـه طلاقـه يې يـو طـلاق او يـو طلاق، نو دا سراي ته ورغله نو واقع سو پر دې بـاندي يـو طـلاق په نېز د امام ابو حنيفه رحمة الله عليه، او ياران

وايي چي واقع سوه دوه طلاقه، والى مذهبهما ذهب الائمة الثلثة رحمهم الله،
ام ام اعظم رحمه الله وايي چي طلاق چي معلق په شرط پوري وي داسي دي
لكه في الحال طلاق په وقت كي د وجود د شرط او د وقوع د طلاق، او
منجز حالى خو هغه وو چي مېړه ويلي واي " انت طالق واحدة وواحدة "
وقد مر انه يقع عليها واحدة فكذا المعلق" او ياران رحمهم الله وايي چي
طلاق معلق بالشرط په نېز د وجود د شرط يو ځاي واقع كيږي بلا تقدم
او تاخر او د مخه تېره سوه چي غير مدخول بها صالح او محل ده د دوو
بلكه د دروو طلاقو چي پر يوه ځاي وي .

**فائده**:- امام كرخى رحمه الله وايي چي په طلاق معلق بالشرط كي فرق نه
سته په مابين د عطف بالواو او عطف بالفاء، لكن صحيح هغه قول دي
چي فقيه ابو الليث رحمه الله وايي چي كه عطف بالفاء وو نو يو طلاق واقع
كيږي ولي چي كلمه د فاء ترتيب غواړي نو په ترتيب كي خو غير مدخول
بها محل د دوهم طلاق نه ده، فتح.

قال القدورى رحمه الله " وان قال لها انت طالق بمكة فهى طالق
فى الحال فى كل البلاد وكذا لك ان قال لها انت طالق فى
الدار" او كه وويل مېړه ومايني ته چي طلاقه يې په مكه كي نو دا
طلاقه ده في الحال په ټولو ښارو كي، او داغه رنګه كه يې ورته وويل
چي ته طلاقه يې په سراي كي يعني دغه ښځه په داخل او خارج كي
دسراي طلاقه ده، ولي قانون كلي دي د شرعي شريفي چي طلاق
تخصص په مكان دون المكان پوري نه لري بلكه ښځه چي په يوه قريه
كي مثلا طلاقه سوه په ټوله نړۍ كي طلاقه ده، او كه مېړه داوويل چي
زما نيت دا وو چي ته داخله سي مكې ته، ياته داخله سي سراي ته نو بر

ماطلاقه يې، نو بينه و بينه تعالى خو دده تصديق کيږي چې محتمل دي کلام دده داغه هم ده، لکن قاضي دې تصديق نه کوي ولې چې دا نيت اراده د خلاف الظاهر ده، او وحذف ته فعل ضرورت لري يعني، اذا دخلت مكة او دخلت الدار فانت طالق فبارادة هذا الحذف نيته هذه خلاف ظاهر كلامه كذا فى الهدايه.

قال المصنف رحمة الله عليه" وان قال لها انت طالق اذا دخلت بمكة لم تطلق حتى تدخل مكة" او که يې ورته وويل چې که ته مکې ته داخله سې نو ته طلاقه يې، نو نه طلاقيږي ترهغو چې دا مکې ته داخله سوې نه وي، ولې چې دا طلاق خو معلق په شرط سره سو نو د مخه تر وجود د شرط نه واقع کيږي، كذا فى الجوهره.

قال القدوري رحمة الله عليه" وان قال لها انت طالق غداً وقع الطلاق عليها بطلوع الفجر الثانى" او که يې وويل ومايني ته چې ته طلاقه يې صبا نو طلاق پر دې واقع کيږي په نېز د راختلو د صبح صادق د صبا ورځي، دليل يې دادي چې د صبا ورځ ټوله د ده طلاق ظرف وګرځوله، نو د اوله څخه د صبا ورځي دا طلاقه ده، تاچي ټوله ورځ ظرف د طلاق ددې وګرځي، او که مېړه وويل چې زمانيت اخير جزء د صبا وو، صدق ديانةً، ولې چې ده په عام لفظ کي د غه اراده د تخصيص چې اخير جزء دي وکړه، والعام يحتمل التخصيص لكنه خلاف الظاهر فلا يصدق قضاءً، كذا فى الجوهره والهدايه والعيني والفتح.

قال القدوري رحمة الله عليه" وان قال لامرئته اختارى نفسک ينوى بذالک الطلاق" او که مېړه وويل ماينې ته چې ته مختاره کړه خپل

ځان او نيت يې د طلاق وو، نيت ته په دې ضرورت سته چې دغه د
عبراتو څخه د کنايې دي، او کنايه خو نيت ته ضرورت لري کما مر.
**درويش وايي**:- که حال د مېړه غضب وو پر مياينه او يا حال د مذاکره
د طلاق وو نو هغه قائم مقام د نيت کېداى سي، وان لم يقل انوى بذالك
الطلاق.

قال" او قال لها طلقي نفسك فلها ان تطلق نفسها" يعني په
دواړو صورتو کي، مادامت في مجلسها ذالك" که چېرې مېړه وويل
ماينې ته چې ته طلاق کړه خپل ځان، نو دې ته اختيار د طلاق سته تر
څو چې په داغه مجلس کي وي، ولې چې مخيره ښځې ته خيار مجلس
سته په اتفاق د صحابه وو ﷺ.

قال" فان قامت منه او اخذت في عمل آخر خرج الامر من
يدها" او که دا ولاړه سوه د هغه مجلس څخه، او يايې شروع وکړه په يو
بل کار، نو ووتي امر د طلاق ددې د لاس څخه يعني وروسته تر هغه دا
ځان نسي طلاقه ولاى ولې چې قيام د مجلس څخه يا شروع په بل عمل
دليل د اعراض دي.

**فائده**:- په بحر الرائق کي واى چې مراد د عمل څخه مطلق عمل نه
دي بلکه هغه عمل دي چې هغه دلالت کوي پر اعراض د ښځې د مېړه د
تخيير مثلا مېړه چې دې ته تخيير ورکړي دا داغسې ناسته وو، وروسته
دې په دغه مجلس کي د څرخ کار شروع کي، يا پخلي ته ولاړه سي يا
سر وغوړوي، او يا نور ورته کارونه يې شروع کړه، نو دا کارونه دليل د
اعراض ددې دي، او په دي کار سره ددې اختيار قطع سو، او که يې
اوبه وچښلې دا دليل د اعراض نه دي ولې دا به مخته تږې وه نو د پاره د

فکر وهلو د مېړه په خبره کي به فکر وهي،او يا چي مېړه دې ته اختيار ورکړي دې پوړني پر سر کي، داهم دليل د اعراض نه دي ولي چي ممکنه ده چي دا به دباندي وځي شاهدان به راغواړي چي د هغو په مخ کي ځان د مېړه څخه جلا کړي.

**پوه سه**:- چي مذکوره بيان د مصنف رحمه الله په هغه صورت کي دي چي د مېړه تخيير مطلق وي يعني وقت يې نه وي ورته ټاکلي، او که يې وقت ورته ټاکلي وو، يا يوه ورځ يا هفته يا مياشت مثلا نو د ښځي اختيار نه باطلېږي تر هغه وخته پوري چي هغه معين وقت باقي وي که څه هم د مجلس څخه ولاړه سي يا په عمل شروع وکړي، بحر، درويش.

قال" وان اختارت نفسها في قوله اختاری نفسک کانت واحدة بائنة ولايكون ثلثا وان نوی الزوج ذالک ولابد من ذكر النفس في كلامه او كلامها" او که ښځي مختاره کړي خپل ځان په داسي قول کي د مېړه، اختاری نفسك، نو طلاق بائن واقع کېږي يعني بېله نوي نکاح وده ته نه ده روا، او درې طلاقه نه ګرځي که څه هم د مېړه نيت د دروو طلاقو وي، او چاره نسته د ذکر څخه د نفس د لفظ يا د مېړه په کلام کي يا د ښځي په کلام کي.

**المقصد الاول** (۱) طلاق ولي بائن دي سبب يې دادي چي اختاری نفسك" د کناياتو څخه دي ولي دا احتمال هم لري چي ته د ځان د پاره نفع مختاره کړه، او يا يو قسم کالي مختاره کړه، او يا سراي د اوسېدو مختاره کړه، او داهم احتمال لري چي ته ځان مختاره کړه که زما دنکاح څخه ځان خلاصه وې او که زما سره پاتېږې، او د مخه تېره سوه چي

کنايه نيت غواړي، او د ځان اختيار په طلاق بائن کي دي په رجعي کي نه سته.

**المقصد الثاني** (۲) طلاق ولي سره د نيت د مېړه دړې نه واقع کېږي؟ وجه يې داده چي طلاق خو دلته اقتضاءً ثابت دي، او په اصول الفقه کي وايي چي مقتضی لره عموم نسته، او امام شافعي رحمه الله وايي چي په نيت د دروو دړې طلاقه واقع کېږي، او که يې هيڅ نيت نه وو بيا رجعي طلاق واقع کېږي، او امام مالك او امام احمد رحمه الله وايي چي بېله نيته او سره د نيته دړې طلاقه واقع کېږي، کذافی مجمع الانهر.

**المقصد الثالث** (۳) د نفس ذکر ولي غواړي؟ وجه يې داده چي لفظ د اختاري چي طلاق پېژندل سوی دي په اجماع د صحابه کرامو رضی الله عنهم او اجماع ددوي په لفظ مفسر کي راغلي يعني چي لفظ د اختاري په کښې وي او لفظ د نفس هم د يو طرف ښځه پکښې وي، کذا فی الحاشيه الطحطاوی، حتی که مېړه ماينې ته وويله، اختاري هغې وويل اخترتُ فهو باطل، کذا فی الهدايه.

قال" وان طلقت نفسها فی قوله طلقی نفسک فهی واحدة رجعية وان طلقت نفسها ثلاثا وقد اراد الزوج ذالک وقعن عليها" او که ښځي طلاق کي خپل ځان په دې قول کي د مېړه، طلقی نفسك" ته طلاق کړه خپل ځان نو يو رجعي طلاق پر واقع کېږي، او که دې طلاق کړي خپل ځان په دړې طلاقه او حال داوو چي د مېړه يې هم دړې طلاقه مراد وه نو دړې سره طلاقه پر واقع کېږي، د اولي مسئلې دليل او جواب دادي چي مېړه خو لفظ د صريح طلاق وو ايه او صريح طلاق چي بائن نه وي رجعي دي، جوهره. او د دوهمي مسئلې دليل

دادي چي د طلقي معنا خو داده افعلی فعل الطلاق" او طلاق مفرد لفظ دي نو که نيت د زوج نه وي نو پر واحد حقيقي چي يو رجعي طلاق دي حمل کېږي، او د مفرد حکمي چي کل الجنس دي يعني درې طلاقه هم احتمال لري، نو چي مېړه د دروو طلاقو نيت کړي وي او دا هم پر ځان درې طلاقه واقع کړي نو درې سره واقع دي، ولي چي دوه طلاقه ښځه پر ځان نه سي واقع کولای که څه مېړه يې نيت کړي وي، ولي دوه طلاقه نه فرد حقيقي دي او نه فرد حکمي دي، مګر که يې ماينه مينځه وه نو دوه طلاقه مفرد حکمي دي کمامر تفصيله.

**مسئله**:- که ښځي پر ځان درې طلاقه واقع کړه، او مېړه وويل چي زما يو طلاق رجعي مراد وو، نو په نېز د امام اعظم رحمه الله هيڅ طلاق نه پر واقع کېږي لاختلاف نيت الزوج وفعل الزوجة، او په نېز د يارانو يو طلاق واقع کېږي. اعتباراً لنية الزوج، جوهره درويش، وعيني.

قال" وان قال لها طلقی متی شئت فلها ان تطلق نفسها فی المجلس وبعده" او که مېړه وويل ومايني ته چي ته طلاق کړه خپل ځان هر وخت چي دي خوښه وي، نو دا ځان طلاقه ولای سي په هغه مجلس کي او وروسته تر مجلس هم، دليل يې دادي چي لفظ د متی د پاره د عموم دي او قانون دي، کمامر فی علم النحو.

**پوهنه**:- چي يو وار ښځي مشيت د طلاق ظاهر کړي نو شرط پيدا سو، او جزاء چي طلاق دي هم واقع سو، نو د اينده د پاره مشيت د طلاق ددې د لاسه څخه ووتی، کما تقرر فی النحو ان لفظ لا تقتضی التکرار، ج، در،ع.

قال القدوري رحمه الله " واذا قال لرجل طلق امرئتی فله ان يطلقها في المجلس وبعده وان قال طلقها ان شئت فله ان يطلقها في المجلس خاصة" او كه چېري وويل مېړه د ښځي ويو سړي ته چي زما ماينه طلاقه كړه، نو هغه سړي ته دا اختيار سته چي كه يې په دغه مجلس كي طلاقه وي او كې وروسته، ولي داخو توكيل دي د مېړه دخوا او كُهمك غوښتل دهغه څخه، او توكيل خو پر مجلس منحصر نه دي، بخلاف قوله لزوجته طلقي نفسك" ولي هغه تمليك دي توكيل نه دي نو پر مجلس منحصر دي لكه ايجاب او قبول د بيعي.

**پوه سه**:- چي مېړه ته روا ده چي د مخه تر عمل دوكيل رجوع وكړي د هغه توكيل څخه، لان التوكيل لايلزم، هدايه، درويش،

او كه مېړه وبل سړي ته وويل چي زما ماينه طلاقه كړه، كه ستا خوښه وي نو وكيل يې صرف په دغه مجلس كي طلاقه ولاى سي نه وروسته، ولي چي مېړه تعلق وركړي طلاق ته د ماينې په خوښه پوري د هغه بل سړي، نو دا تمليك دي توكيل نه دي، او تمليك پر مجلس منحصر دي او په دغه مجلس كي مېړه رجوع هم نه سي كولاى مجمع الانهر.

قال" وان قال لها ان كنت تُحبني او تبغضني فانت طالق فقالت انا احبك او ابغضك وقع الطلاق وان كان في قلبها خلاف ما ظهرت" او كه يو سړي ماينې ته وويل كه ته زما سره محبت لري، او يا يې داسي ورته وويل چي كه ته زما سره بغض لري نو ته طلاقه يې ښځي په جواب كي ورته وويل چي زه ستا سره محبت لرم، او يا زه ستا سره بغض لرم نو طلاق واقع سو پر ښځه باندي.

دليل ددې مسئلې دادې چې اګرچه محبت او بغض خو صفت قلبي دي، لکن علم پر قلبي شي ممکن نه دي، نو سبب ظاهر د هغه چې اخبار دي په ځاى کې د عمل قلبي ودراوه، لکه خوب د سړي چې سبب ظاهر د حدث دي نو په حال کې د حدث دربږي او په خوب اودس ماتېږي.

**مسئله**:- که مېړه ماينې ته وويل چې که ته زما سره محبت قلبي لرې نو پر ما طلاقه يې ښځې په جواب کې ورته وويل چې زه ستا سره محبت قلبي لرم، او دايه هم درواغ ويله، په نېز د شيخينو رحمهما الله طلاق پر واقع کېږي لتعذر الاطلاع على حقيقه الحب القلبى فالاخبار عنه يقوم مقامه، او امام محمد رحمه الله وايي چې که دا کاذبه وه طلاق نه واقع کېږي، لعدم الشرط، ج،در.

قال القدوري رحمه الله "وان طلق الرجل امرئته فى مرض موته طلاقا بائنا فمات وهى فى العده ورثت منه وان مات بعد انقضاء عدتها فلا ميراث لها" او که طلاقه کړه يو سړي ماينه خپله په مرض موت کې (يعني د هغې ناجوړى پس مړسو) په طلاق بائن سره يعني که يې رجعي طلاق ورکړي بيا خو رجوع ورته کولاى سي، او مصنف رحمه الله وويله چې د هغه مرضه څخه مړ سو، ددې لپاره چې که دي د هغه مرضه چې ماينې ته يې طلاق بائن پکښې ورکړي وو جوړ سو، او وروسته مړ سو طلاق خو واقع سو او ښځې لره ميراث نسته که څه هم عدت يې نه وي تېر سوي، نو په اول صورت کې ماينه ميراث وړاى سي چې دا په عده کې وي، او که دى مړ سو پسله تېرېدو د عدې ددې نو ښځه بيا په ميراث کې حق نه لري.

**مسئله**:- كه ماينه غير مدخول بها وه بيا خو ميراث نه لري، ولې چې عدت نه لري.

**پوهه سه**:- چي ابن ابي ليلى رحمه الله او امام احمد رحمه الله او اسحاق رحمه الله او ابي عبيد رحمه الله وايي چي دغه ښځه پس له عدې څخه هم ميراث لري څو بل ميړه يې نه وي كړي، او د امام مالك رحمه الله او ليث څخه روايت دي چي دغه ښځه په ميراث كې د هغه ميړه چي دا يې په مرض موت كي طلاقه كړه حق د ميراث لري كه څه هم ډېر مړونه وكړي، او امام شافعي رحمه الله وايي چي په هيڅ وجه دغه ښځه مطلقه حق د ميراث نه لري، مجمع، منا، در.

قال القدوري رحمه الله " واذا قال لامرئته انت طالق انشاء الله تعالى متصلا لم يقع الطلاق عليها" او كه سړي وويله ماينې ته چي ته طلاقه يې كه د خداي جل جلاله اراده وه او متصل يې وويله، نو طلاق نه واقع كېږي پر دې.

**فائده سنيه**:- خصوصاً لعوام الناس، اولاً (١) ان الوفا بالعهد واجب، فان وعد احد مع احد بشيئ، لكن متصل يي ان شاءالله تعالي وويل بيا ايفاء پر ده نه ده واجبه.

ثانياً (٢) څوك چي قسم پر يو شي واخلي چي والله افعل كذا" نو كه هغه كار دى ونه كړى سو كفاره پر لازمه سوه، او كې متصل د قسمه سره ان شاء الله تعالي وويل نو دي حانث نه ګرځي كه هغه كار څه هم ونه كړي، وثالثاً (٣) فلان العوام پر هره خبره د ماينې طلاق اچوي، بعض صريح طلاق بعض په كنايه طلاق، او بعض درې واره طلاق، نو كه دوې

انشاء الله تعالى د طلاق په وخت كي بلكه په عمومي خبرو كي خپل عادت وګرځوي، نو هيڅ وخت به هيڅ طلاق پر دوي لازم نه سي.

**پوښتنه**:- چي په ايماني شيانو كي ان شاء الله مه وايې مثلاً چاورته وويل چي ته مسلمان يي؟ ته به ورته وويه چي هو زه مسلمان يم، داسي به نه ورته وايي چي مسلمان يم ان شاء الله تعالى، وهكذا چادرته وويل چي خداي ﷻ يو او بې شريكه دي، يا جنت حق دي، يا دوزخ حق دي، ورځ د قيامت حق ده وامثال ذالك، په دې ټولو كي به ان شاء الله نه وايي، بلكه صرف په هو به جواب وركوي.

قال القدوري رحمه الله " وان قال لها انت طالق ثلثا الا واحدة طلقت ثنتين وان قال ثلاثا الا ثنتين طلقت واحدة" او كه سړي ماينې ته ويل چي ته طلاقه يي په درې طلاقه مګر يو كم نو دوه طلاقه پر واقع كېږي، او كه يې داسي ورته وويل چي ته په درې طلاقه طلاقه يي مګر دوه كم نو يو طلاق پر واقع كېږي ولي چي د درو څخه يو كم كې دوه پاتېږي، او د درو څخه چي دوه كم كړې يو پاتېږي.

**فرعه**:- او كه يې داسي ورته وويل چي ته په درې طلاقه طلاقه يي په درې طلاقه كم نو درې سره طلاقه پر واقع كېږي، ولي د درو څخه خو درې نه كمېږي نو اثتثنا لغو ده، او هغه اول درې طلاقه واقع سوله، دروېش، ومنافع، وعيني.

قال القدوري رحمه الله " واذا ملك الزوج امرئته او شقصا منها" كه مالك سو مېړه د ماينې ټولي او يا ددې د يوې حصې لكه نصف ياثلث ياربع، يعني د سړي ماينه مينځه وه د يو چا او ده ته يي په نكاح

ورکړې وه، وروسته مېړه تول مينځه ماينه ياددې يوه حصه په بيع د
مالك څخه د مينځي رانيوله.

او ملکت المرئة زوجها او شقصا منه وقعت الفرقة بينهما"

او يا مالکه سوه ماينه د مېړه يا د يو حصې دده، صورت يې دادي
چي ښځه حره وه او مېړه يي د يو چا مريي وو نو دې دا خپل مېړه تول او
يا يوه حصه د مالك څخه دده رانيوله، نو واقع سو جدا والي په مابين
کي ددوي يعني نکاح يې فسخه سوه، په اول صورت کي چي مېړه د
ماينې مالك سي ددې سببه چي ملك نکاح پر حره باندي د جهت څخه د
بقاء د نسل انساني وو نو چي ملك يمين يعني مينځي توب پيدا سو نو
ضرورت د ملك نکاح نه سو پاته، نو ځکه ملك نکاح نه صحيح کېږي،
او په (٢) دوهم صورت کي چي ماينه د مېړه مالکه سي فلعدم جواز
المالکية والمملوکية فی شخص واحد، يعني ماينې چي مېړه رانيوي نو
دا مالکه سوه او مېړه يي مملوك سو، نو که ملك نکاح پاته سي نو خو
مېړه مالك د ماينې ګڼل کېږي، نو مېړه هم مملوك سو هم مالك، ددي
دوو صورتو فرق دادي چي مېړه په اول صورت کي که څه هم نکاح
فسخه سوه په ملك يمين ددغي ښځي وطي کولای سي، او په دوهم
صورت کي يي وطي نه دي ورته روا، ولي چي ملك يمين د ښځي د خوا
د مريي وطي نه روا کوي. قال القدوري رحمة الله عليه"

# باب الرجعة

دا باب دي په بيان کي د رجوع د مېړه وخپلي ماينې ته چي ده طلاقه
کړې وه.

**پوه سه**: چي چونکه رجوع خو پسله طلاقه کېدلای سي نو ځکه مصنف رحمه الله باب الرجعة تر طلاق وروسته راوړي، او لفظ د رجعت په کسره سره د را او په فتح د را دواړو راغلي دي، او ګاهي متعدي وي چي مصدر يي رجع ده، او ګاهي لازمي وي چي مصدر يي رجوع ده، دُر، دَر، او فتح يي افصح ده، ط.

او رجعت په لغت کي راګرځولو ته وايي "مجمع الانهر" در، او په شرع شريفه کي دوام ورکول دي ونکاح ته پر پخواني حال تر څو چي مطلقه ماينه په عدت کي وي، ولي چي وروسته تر عدې خو پخوا نی مېړه او اجنبي سړی سره برابر دي يعني چي نکاح جديد غواړي او دعدت په دوران کي خو د مېړه ملك قائم دي ولي چي عدت د اثارو څخه دملك ده.

**پوه سه**:- چي په رجوع کي د مېړه رضا د ښځي شرط نه ده، والاصل فيه قوله تعالی وبعولتهن احق برد هن.

**فائده**:- احق لفظ چي اسم تفضيل دي پر خپله معنا نه دي پاته فتدبر.

## قال المصنف رحمه الله " اذا طلق الرجل امرئته تطليقة رجعية او تطليقتين فله ان يراجعها رضيت المرئة بذالک ام لم ترض"

که سړي طلاقه کړه خپله ماينه په يوه رجعي طلاق او يا دوه طلاقه سره قيد بذالك، ولي که درې طلاقه ورکړي بيا دغه ماينه ود ته حرامه ده په حرمت غليظه سره نو رجوع نه ده ورته روا، بلکه په نکاح جديده سره به يې هم نه سي ماينه کولای تر څو چي بل مېړه وکړي، کمامر فی باب الطلاق، او طلاق يي مقيد کي په رجعي سره ولي که طلاق بائن وي لکه د کناياتو په صورت کي کما مر بيا رجوع مېړه نه سي ورته کولای ببله نوي نکاح په رضا د ښځي او ولور او شاهدانو، او په رجعي طلاق کي نه

نکاح جدیده غواړي او نه رضا د ښځي غواړي، لما مر من الآیة الکریمة حیث لم یذکر فیها رضی المرئة.

قال القدوري رحمة الله علیه "والرجعة ان یقول لها راجعتک او راجعت امرئتی" او رجعت دادي چي مېړه ماینې ته ووایي چي ما تاته رجوع کړې ده، یعني که دا حاضره وه، او یا مارجوع کړې وه خپلي ماینې ته که دا غائبه وه، په هدایه کي وایي چي دا رجوع ده په اتفاق د ائمه اربعه وو رحمة الله علیه.

قال المصنف رحمة الله علیه "او یطا ها او یقبلها او یلمسها بشهوة او ینظر الی فرجها بشهوة" او یا یې وطي ورسره وکړي، په مجمع الانهر کي وایي چي که وطي په دُبره کي د ښځي وي که په کوس کي وعلیه الفتوی، او یا مچه ځندي واخلي او یایي مسحه کړي په شهوت سره، او یایې کوس ته وګوري په شهوت سره.

**پوه سه**:- چي دا زموږ مذهب دي، او امام شافعي رحمة الله علیه وایي چي رجوع نه ده صحیح ببله قوله وتفصیل الدلائل فی الهدایه.

ویستحب ان یشهد علی الرجعة شاهدین وان لم یشهد صحت الرجعة" او مستحب ده مېړه ته چي پر رجعت دوه کسه شاهدان ولري یعني چي عادلان وي او یا یو نر دوې ښځي، دلیل د استحباب دادي چي په وروسته کي یعني د عدې تر تېرېدو وروسته ماینه منکره نه سي د رجوع ځخه او که یي شاهدان ونه درول هم رجعت صحیح دي، قال الله تعالی (وتشهدوا ذوی عدل منکم) او صورت د شاهدانو درولو دادي چي دی دي شاهدانو ته ووایي چي تاسي شاهدان اوسي چي ماخپلي

ماینې ته رجوع کړې ده.

**فائده**: امام شافعي رحمه الله او امام مالك رحمه الله وايي چي رجعت بېله شهادته نه دي صحيح، لما مر من الآية، ولي په هغه آيت امر دي په شاهدانو درولو او امر خو د پاره د وجوب وي، مونږ وايو چي په دې پارد کي نصوص مطلق دي يعني انتها د قيد نسته پکښي، قال الله تعالى فامسكوهن بمعروف" يعني تاسي وساتي مطلقاتي ښځي په شرعي طريقه يعني بېله قصده د اضراره رجوع ورته وکړي، وقال، وبعولتهن احق بردهن" نو د اطلاق څخه د دغو آيتو دا معلومه سوه چي په ايت مذکوره کي امر د پاره د استحباب دي، در، تبين.

قال" واذا انقضت العدة فقال الزوج قد كنت راجعتها في العدة فصدقته فهي رجعة وان كذبته فالقول قولها ولا يمين عليها عند ابى حنيفة رحمه الله" او که عدت تېر سو او مېړه وويل چي ما دې ته رجوع کړې وه په عدت کي په قول يا په فعل، او ماينې دده تصديق وکړي نو رجوع صحيح ده ولي په تصادق سره د نر او ښځي نکاح ثابتېږي، نو رجعت په طريقه اولی ثابتېږي، او که ښځي تکذيب د مېړه وکړي په رجعت کي نو قول ددې دي، قول په دعاوي کي قول د منکر دي چي مدعي شاهدان نه لري، او قسم ودې ته نسته په نېز د امام اعظم رحمه الله او ياران وايي رحمه الله چي پر دې قسم اخستل لازم دي، لقوله عليه الصلوة والسلام (البينة على المدعى واليمين على من انكر)

**درويش وايي**: چي دا يوه د هغو اتو مسئلو ده چي امام اعظم رحمه الله په هغو کي استحلاف د منکر نه وايي او ياران رحمه الله يې وايي.

قال القدوري رحمه الله " واذا قال الزوج قد رجعتک فقالت مجيبة له قد انقضت عدتی لم يصح الرجعة عند ابی حنيفة رحمه الله " دليل د دې مسئلې دادي چي رجعت خو بنا پر عدت دي او قول خو قول د ښځي دي په باره کي د عدې فکذا فيما يبتنی عليها.

**ترجمه**:- او كه مېړه وويله چي ما تاته اوس رجوع وكړه دي په جواب كي ورته وويل چي زما خو عده تېره سوله، نو رجوع د مېړه نه ده صحيح په نېز د امام اعظم رحمه الله او ياران وايي چي رجوع يې صحيح ده، ودليلها فی الهدايه، در، ، ع

قال" واذا قال زوج الامة بعد انقضاء عدتها قد كنت راجعتک فی العدة فصدقه المولی وكذبته الامة فالقول قولها عند ابی حنيفة رحمه الله " او كه وويله مېړه د ښځي وروسته تر تېرېدو د عدې دې، چي ما وتاته رجوع كړې وه چي ته په عده كي وې، نو بادار دده تصديق وكړي يعني چي تا رجوع ورته كړې وه، او خپله مينځي تكذيب وكړي يعني چي تا ماته رجوع نه ده كړي په عده كي، نو قول قول د مينځي دي په نېز د امام اعظم رحمه الله او ياران وايي چي قول د مولی معتبر دي، ولي چي بضع د مينځي خو مملوكه د مولی ده، او مولی اقرار وكړي په خپل خالص حق كي چي دا د مېړه دي يعني د هغه ماينه ده چي رجوع يې ورته كړې ده، او امام اعظم رحمه الله وايي چي رجوع بناء پر عدت ده او په عدې كي خو قول قول د ښځي معتبر دي، كما مر فكذا فيما يبتنی علی العدة وهو الرجعة " كذا فی الهدايه.

قال " واذا انقطع الدم من الحيضة الثالثة لعشرة ايام انقضت الرجعة وانقضت عدتها وان لم تغتسل وان انقطع الدم لاقل من عشرة ايام لم تنقطع الرجعة حتى تغتسل او يمضى عليها وقت صلوة اوتتيممت وتصلى عند ابى حنيفة وابى يوسف رحمهما الله تعالى عنهما وقال محمد رحمه الله اذا تيممت المرئة انقضت الرجعة وان لم تصلى" او كه ويني ددريم حيض د مطلقې ودرېدلې پر لس ورځي رجوع د مېړه قطعه سوه، او عده د ښځي تېره سوه کې څه هم غسل نه وي کړي، ولي حيض خو تر لس ورځي بالانسته نو صرف په انقطاع دم دا د حيض څخه ووتله او عده يې تېره سوه نو رجعت هم قطع سو، هدايه.

او كه يې وينه تر لس ورځي كمه ودرېدله نو رجعت نه دي قطعه ولي چي په كم كي تر لسو ورځو احتمال د بيا راګرځېدو د وينو سته تر هغو پوري چي دا يا غسل كوي او يا تېرېږي پر دې وخت د كامل لمانځه او يا دا تيمم كوي چي اوبه نه وي او لمونځ كوي، يعني په دغو دروو كارو سره دا حكم د طاهراتو اخلي نو ځكه عده يې تېره سوه، او رجعت قطه سو.

**مسئله**:- كه ښځه كتابيه وه نو دهغې عدت په مجرد انقطاع دم سره تېرېږي، كه پر اقله مده وي او كه پر اكثره مده، واي چي غسل وغېره پر دې لازم نه دي ولي چي دا مكلف په فروع سره ددين نه ده پر مذهب صحيح، او امام محمد رحمه الله وايي چي دې نفس تيمم وكړي رجعت قطع

سو که یې څه هم لمونځ نه وي کړي، ودلائل الطرفین فی الجوهره والهدایه والعینی ورد المحتار.

قال المصنف رحمه الله " وان اغتسلت ونسیت شیئًا من بدنها لم یصبه الماء فان كان عضواً كاملاً فما فوقه لم تنقطع الرجعة وان كان اقل من عضو انقطعت الرجعة" او که مطلقې ښځې په طلاق رجعي سره غسل وکړی او ددې هېر سوی وو یو ځاي د بدن څخه ددې چې هیڅ اوبه نه وې ورسېدلي، نو که غیر مغسول پوره اندام وو او یا بالاتر پوره اندام نو حق د رجوع د مېړه نه دي قطع سوي، ولي عادةً او غالباً پوره اندام د ښځي څخه نه هېرېږي، او پوره اندام که سړي پرېمنځي ژر وچېږي هم نه، نو مونږ احتیاطاً وایو چي حق درجوع نه دی قطع سوي، او دې ته تزوج د زوج آخر نه دي روا ولي غسل یې نه دي کړی، او که چېري هغه غیر مغسول تر یوه اندام کم وو نو حق د رجوع د مېړه قطع دي ولي کم تر اندام ژر وچېږي نو مونږ وایو چي دې به پرېولی وي او وچ سوي به وي، نو غسل ددې پوره ګڼړو نو قطع د حق د رجوع چي په غسل پوري اړه درلوده قطع سو، مجموع الانهر.

**فائده**: مصنف رحمه الله د هېري قید وواېه ولي که ښځي په قصد سره کم د عضوی پرېښوي حق درجعت نه قطع کېږي، ولي چي غسل یې تام نه دي.

قال المصنف رحمه الله " والمطلقة الرجعیة تتشوف وتتزین"

**پوه سه**:- چي تشوف خاص په مخ پوري دي، او تزین عام دي، یعني طلاق رجعي ولا ښځه دي سرخې وسپېدې کوي او شونډان دي سره کوي او تر دې د مخه دي مخ پاك په صابونه مینځي او سترګي دي توره وي

او ښه کالي دي اغوندي، سبب دادي چي رجعت د مېړه خو مستحب کار دي او تشویق او تزین باعث پر رجعت دي نو خود دې داکوي چي د مېړه شوق پر راسي او رجوع ورته وکړي.

قال المصنف رحمة الله عليه " ويستحب لزوجها ان لايدخل عليها حتى يستاذنها ويسمعها خفق نعليه" او مستحب دي مېړه لره يعني كه يې قصد د رجوع نه درلودي، چي نه ورځي كور ته يعني هلته چي مطلقه موجوده وي، حتى چي اجازه ونه غواړي يعني د مطلقې ښځه، چي ووايي چي درغلم او په دې واوري ترپي د چوټو په دروازه کي،او يادي غاړي تازه كړي داددې د پاره چي كه دي ناپامه ورننوزي شايد ددې به عورت او د اشتها ځاي لڅ وي، او دده سترګي پر ولګېږي، نو د ده به بې اختياره رجوع ورته وسي نو بيا بې بېرته طلاقه وي ، نو پر ښځه خو بيا عدت وږدېږي، رمز، در.

قال" والطلاق الرجعي لايحرم الوطى" او رجعي طلاق نه منع كوي وطي د مېړه د مطلقې سره او امام شافعي رحمة الله عليه وايي چي وطي يې نه دي ورته روا تر هغو پوري چي رجوع بالقول ورته ونه كي، ولي چي زوجيت خو باطل سو په سبب د طلاق قاطع، مونږ وايو چي زوجيت نه دي باطل تر څو چي دا په عده كي وي، ولي مېړه ته رجوع روا ده ودې ته بېله رضا ددې اجماعاً ، ولي رجعت خو حق د مېړه دي چي دى پر قول د طلاق پښېمانه سي، نو چي زوجيت قائم دي نو مېړه ته رجوع په قول او په عمل دواړو سره روا ده، هدايه، درويش.

قال المصنف رحمة الله عليه " وان كان طلاقا بائنا دون الثلث فله ان يتزوجها فى عدتها وبعد انقضاء عدتها " او كه چېري طلاق بائن وو او كم تر درې طلاقه وو نو مېړه ته روا ده چي دا ښځه په جديده نكاح په نكاح كړي، خوالكه په عدت كي وي ښځه او يا يې عدت تېرسوي وي ولي چي په بائن طلاق سره خو د مخه نكاح يك لخته ختم سوه ښځه بېګان ښځه سوه، د بېګانه ښځي سره هر وخت نكاح روا ده لكن د ښځي په رضاء په حضور د شاهدانو په نوي مهر " درويش .

قال المصنف رحمة الله عليه " وان كان الطلاق ثلثا فى الحرة او اثنتين فى الامة لم تحل له حتى تنكح زوجاً غيره نكاحاً صحيحاً ويد خل بها ثم يطلقها او يموت عنها " او كه چېري درې طلاقه وه په حره ښځه كي او يا دوه په مينځه كي، ولي د مينځي مغلظ طلاقه دوه دي لكه د حري دا چي درې دي كما مر، نو نه رواكېږي د مخه مېړه ته تر هغو چي دا به د بله مېړه سره نكاح كوي او نكاح به يې هم صحيح وي و قد مر الفرق بين الصحيح و الفاسد فى كتاب النكاح، او بيا به هغه مېړه هم دخول په وكوي يعني وطي به ورسره كوي حقيقةً او بيا به يې طلاقه وي او يا به دوهم مېړه مري او دا به پاتېږي، نو اول مېړه ته يي نكاح روا ده.

**فائده**:- د دوهم مېړه صرف دخول د ذكر شرط دي انزال نه دي شرط، ولي انزال خو مبالغه ده په وطي كي او په صحيح حديث كي داسي راغلي دي ، كما رواه مسلم وبخاري، چي رفاعه قريظي ﷺ خپله مابنه په درې طلاقه سره طلاقه كړه هغې وروسته تر عدې د عبد الرحمن بن

زبير بفتح الزا، سره نكاح وكړه وروسته هغه ښځه و عليه السلام ته راغله، فقالت كنت عند زماعة فطلقني وبت طلاقي فتزوجت مع عبد الرحمٰن بن الزبير ومامعه الا كهدبة ثوبي هذا" يعني چي ذكر يې نه لكې دي چي زماپه فرج يي ننه باسي، نو عليه السلام ورته وويل، اتريدين ان ترجع الى رفاعة قالت نعم فقال ﷺ لا حتٰى يزوق من عسيلتك وتذوق من عسيلته" په دې حديث كي دلالت پر دې دي چي انزال شرط نه دي، ولي چي عليه السلام نفس خوند څكل شرط كړه ددواړو طرفو څخه، او مړتيا چي انزال دي شرط يي نه كړه، او بل عليه السلام لفظ د تصغير چي عسيله دي ووايه يعني لږ عسل چي هغه په نفس دخول سره پيدا كيږي، او په بل صحيح حديث كي راغلي دي چي عليه الصلوٰة والسلام چي پر منبر ناست وو، چا پوښتنه څندي وكړه چي يو سړي ماينه په دروو طلاقو طلاقه كړه هغه ښځه بيا بل چا په نكاح كړه، او دواړه په يوه خونه سره ننوته او دروازه يي بنده كړه پر ده يې واچول او ښځي پوړني د سره څخه ليري كړي، او بيا يي طلاقه كړه آيا اول مېړه ته رواده؟ عليه الصلوة والسلام ورته وويل چي، لاتحل للاول حتى تزوق عسيلة الآخر.

**فائده**:- ددوهم مېړه وطي عامي دي كه په حيض كي وي او كه په نفاس كي، او كه په روژه كي د ورځي او كه په احرام كي وي، پسله طلاقه اول مېړه ته رواده كه څه هم دغه ټولي وطي حرامي دي كما لايخفى.

**فائده**:- په اشتراط كي د وطي ټوله ائمه سره متفق دي، يو سعيد بن المسيب رحمه الله مخالف دي او فقهاء رحمهم الله وايي چي د هغه قول ته اعتبار نسته، حتى كه قاضي فتوىٰ پر وركړي حكم يي نه دي نافذ.

د ابن المسیب رحمه الله دلیل دادي چي په قرآن مبارك كي خو داسي راغلي دي، حتی تنكح زوجاً غیره" او د نكاح معنا خو عقد دي، نو د شرط والي د وطي زیادت پر قرآن دي، وهو لایجوز بالحدیث، د جمهور رحمه الله دلیل داي، (۱) اول چي حدیث د عسیله مشهور دي او په مشهور حدیث زیادت پر قرآن روا دي كما تقرر فی اصول الفقه،

(۲) دوهم په ایت مبارك كي خوداسي رغلي دي (فلا تحل له حتی تنكح زوجاً غیره الآیه" نو عقد خو د زوج د لفظ وفهمېدي نو د نكاح څخه مراد حقیقةً دا لفظ دي چي وطي دي، نو وطي د اشاره څخه د آیت وفهمېدي.

**درويش وايي**:- چي مذكوره تفصیل د بخاري، مسلم، در مختار، ردمحتار، هدایه، جوهره، او نور الانوار وغیرها څخه ماخذ دي.

**درويش وايي**:- چي د كوټي په ښار كي یو كتاب فروش دي چي نوم اخستل یي مناسب نه دي، او دی خپله په هیڅ علم كي برخه نه لري صرف ګویا دي كتب خانه لري، هغه د یو بل عالم چي په قوم بلوڅ دي مولوي بركت علي یي نوم دي اوسیدونكي د مشكاف دي او د درویش شاګرد هم دي داسي ویلي وه، چي مولوي عبید الله خوښه عالم دي لكن دا یو عیب لري چي د كتابو څخه غلا كوي، نو بركت علي صاحب ورته ویلي وه چي كه نقل د كتابو څخه غلا وي، نو ستا په مذهب كي ټوله مصنفین غله دي، ولي چي قدیماً وحدیثاً نقل د مصنفینو تر مابین یو د بله څخه جاري دي، بركت علي صاحب ورته ویلي وه چي ته كتابونه د تفاسیرو لكه روح المعاني، روح البیان، تفسیر كبیر وغیرها او كتابونه د فقهي شریفي لكه هدایه، رد محتار، فتح القدیر، وغیره وهكذا

کتابونه د اصول الفقه وغيرها مطالعه کړه چي څونده نقل يو د بله
پکښې دي، بلکه بناء ددين او د شريعت پر نقل ده "چشم بد اندېش که
بر کنده باد، عيب نمايد هنرش درنظر.

## قال المصنف رحمه الله "والصبي المراهق في التحليل كالبالغ"

او که کوچني چي مراهق وي يعني بلوغ ته نيژدې وي او جماعي
کولای سي، او بعض فقهاء رحمهم الله وايي چي مراهق هغه کوچني دي چي
غنړ يي پورته کېږي او غوولو ته يي شوق کېږي، چي شمس الائمه
السرخسي رحمه الله وهغه ته لس کاله عمر اينبي دي، كما في مجمع الانهر.

**پوښتنه**:- د مراهق تحليل څه فائده کوي ولي دی خو ماينې ته طلاق
نه سي ورکولای ؟

**جواب**:- فائده يي داده چي که دا مرهق مړ سي نو ښځه و اول مېړه ته
روا ده، او يا مراهق په دې ښځي يو وار دخول وکړي او بيا يي پرېښول
کار يي نه ورسره درلودي چي بالغ سو بيا يي طلاقه کړه، درويش.

## قال المصنف رحمه الله "ووطي المولى امته لا يحلها"

او وطي کول د بادار د مينځي نه روا کوي مينځه ومېړه ته،

صورة المسئلة، د يو سړي مينځه وه بل سړي ته يي په نکاح ورکړې
وه، او مېړه هغې مينځي ته دوه طلاقه ورکړه چي هغه مغلظ طلاقه دي
د مينځي کمامر، او وروسته تر تېرېدو د عدې مولى د هغې سره وطي
وکړې، نو په دې وطي سره دا نه روا کېږي وه اول مېړه ته ولي چي خداي
پاک جل جلاله خو داسي وايي، حتى تنكح زوجا غيره" او بادار خو زوج نه بلل
کېږي په شرعه شريفه کي، عنايه، در.

قال المصنف رحمة الله عليه " واذا تزوجها بشرط التحليل فالنكاح مكروه فان طلقها بعد وطيها حلت لاول" او كه يي په نكاح كړه مطلقه ښځه يو چا په شرط د تحليل يعني په روا والي د زوج اول ته، معنا دا چي يا دا نوي مېړه ښځي ته ووايي چي زه صرف ستا سره د روا كولو د پاره ومېړه اول ته، او يا ښځه ووايي چي زه ستا سره نكاح كوم صرف د دې د پاره چي زه اول مېړه ته رواسم نو نكاح يي مكروه ده، لقوله عليه الصلوٰة والسلام، لعن المحلل والمحلل له" صاحب هدايه وايي چي معنا د حديث شريف هم دغه محلل او محلل له دي چي نكاح په داسي شرط وكړي، يعني نه مطلق محلل او محلل له، نو كه هغه مېړه هغه ښځه طلاقه كړه پس له وطي څخه ښځه روا سوه واول مېړه ته، دليل يي دادي چي نكاح په شرطو فاسدوو سره نه فاسدېږي، نو دخول او وطي په نكاح صحيح كي راغلي دي وهو الشرط.

**پوهه**: چي د امام ابو يوسف رحمة الله عليه څخه روايت دي چي هغه مذهب قديم د شافعي رحمة الله عليه هم دي، او مذهب د امام مالك رحمة الله عليه او امام احمد رحمة الله عليه هم دي، چي داسي نكاح فاسده ده او اول مېړه ته نه روا كېږي ولي نكاح په شرط د تحليل لكه نكاح موقت ده، او هغه خو فاسده ده، مونږ وايو چي عين نكاح موقت خو نه ده ولي چي د نكاح موقت صورت خو دادي چي سړی وښځي.ته ووايي چي زه ستا سره نكاح كوم د يوې مياشتي د پاره په دونده ولور او نكاح په شرط د تحليل كه څه هم مشابه ده صورةً د نكاح موقت سره لكن دا خو نه ده لازم چي مشبه او مشبه به په ټولو احكامو كي سره شريك دي كما تقرر فی النحو والمعاني، مجمع الانهر، درویش.

قال القدوري رحمه الله" واذا طلق الرجل الحرة تطليقة او تطليقتين وانقضت عدتها وتزوجه بزوج آخر فدخل بها ثم عادت الى الاول عادت بثلث تطليقات" او كه چېرې طلاقه كړه يو سړي ماينه چې حره وه په يوه طلاق او يا دوه طلاقه سره، او عده يې تېره سوه او دې بل مېړه وكړى او هغه هم وطي ورسره وكړي بيا ورسته دا اول مېړه ته راغله او اول مېړه په نكاح كړه يعني دوهم مېړه دا طلاقه كړه او عده يې تيره سوه، بيا يې د اول مېړه سره نكاح وكړه، نو حكم يې دادي چې اول مېړه ته دا په درې طلاقه راګرځي يعني هغه د مخه دوه يا يو طلاق د اول مېړه لغوه سوه اوس بيا اول مېړه د دروو طلاقو مالك دي، يعني داسي نه ده چې يو طلاق يې په نكاح قديم كي وركړي وو نو په دې نكاح كي چې دوه طلاقه نور وركړي نو مغلظه ګرځي. او يا يې دوه طلاقه په پخوانۍ نكاح كي وركړي وه اوس چې يو طلاق بل وركړي نو مغلظه ګرځي، عنايه، درويش.

قال القدوري رحمه الله" ويهدم الزوج الثانى مادون الثلاث كما يهدم الثلث عند ابى حنيفة وابى يوسف رحمهما الله تعالى وقال محمد رحمه الله لايهدم الزوج الثانى مادون الثلث" او نړوي يعني لغوه كوي دوهم مېړه كم تر درې طلاقه لكه چې لغوه كوي درې طلاقه په نېز د شيخينو رحمهما الله، دليل يې دادي چې درې طلاقه چې اغلظ طلاقه وه، په زوج ثانى لغوه سو، نو كم تر درې چې نسبةً سپك طلاق دي بايد په طريق اولى په زوج ثاني لغوه سي، او امام محمد رحمه الله وايي چې كم تر درې په زوج ثاني نه لغوه كېږي بلكه زوج اول په نكاح

ثاني كي مالك د مابقى من الطلقات دي، يعني كه يي يو ورکړي وو د دوو مالك دي او كې دوه ورکړي وه د يوه مالك دي حتى كه مجموع درې ته ورسېده ښځه مغلظه سوه، والتفصيل فی فتح القدير.

قال القدوري رحمة الله عليه " واذا طلقها ثلثا فقالت قد انقضت عدتی وتزوجت بزوج آخر ودخل بی الزوج الثانی وطلقنی وانقضت عدتی والمدة تحتمل ذالک جاز للزوج الاول ان يصدقها اذا كان غالب ظنه انها صادقة" او كه سړي طلاقه کړه مابنه په درې طلاقه سره څه مده وروسته هغه ښځه راغله اول مېړه ته يي وويل، تاچي زه طلاقه کړم ماخپله عده تېره کړه او بيا مي بل مېړه وکړي او هغه هم زما سره وطي وکړي او بيا هغه هم طلاقه کړم او د هغه د طلاق عده مي هم تېره کړه مطلب يي دا وو چي اوس ستا سره نوې نکاح کوم، ولي چي شرط د حلال والي وتاته پيدا سو، او دغه مده چي د اول مېړه د طلاقه څخه تر اوسه بيان پوري د ښځي ګنجائش ددې ټولو ذکر سوي کارو پوري درلودي، نو روا ده زوج اول ته چي ددې تصديق وکړي كه يي غالب ګمان د مېړه دا وو چي دا رشتيا وايي، يعني نوي نکاح د هغې سره ورته روا ده، بخلاف ما اذا ذكرت مدة قليلة لاتحتمل الامور المذكورة لان كذبها متيقن.

**پيوه سه**: چونکه ايلاء په وروسته کي طلاق بائن ځندي جوړېږي لکه چي بيان بې راسي ان شاء الله تعالي، لکه د طلاق رجعي چي پس د مروره د عدې بائن پيدا کېږي، نو ځکه مصنف رحمة الله عليه وروسته تر كتاب الطلاق كتاب ايلاء راوړي، منح.

**واوره**: چي ایلاء په لغت کي نفس قسم ته وایي نحو "اني یوبی ایلاء عنایه، او په شرحه شریفه کي قسم اخیستل دي د جماعو څخه د ماینې سره چي مده یي څلور میاشتي ده د حري د پاره او دوي میاشتي ده د مینځي ماینې د پاره، ملتقي. نو قدوري وایي.

# كتاب الايلاء

دا کتاب دي په بیان کي د احکامو د ایلاء یعني په شریعت کي در.

قال" اذا قال الرجل لامرئته والله لا اقربک اولا اقربک اربعة اشهر فهو مول " او که وویل یو سړي یعني مېړه خپلي ماینې ته قسم واخلي، چي زما دي په خداي ﷻ قسم وي چي زه تاته نه نژدې کېږم یعني وطي نه درسره کوم، یعني مقید په زمانه پوري یي نه کړه، چي دې ته ایلاء مطلق وایي، او یا یي داسي وویل حري ماینې ته چي زه نه درنژدې کېږم څلور میاشتي، چي دې ته ایلاء مقید وایي نو دا سړی شرعاً ایلاء کونکي دي.

**پوه سه**:- چي د قربان معنا وطي ده، قال الله تعالی، ولاتقربوهن حتی یطهرن.

**مسئله**:- او کې داسي قسم واخستي چي قسم په خداي ﷻ دي که زه تاته نژدې سم یعني وطي درسره وکړم چي ته په حیض کي یي داسي مولي نه دي، ولي دي خو په حال کي د حیض د وطي څخه بې قسمه ممنوع دي.

**مسئله**:- که سړي ببله قسمه ماینې ته وویل چي زه ستا سره وطي نه کوم مُولي نه دي، در.

قال" فان وطئها في الاربعة الاشهر حنث في يمينه ولزمته الكفارة" نو كه ده وطي كړه مابينه په څلور مياشتو كي دننه حانث سو په قسم كي، او لازم سوه پر ده كفاره يعني د يمين.

وسقط الايلاء" او قسم ختم سو ولي چي قسم خو په حنث سره ختمېږي، قال الله تعالى (للذين يؤلون من نسائهم تربص اربعة اشهر الآية)

وان لم يقربها حتى مضت اربعة اشهر بانت منه بتطليقة واحدة" او كه ده وطي نه ورسره وكړې حتى چي څلور مياشتي تېري سوې، نو مابينه پر ده په يوه طلاق بائن سره طلاقه سوه معنا دا چي په رضا د ښځي نكاح جديد ورسره كولاى سي.

**پوه سه**:- چي بعض مړونه څلور مياشتي بلكه بالاتر هغه د مابينې سره وطي نه كوي، يا يي د لاسه نه كېږي، او يا پهلوان وي پهلواني ته ځان تكړه كوي، په دې كي پر ده طلاق نه لازمېږي او په صورت كي د ايلاء چي پر ده طلاق بائن لازمېږي په دې سبب چي ده مابينه ازار كړه په منع سره د حق د دې چي وطي دي په قول سره، نو شرعي شريفي وده ته جزاء وركړه په زوال د نعمت د نكاح، په جوهره كي وايي چي دا مذهب دي د عثمان ﷺ او د علي ﷺ او د عبد الله بن عباس ﷺ او د عبد الله بن مسعود ﷺ او د عبد الله بن عمر ﷺ، چي عبادله ثلاثه يي بولي، او مذهب دي د زيد بن ثابت ﷺ او نور، ج، در.

قال" فان كان حلف على اربعة اشهر فقد سقطت اليمين" نو كه مېړه پر څلور مياشتي قسم اخستي وو نو قسم هم خلاص سو، ولي

چې په قسم چې سړی هانث سي هغه قسم ختمېږي بيرته په خپله نه راګرځي.

قال" وان كان قد حلف على الابد فاليمين باقية" او کې قسم د ابد د پاره واخستي يعني داسې ووېل چې زه ستاسره ابداً وطي نه کوم، نو قسم پاته دي ولي خو ده ابد قيد ويلي دي نو فائده د پاتي والي يي داده چې مصنف رحمه الله يي تشريح کړې ده او وايي.

فان عاد فتزوجها عاد الايلاء فان وطئها لزمته الكفارة" پس که مېړه دې ته عود وکړي او په نکاح يي کړه يعني وروسته تر څلور مياشتو تېرېدو چې دا بائنه سوه، او عده يي هم تېره سوه، نو بېرته ايلاء راوګرځېده ولي خو يمين په سبب د تابيد باقي دي، نو که يي په نکاح جديده کي وطي ورسره وکړې کفاره د يمين پر لازمه سوه.

قال" و الا وقعت بمضى اربعة اشهر تطليقة اخرى" او که يي وطي نه ورسره وکړې بلکه څلور مياشتې بيا بې وطي پرېښول نو واقع سو پر ښځه بل طلاق، لان الايلاء مؤبد.

قال " فان تزوجها ثالثا عاد الايلاء ووقعت بمضى اربعة اشهر تطليقة اخرى" نو کې دريمه پلا بيا په نکاح کړه يعني پسله تېرېدو څخه د عدې ايلاء بېرته راوګرځېده لكونه مؤبد" دا عبارت دلته محذوف دي په قرينه د دمخه عبارت يعني په دريمه نکاح کې په څلور مياشتي کي دننه دننه وطي ورسره وکړې نو کفاره د يمين پر لازمه سوه ولي چې يمين خو د همېشه لپاره وو، او که يي په دريمه نکاح کي هم

ځلور میاشتي پرېښوله نو پسله تېرېدو ځخه د ځلورو میاشتو پر ښځه دریم طلاق واقع سو.

فائده:- نو دري طلاقه چي پر ښځه واقع سوه نو دا خو مغلظه طلاقه سوه، بېله زوج آخر او وطي د هغه او د طلاقه د هغه او د تېرېدو د عدې وده ته نه روا کېږي نو ځکه مصنف رحمه الله وايي.

قال" فان تزوجها بعد زوج آخر لم يقع بذالک الايلاء طلاق واليمين باقية فان وطئها كفر عن يمينه" نو که يې په نکاح کړه هغه ښځه ځلورمه پلا پس له عدې ځخه او پس له نکاح د زوج آخر يعني وروسته تر وطي د هغه او وروسته تر طلاق د هغه او وروسته تر عدې تېرېدو، نو نه واقع کېږي په ايلاء پخوانۍ سره طلاق، ولي طلاقونه د پخوانۍ ايلاء خو پوره سوه او ښځه يك لخته دده د ملكه ووته او ايلاء لكه طلاق بېله ملكه نه ده صحيح، مثلاً بېګانه ښځي ته سړي ووايي والله لااقربك اربعة اشهر" دا ايلاء نه ده نو کې وروسته په نکاح هم کړي نو په هغې ايلاء سره طلاق پس له ځلورو مياشتو نه واقع کېږي، او قسم يي باقي دي نو کې وطي ورسره وکړې کفاره يمين به ورکوي او امام زفر رحمه الله وايي چي پسله ځلورم وار نکاح ايلاء باقي ده په سبب د بقا د يمين ولنا ماقلنا آنفاً.

قال القدوري رحمه الله " فان حلف على اقل اربعة اشهر لم يكن موليا" او که مېړه قسم پر عدم وطي د مايني کم تر ځلور مياشتو واخستي مثلا داسي وويل والله لااقربك شهرا" نو داسړی مولی نه دي، او دا هم قول د ابن عباس رضي الله عنه دي او امام اعظم رحمه الله دمخه وويل چي دا سړی هم مولی دی لکن ځه وخت چي فتوی د ابن عباس رضي الله عنه و امام اعظم رحمه الله

ته ورسېدله خپل د اول قول څخه يې رجوع وکړه، كذا رمز. در

قال" وان حلف بحج" يعني پر مايې حج لازم که ماستا سره وطي وکړې، په جوهره کي وايي چي داغسي حکم دي کې وويل چي پر ما عمره لازمه که ما ستا سره وطي وکړې "او بصوم" يعني که ما ستا سره وطي وکړې پر ما پنځه (۵) ورځي مثلا نفلي روژه لازمه ده.

او بصدقة" يعني که ما ستا سره وطي وکړې پر ما دونده اندازه مثلاً (۱۰۰) روپۍ خيرات لازم دي. او عتق" يعني داسې وويل که ما ستا سره وطي وکړې پر ما عتق د مريي لازم دي. او بطلاق" يعني داسې وويل چي که ما ستا سره وطي وکړې پر ما ماينه طلاقه ده. يعني يا بله ماينه يا داغه ماينه. فهو مولى" نو داسړی مولی دي معنا داده که مېړه په څلور مياشتو کي دننه وطي ورسره وکړې خو حج يا روژې يا خيرات يا آزاد والی يا طلاق پر لازم سو، او دغه تعليق لکه قسم منحل او خلاص سو ولي چي د مخه تېره سوه چي يمين په حنث سره ختم کېږي فکذا ماهو فی حکم اليمين لکه دغه تعليقات، او که يې څلور مياشتي وطي نه ورسره وکړې د کفارة اليمين څخه خلاص دي لکن ماينه يې په طلاق بائن سره طلاقه سوه کما مر من قبل من حکم الايلاء" دليل د دغو ټولو مسئلو دادي چي ده الفاظ د شرط او جزاء ذکر کړه يعني که ما ستا سره وطي وکړې دا شرط دي، نو پر ما مثلا حج لازم دي دا جزاء ده. لکه په حقيقت يمين کي مثلا والله لا اقربك اربعة اشهر، نو ددې معنا هم شرط او جزاء ده يعني که ما وطي در سره وکړې نو پرما کفاره لازمه ده، نو د کفارې د تکليف په سبب ده ځان د وطي څخه منع کړی، فکذا فی

هـذه التعليـقات، دى ځـان مـنع كـوي د وطـي څخـه پـه سـبب د لـزوم د تكليف د حـج ولـي پـه حـج كي غـالبـاً تكليـف مـالي او بدني وي او عمره لكه حج تكليف مالي او بدني لري، وهكذا الصدقة والعتق والطلاق.

**مسئله**:- كه يي په اعتكاف سره تعليق وكړى، يعني داسي يي وويل كه ماستا سره وطي وكړم نو پر ما دري (۳) ورځي مثلا اعتكاف لازم دي هغه سړى هم مولي دي ولي چي اعتكاف خو بې روژو نه دي روا.

**مسئله**:- كه سړي تعليق پـه لمانځه وكړى يعني داسي يي وويل چي كه ماستـا سره وطـي وكړم نو پر مـا دوه (۲) ركعتـه نفل لمونځ مثلا لازم دي نـو هغـه سړى مولـي نه دي پـه نېـز د امام ابو حنيفه او امام ابو يوسف او امـام محمـد رحمه الله، او د امـام زفـر او حسـن بصـري رحمه الله پـه نېـز مولي نه دي، و الدلائل للفريقين في المطولات، وشروح القدوري.

قـال القـدوري رحمه الله " وان آلـى من المطلقة الرجعية كان موليا وان آلـى مـن البائـنة لـم يكـن موليـاً" او كـه سړي ايلاء وكړه د هغي مايني سره چي ده پـه طلاق رجعـي سره طلاقـه كړې وه يعنـي د مخه تر تېرېدو د عـدې نـو دى مولـي ګـڼل كېږي، ولـي د دوې تر مـابيـن زوجيت قـائم دي او وطـي ومېږه تـه روا دي نـو مـنع د وطـي راجع وايلاء ته ده، او كه يي ايلاء وكړه د مطلقې بائنې سره دى مولي نه ګـڼل كېږي ولـي چي د دوي دوو تـر مابيـن زوجيت زائـل دي، او وطـي يـي بېلـه جديـدي نكاح ورته نا روا دي، نو منع د وطي يي راجع وه قسم ته ايلاء نه دي.

**مسئله**:- كه عده د مطلقة رجعية د مخه تر تېرېدو د مدت د ايلاء چي څلور مياشتي ده تېره سوه، ايلاء ساقطه سوه ولي د عدې په تېرېدو سره محل د ايلاء نه سو پاته ولي ښځه بائنه سوه، هدايه، درويش، جوهره.

قال القدوري رحمة الله عليه " وايلاء الامة شهران" او ايلاء د مينځي دوې مياشتي ده ولي په شرعه شريفه كي نعمت او قسمت د مينځي مايني پر نمايي د حري مايني ده ځكه په دوه طلاقه مغلظه طلاقيږي او عده يې هم دوې مياشتي ده.

وان كان المولى مريضا لا يقدر على الجماع او كانت المرئة مريضة" يعني داسي مريضه وه چي د جماع طاقت يي نه وو، او كانت رتقاء او صغيرة لا يجامع مثلها او كانت بينهما مسافة لا يقدر ان يصل اليها فى مدة الايلاء ففئة ان يقول بلسانه فئت اليها فان قال ذالک سقط الايلاء وان صح فى المدة بطل ذالک الفى وصار فيئته الجماع" او كه ايلاء كونكي مريض وو چي قدرت د جماعو يي نه درلودي او يا ښځه ناجوړې وه او يا ښځه رتقاء وه، يعني ښله بولو كولو يې كوس د غنږ د ننوتلو ځاي نه درلودي، او يا يي ماينه دونده كوچنۍ وه چي د دغسي كوچنۍ سره وطي نه سوې كيدلای، او يا په مابين كي د مېړه چي ايلاء يي كړې ده او د ده د ماينې دومره مسافت وو چي په مدت كي د ايلاء چي څلور مياشتي د مېړه ماينې ته نه سوای رسېدلای چي وطي يې ورسره كړي وای ځان يې حانث كړی واي، نو رجوع او فيئ د ده داده چي په ژبه ووايي مارجوع كړې ده ماينې ته نو كې داسي وويله ايلاء ساقطه سوه يعني ده ګويا جماع وكړه او ځان يي په قسم كي حانث كړی نو كفاره د يمين به وركوي او ښځه نه څندي بائنه كيږي، او كه مېړه جوړ سو په مده كي د ايلاء يعني په دننه څلورومياشتو كي نو هغه دخولي رجوع يي باطله سوه او رجوع دده په

جماعو سره ده نو که يې جماعي ورسره وکړي نو حانث سو کفاره د يمين پرسته او که يې وطي نه ورسره وکړې مابنه ورڅخه بائنه سوه، کماهو حکم الايلاء على مامر، درويش عاصي غفرله،

حاصل د کلام، **پوه سه**: چې فيئة په لغت کي رجوع او پښيماني ته وايي نو چونکه د ايلاء په سبب مېړه د حق د مابنې مانع ګرځېدلي وو چې وطي وې په مده کي د څلورو مياشتو، او دى بېرته پر خپل قسم پښېمانه سو او بېرته يې د مابنې وحق ته د وطي غاړه کښېښوله، نو که پر وطي قادر وو خو وطي په دننه کي د څلورو مياشتو کي ورسره وکي او د قسم کفاره به ورکړي خبره خلاصه سوه، نو څکه ودې کارته د مېړه فيئ وايي يعني ده رجوع وکړه د ترك څخه د وطي په سبب د ايلاء و وطي ته د مابنې، ا که سړى خو پښېمانه وو لکن په سبب د ناجوړى يې قدرت د جماعو نه درلودي يا په سبب د ناجوړى يا د رتقاء والي او يا د صغر د کبله ښځي قدرت پر وطي د مېړه نه درلودي، نو ددغه سي سړي د پاره فيئ قولي په ځاى کي د فيئ عملي چې وطي دي درېږي، قدوري رحمه الله خو په فيئ قولي کي دا قدر وويله فئت اليها" او د امام اعظم رحمه الله څخه روايت دي چې دغه سړى د شاهدانو په مخ کي ووايي "اشهدوا انى قد فئت الى امرئتى او راجعت زوجتى او ابطلت الايلاء" ليکن پوه سه چې د فيئ قولي د پاره خو شاهدان شرط نه دي لکن امام اعظم رحمه الله د احتياط د پاره اشهاد ويلي دي، ولي چې ممکنه ده چې څلورمياشتي بېله وطي پر دغه معذور سړي تېري سي او دى مابنې ته ووايي چې ماتاته رجوع قولي کړې وه په مدت کي دننه او ښځه يې تکذيب وکړي، نو دي به شاهدان تېر کړي او خپله خبره به ثابته کړي او مابنه به يې د

لاسه نه وځي ، ولله دره ما ادق نظره، او په نېز د امام شافعي رحمه الله رجوع د ايلاء څخه بېله وطي نه کېږي، مونږ دا وايو چي خداي پاك جل جلاله وايي، لا يكلف الله نفسا الا وسعها" نو څکه د ګونګي په طلاق او نكاح او په بيع او شراء کي دده واشاراتو ته اعتبار شريعت ورکړي دي، او سره ددې چي دا عقود مذكوره خو قولي شيان دي.

**مسئله**: كه مېړه مجبوب او يا په داسي محبس كي بندي وو، او يا ښځه بندي وه چي قدرت پر جماعو ممكن نه وو او يا ښځه ناشزه وه يعني مېړه ته يې ځان نه ورکاوه، او په داسي ځاي کي چي د مېړه قدرت نه وو چي هغه ځاي ته ورسي نو په دې صورتو کي فيئ بالقول كافي دي كذا قال الكرخي رحمه الله.

**مسئله**: كه د مېړه عجز د وطي څخه حساً خو نه وو لكن شرعاً يي د وطي قدرت نه درلودي، لكه سړى چي څلور مياشتي محرم وي، او يا يي څلور مياشتي روژه پر ځان نذر کړي وي، او يا بل څه دغسي وه، په نېز زمونږ (احنافو) فيئ دده په وطي سره دي ولي چي د فيئ د پاره قدرت حسي شرط دي هغه خو لري، او امام زفر رحمه الله وايي چي په مذكوره صورتو كي هم فيئ بالقول صحيح ده، دى وايي چي منع لحق الله لكه منع حسي ده، ج، در.

قال القدوري رحمه الله " واذا قال لامرئته انت على حرام سئل عن نيته فان قال اردت الكذب فهو كما قال وان قال اردت به الطلاق فهى تطليقة بائنة الا ان ينوى الثلاث وان قال ارت به الظهار فهو ظهار وان قال اردت به التحريم او لم ارد به

شيئا فهی یمین یصیر به مولیا" او که یو سړي وویل خپل مابنې ته چې ته پر ما حرامه یې، سوال دي وکړه سي د نیت په باره کې د سړي، یعني چې ستا په دغه خبره کې څه قصد وو، نو که ده وویل چې زما ایراده درواغ ویل دي نو لکه دی چې وایې هغه اراده صحیح ده ولې ماینه خو حلاله ده نو انت حرام" داسي یو خبر دي چې د واقع سره نه دي برابر نو خود درواغ دي، عنایه" او بعض فقهاء رحمهم الله وایي چې که مرافعه وقاضي ته وکړل سي قاضي دده دغه نیت ته اعتبار نه ورکوي، ولې د عرف عمومي څخه خلاف که څه هم حقیقت د لفظ دي، او که ده وویل چې زما طلاق مرادوو نو یو طلاق بائن پر واقع کېږي ولې چې په رجعي طلاق کې خو حرمت نه سته، مگر که یې نیت د درو طلاقو کړي وو بیا درې طلاقه واقع کېږي، ولې چې درې طلاقه نوع غلیظ د حرمت ده، او که ده وویل چې زما ظهار غرض وو نو بیا ظهار دي لکن دا په نېز د شیخینو رحمهما الله او امام محمد رحمه الله وایي چې ظهار نسي کیدای ولې چې په ظهار کې خو تشبیة بالمحارم غواړي لکه چې" انت علی کظهر امی او بطن امی الی غیر ذالك من المحارم، او په انت علی حرام کې خو تشبیة بالمحارم نسته، شیخان رحمهما الله وایي چې په ظهار اصلي کې خو تحریم سته دلته که څه هم ده مطلق حرمت ویلي دي لکن اراده مقید د مطلق څخه رواده په نېز د نیت د مقید، جوهره، درویش، او که ده وویل چې زما فقط تحریم غرض وو او یا مي هیڅ شئ غرض نه وو، نو داقسم دي په دې سره دی مولي گرځي ولې تحریم د حلال زمونږ په نېز قسم دي، ولې چې په حدیث کې د بخاري چې حدیث ذهر ورد دي علیه الصلوة والسلام عسل پر ځان حرام کړي وه، نو خداي پاك جل جلاله داسي ورته

وويل (قد احل الله لكم متحله ايمانكم) كذا فى الهدايه نو چي قسم سي نو ګويا ده د ماينې وطي په قسم سره ځان ته حرامي وګرځولې وهو المعنى الايلاء نو كه يي په څلور مياشتي كي وطي ورسره وكړې كفاره د يمين به وركوي نوره خبره خلاصه سوه يعني په حنث سره يمين د مابين څخه ولاړى او كه يي په څلورو مياشتو كي وطي نه ورسره وكړې نو ماينه يي ځندي باينه سوه، كما هو حكم الايلاء على مامر مرارا فتذكر.

# كتاب الخلع

دا كتاب دي په بيان كي د مفهوم او احكامو د خلع.

**پوه سه**:- چي قانون د كتابو د عمومي فقهي شريفي دادي چي كتاب لفظ په هغو مسئلو كي عنوان ګرځوي چي د انواعو مختلفه وو څخه وي چي مصنف رحمة الله عليه پخپله په كتاب الطهارات كي د دغسي مسائلو عنوان ګرځولي دي، چي طهارت د اوداسه طهارت د غسل طهارت د ثوب طهارت د مكان ته شامل دي، اما په كتاب النكاح حصه كي يې د هغه مخالف طرز بيان مختار كړي دي يعني د يوې نوعي مسئلو ته يې كتاب عنوان ګرځولي دي لكه" كتاب الايلاء، كتاب الخلع، كتاب الظهار وغيره" نو پكار خو دا وو چي دغه مباحث په عنوان د باب راوړى واى، لكه باب الرجعة البته كتاب الطلاق چي پر انواعو مختلفه وو مشتمل وو يعني د طلاق رجعي مسائل، د طلاق بائن مخفف مسائل، دطلاق مغلظ مسائل وغير ذالك د اصطلاح قديمي سره برابر وو، لكن لا جرح ولا مضايقه في ذالك لان المصنفين يتفنون في كتبهم حسب ما شاؤا.

**فائده**:- مصنف رحمة الله عليه خلعه تر ايلاء ورسته كړه د دوو سببو په جهت

(۱) اول داچي په ایلاء کي چونکه مال نسته نو طلاق ته نیژدې ده تر خلع چي په هغې کي مال مشروط سته.

(۲) دوهم داچي د ایلاء سبب د نر د خوا څخه نافرماني د حق څخه د ماینې چي وطي دي، او د خلع سبب غالبا نافرماني د ښځي د خوا د مېړه د حقوقو څخه، نو د نر خوا یي د مخه کړه، عنایه.

**پوه سه**:- چي د خلع معنا په لغت کي زائلول دي د یو شي د بل شي څخه، لکن دا لفظ په معنا شرعي چي رابسي په دې سبب استعمال سو چي خداي ﷻ د مېړه او مایني په باره کي وایي "هن" یعني ماینې "لباس لکم" یعني لکه ستاسي کالي چي ستاسي عیبونه په دوي خوندي دي "وانتم" یعني تاسي مړونه "لباس لهن" لکه کالي د ماینو چي د دوي عیبونه په تاسي سره پټ دي، نو چي مېړه او ماینه خلع سره وکړي ګویا دواړو ځانونه بربنډ کړه، مجمع الانهر، او خلع په شریعت کي ازاله د ملك د زوجیت د مېړه په مال د مایني دخوا ،برجندي.

قال القدوري رحمة الله عليه " واذا تشاق الزوجان وخافا ان لا يقيما حدود الله فلا باس ان تفتدى نفسها منه بمال يخلعها به فاذا فعل ذالک وقع الخلع تطليقة بائنة ولزمها المال" او که چېري مخالفت واقع سو په مابین د مېړه او مایني خواه ملامت هر یو وي او دوي دواړه بېرېدل چي مونږ پر ځاي نه کړو احکام د خداي ﷻ یعني حقوق د مېړه والي او مایني والي چي خداي ﷻ ددوي په زمه کي ټاکلي دي، ولي چي د شرعي شریفي د نکته نګاه څخه هر یو د مېړه او مایني پر یو بل باندي حق نه بلکه حقوق لري، کما بینت في موضوعه، او که چېري نشوذ نه وي د یوې خوا او خوف هم نه وي بلکه صرف ښځه بد

رنګه وي نو مېړه ته اخيستـه د مال مکروه دي، هکذا في الجوهره" نو پروا نه لري يعني ګناه نسته نه پر ښځه چي روپۍ وغيره ورکوي د ځان د خلاصه ولو د پاره اونه پر مېړه د مال قبلولو په باره کي چي ښځه فديه ورکوي يعني مال نقود وغيره ورکوي د خپل ځان په باره کي يعني د ځان د خلاصولو په باره ومېړه ته په مال سره چي مېړه دا پرېږدي په دغه مال سره لقوله تعالى "فلا جناح عليهما فيما فتدت به.

**پوښتنه**:- په آيت کريمه کي نفي د ګناه د مېړه او مابينې دواړو څخه بيان سوه، او مصنف رحمه الله يوازي وښځي ته نسبت وکړي يعني في قوله "فلا باس ان تفتدى آه؟

**جواب**:- هو ګنا خو پر يوه هم نسته، لکن مصنف رحمه الله چي نسبت وښځي ته وکړي ولي غالبا نشوذ او نافرماني د ښځي د خوا راځي ولي چي نر تحمل صله او غيرت لري او ښځه پر عکس د نر ده، هم دا وجه ده چي د طلاق واکي او اختيار خداي جل جلاله ونر ته سپارلي دي، او ښځه يي ددې حقه څخه محرومه ساتلې ده نو چي مېړه داغسي وکړي نو پر ښځه بائن طلاق واقع سو او مال موعود پر دې لازم سو، دليل ددې چي طلاق بائن په واقع کېږي دادي چي ښځه چي مال ښندي د طلاق رجعي د پاره خو يي نه ښندي، ولي چي ددې غرض خو ځان خلاصيده دي د مېړه څخه او په طلاق رجعي کي خو دا د مېړه څخه نه خلاصېږي، نو د مال ښندنه قرينه ده پر دې باندي چي ددې او د مېړه د دواړو طلاق بائن غرض دي، بلکه مشائخ وايي چي د مېړه نيت ته د طلاق بائن ضرورت هم نه نسته ولي لفظ د خلعي په سبب د غلبه الاستعمال په طلاق بائن کي لکه صريح لفظ د طلاق بائن دي، او په ظاهر الروايت کي چي لفظ د

"خالعتك على الف" مثلا د کنایاتو څخه دي نو نیت ته د مېړه ضرورت
سته، الاان الفتوی علی ما قلنا سابقًا، او که مېړه وویل چي زما طلاق
نه وو غرض قاضي دې تصدیق نه کوي لکونه خلاف الظاهر،
کذا فی مجمع الانهر، ودر.
او پر ښځه مال په دې لازم دي چي دې د مال التزام کړي دي، او مېړه
هم په خروج د بضعې دده د ملکه بېله ماله راضي نه دي.

قال" وان کان النشوذ من جانبه کره له ان یاخذ منها عوضًا"
او که نافرماني او بد وضعتي د مېړه د خوا وه نو مکروه ده دته چي د
ماینې څخه عوض اخلي لقوله تعالی "وان اردتم استبدال زوج مکان زوج
الی ان قال فلا تاخذوا عنه شیئًا" اي عن المال المذکور، او بله خبره
داده چي مېړه باید دونده ظلم ونه کړي چي یووار یي په طلاق ماینه
خوابدې کړه او بل وار یي د مال په اخستو سره ددې څخه.

قال القدوري رحمه الله " وان کان النشوز من قبلها کره ان یاخذ
اکثر مما اعطاها فان فعل ذالك جاز فی القضاء" او که نشوذ
یعني نافرماني د ماینې د خوا څخه وه، نو مکروه ده مېړه ته چي ډېر
نقود تر هغه مبلغ چي ده ودې ته په ولور کي ورکړي دي ځندي اخلي، او
که یي داغسي هم وکړه یعني بالابود روپۍ یې ځندي واخستلې په
قضاء کي روا دي او د تقوی د لاري مکروه دي، په حدیث شریف کي
راغلي دي چي د ثابت بن قیس ماینه وعلیه الصلوٰة والسلام ته راغله او
داسي یي ورته وویل "یارسول الله لاانا ولاثابت" یعني نه سره جمع کېږو
زه او ثابت نو علیه الصلوٰة والسلام ورته وویل "اتریدین علیه حدیقته"
آیا ته ثابت ته ورکوې بېرته هغه باغچه چي ده په ولور کي تاته درکړې وه

ښځي وويل "نعم وزيادة" هو باغچه خو يي ورکوم، او نوري روپۍ هم ورکوم عليه الصلوٰة والسلام ورته وويل "اما الزيادة فلا.

**فائده**:- په جامع صغير کي راغلي دي چي زيادتي پيسې هم بې کراهته مېړه ته روا دي ولي چي دا آيت مطلق راغلي دي، فلا جناح عليهما فيمافتدت به، جوهره.

**درويش وايي**:- اګر چي آيت مذکوره مطلق دي لکن په حديث د ثابت بن قيس د زوجي جواز نه مقيد کېږي، لانه خبر واحد لکن لاقل من ان الحديث يفيد الکراهة والآية يفيد الجواز، فافهم مثل ذالک کثير.

قال" وان طلقها على مال فقبلت وقع الطلاق ولزمها المال وکان الطلاق بائنا" او که يي طلاقه کړه ماينه په عوض کي د مال يعني معين، او دې هم قبول کړي هغه مال په عوض کي د طلاق نو طلاق د مېړه د خوا پر واقع کېږي او پر ښځه مال لازمېږي او طلاق يي بائن دي.

**فائده**:- د خلع او طلاق على مال فرق دادي چي خلع په لفظ د خالعتك على كذا من المال او دا لفظ کنايه ده د طلاق څخه کمامر سابقا، او طلاق على مال صريح طلاق دي.

**فائده**:- پر قبول د ښځي ولي موقوف دي، ددې سببه چي مېړه معلق کي طلاق ددي په وجوب پوري د مال پردې، نو خود ددې قبول غواړي لکه په نور عقود ماليه کي.

**فائده**:- طلاق ولي بائن دي د دې وجهي چي ښځه مال ښندي خو ځان ددې مېړه څخه خلاصه وي، نو په رجعي کي خو نسي خلاصېداى، ولي خو مېړه به بيرته رجوع ورته وکړي، د ښځي روپۍ عبث ولاړې.

قال" وان بطل العوض فی الخلع مثل ان یخالع المرئة المسلمة علی خمر او خنزیر فلا شيء للزوج والفرقة بائنة" او که عوض د خلعي باطل سو لکه چي یو مېړه د مسلماني مایني سره خلع وکړي پر شرابو او یا پر سر کوزي، نو مېړه ته هیڅ شئ نسته او جلاوالي هم بائن دي، ددې مسئلې دلیل دادي چي ښځه خو مېړه نه ده غلولې، ولي خو هغه خمر او خنزیر عوض د خلعي پر دې کښېښو، او دادوه عوضه خو پر ښځه نه واجبېږي ولي خو ښځه مسلمانه ده، او نه بل مال پر دې لازم دي ولي دې خو التزام د بل مال نه دي کړي، او طلاق بلا مال خو هم مشروع دي او طلاق بائن په دې دي ولي چي د خلعي حکم طلاق بائن دي کمامر.

قال القدوري رحمه الله " وان بطل العوض فی الطلاق کان الطلاق رجعیا" یعني طلاق پر مال باندي لکه چي داغه دوه شئ یاد کړي په طلاق صریح علی مال کي، او که باطل سو عوض په طلاق کي نو طلاق یي رجعي دي ولي طلاق صریح چي عوض و نه لري لکه مانحن فیه هغه حتماً رجعي دي بائن نسي کیدای، جوهره در.

قال" وما جاز ان یکون مهراً فی النکاح جاز ان یکون بدلا فی الخلع" او هغه شيء او مال که نقود وي او که متاع وي او که حیوان چي مهر کیدای سي په نکاح کي هم هغه شیان بدل د خلع کیدای سي.

**پوه سه**:- چي بضع د ښځي په نکاح کي که څه هم جزء د انسان ده لکن متقوم د ضرورة بقاء النسل او په وقت د خروج د ملك څخه تقوم نه

لري، لعدم الضروة في ازالة الملك عن جزء الآدمی" نو پس هغه مال چي د متقوم شي په عوض کي راسي يعني د نکاح په وقت کي هغه د غير متقوم شي عوض په طريق اولی کيدای سبي، در، جوهره.

قال" فان قالت خالعنی علی ما فی يدی فخالعها ولم يكن فی يدها شيئ فلا شيئ عليها" او که ماينې مېړه ته وويل چي زما سره خلع وکړه پر هغه شئ چي زما په موټه کي دي، مېړه خلع ورسره وکړه، نو دې موټ ورته خلاص کړي، هيڅ شی د ماله څخه د دې په لاس کي نه وو نو مېړه لره هيڅ شی نسته پر دې باندي، ولي چي دې د مال نوم نه دي ورته اخستي او نه يي د شي نو خلع صحيح ده لکن رايګانه.

وان قالت خالعنی علی ما فی يدی من مال فخالعها ولم يكن فی يدها شيئ ردت عليه مهرها" او که يې مېړه ته داسي وويل چي ته زما سره خلع وکړه پر هغه شي چي زما په موټه کي دي د مال څخه نو مېړه هم خلع ورسره وکړه او ددې په لاس کي شي نه وو، ښځه په هغه مهر چي مېړه دې ته ورکړی دي هغه دي ورکړي بيرته،

دليل يي په هدايه کي داسي وايي چي دې مېړه په طمع کي د مال، نو دی بېله عوضه په زوال د ملك البضعی راضي نه دي، مال مسمي خو نسته نه يي قيمت د هغه ولي چي مسمي مجهول دي، او مهر مثل چي اصلي قيمت دي د بضع هم پر دې نسي لازمې دای، ولي چي بضع په وخت کي د خروج د ملك څخه قيمت نه لري، نو ددفعي د ضرر د مېړه څخه بايد هغه ولور چي ده ورکړي دي هغه ور رد کړي او بيرته يي ورکړي.

قال " وان قالت خالعنى على ما فى يدى من دارهم اومن الدراهم" فرق ددغو دوو لفظو د معرفې او نکرې دي.

ففعل فلم يكن فى يدها شيئ فعليها ثلثه دراهم" او كه ماينې وويل چي ته زما سره خلع وكړه پر هغه شي چي زما په لاس كي دي د دراهمو څخه او مېړه هغه سي وكړه، نو نه وو په لاس كي ددې هيڅ شي، نو پر دې باندي درې درهمه لازم دي ولي د جمعي معرفې او نكرې اقل درجه درې دي.

قال " ولو قالت طلقنى ثلاثا بالف فطلقها واحدة فعليها ثلث الالف" او كه مايني وويل مېړه ته چي ما طلاقه كړه په درې طلاقه سره په زر (۱۰۰۰) روپۍ نو مېړه يو طلاق وركړي، نو پر ماينه دريمه حصه د زرو روپو لازمه ده، دليل هذا" چي كلمه د با په عقود كي د پاره د مقابلې ده، يعني درې طلاقه مقابل د زرو روپو وګرځېدله، نو مقابل د يوه طلاق بالضرورة دريمه د زرو روپو وګرځېدله.

فلهذا لزمها ثلث الالف"

**مسئله**:- هغه يو طلاق چي پر ښځه واقع سو هغه رجعي طلاق دي، ولي چي لفظ د خلع نه دي ذكر سوي چي مقتضٰى دي بائن طلاق سي بلكه لفظ د صريح طلاق يي ذكر كړي نو مېړه چي يو طلاق وركړي نو يو طلاق صريح نه دي مګر رجعي.

**فائده**:- كه دغه سړى تر دغي واقعې د مخه ښځي ته دوه طلاقه نور وركړي وه نو دا پلا چي يو طلاق وركړي ښځه په حرمت غليظه حرامه سوه، نو پر دې باندي زر روپۍ پوره لازمي دي، ولي د دې غرض د ذكر

ښځه د درې طلاقو حرمت غليظه وو هغه حاصل سو، مجمع الانهر. در
قال" وان قالت طلقنى ثلاثا على الف فطلقها واحدة فلا شيئ عند ابى حنيفة رحمه الله تعالى وقالا رحمهم الله تعالى، عليها ثلث الالف" او که وويل ښځي مېړه ته چي ماته درې طلاقه راکړه په زر روپۍ، او هغه يو طلاق ورکړي نو هيڅ شي نسته پر ښځه.

**فائده**:- او طلاق يي هم رجعي دي، او دا په نېز د امام اعظم رحمه الله دي، دى مبارك وايي چي کلمه د على د شرط د پاره ده ګويا دې داسي ورته وويل "ان طلقنى ثلاثا فلك الف" نو دې شرط د استحقاق د زرو روپو درې طلاقه وګرځوله او په شرط کي ددې فائده هم ده ولي چي د مېړه ځخه په طلاق اغلظ خلاصه سي، نو چونکه مېړه شرط نه کي پر ځاي نو حق د عوض پر ښځه هم نه لري، او ياران رحمهما الله چي د امام شافعي رحمه الله هم داغه قول دي چي پر ښځه دريمه حصه د زرو روپو لازمه ده کما فى المسئلة الاولى، ګويا د يارانو په نېز کلمه د على هم د پاره د مقابلې ده، کالباء.

قال" ولو قال الزوج طلقى نفسک ثلاثا بالف او على الف فطلقت نفسها واحدة لم يقع شيئ من الطلاق" او که مېړه ماينې ته وويل چي ته ځان طلاق کړه په درې طلاقه يا په زر روپۍ او يا پر زر روپۍ او ښځي ځان ته يو طلاق ورکړي، نو پر دې هيڅ نوع د طلاق نه واقع کېږي نه يو او نه درې، يعني مېړه هم پر دې د ربو حق نه لري.
دليل ددې مسئلې دادي چي مېړه چي دا خبره وښځي ته کوله معلومه

خبره ده چي دی نه دي راضي په جلا والي د ماینې مګر په پوره زر روپۍ، نو دي اجازه نه ورکوي ماینې ته د وقوع د طلاق په بعض د الف.

**پوښتنه**:- که یو طلاق رجعي پر ښځه واقعه وي د مېړه څه تاوان دي خو بېرته به رجوع ورته وکړي؟

**جواب**:- د مېړه تاوان په دې کي دي که څه هم دي رجوع وکړي خو د اینده د پاره دا طلاق پر ده حساب دي، حتی که یي په وروسته کي دوه طلاقه ورکړي پر ده حرامېږي په حرمت غلیظه.

قال" والمبارئة كالخلع" او لفظ د مبارئت چي باب د مفاعلې دي او برائت چي معنا یي بېزاري ده او خلع چي معنا یي خالي والي د شي د شي څخه ده، نو د برائت او خلع معنا یو شي ده.

والخلع والمبارئة يسقطان كل حق لكل واحد من الزوجين على الآخر مما يتعلق بالنكاح عند ابى حنيفة رحمة الله عليه"

او خلعه او مبارئت ساقطه وي هر حق د هر یوه د مېړه او ماینې چي پر هغه بل طرف د اینده د پاره وي چي تعلق په نکاح پوري لري، په نېز دامام اعظم رحمة الله عليه د قید د حق نکاح دا فائده ده که چېري د مېړه پر ماینې پور باندي وي او بالعکس هغه نه ساقطېږي ولې هغه د حقوق څخه د نکاح نه دي، حتی که ماینې د مېړه څخه هیڅ ولور نه وو اخستي هغه ټوله ولور ساقط سو، او که مېړه ماینې ته څه روپۍ د ولور ورکړي وي پر ماینې رجوع نه سي کولای، چي هغه خو پاته حق د نکاح نه دي هغه خو تر خلع او مبارئت د مخه وو، او داغه رنګه مېړه حق د نفقه ماضیه پر ماینه نه لري یعني هغه نفقه بېرته راکړه.

**پوښتنه**:- د عدې د شپو نفقه او سکني خو پر مېړه لازمه ده او سره ددې چې د اينده حقوقو څخه د نکاح ده؟
**جواب**:- هغه په نص صريح سره ثابته ده.

وقال ابو يوسف تسقط وقال محمد رحمهما الله لاتسقط الا ما سميا ، اي الحقوق دون الخلع" او ابو يوسف رحمه الله وايې چې حقوق ساقطېږي او امام محمد رحمه الله وايي چې نه ساقطېږي مگر هغه وخت چې دوي دوه يي په نامه ياد کړي، او تفصيل د دلائلو د ائمه ثلاثه وو رحمهم الله په لويو شرحو کي د قدوري مطالعه کړه "فانه لايناسب حال المبتد.

# كتاب الظهار

دا کتاب دي په بيان کي د ظهار.
**پوهنه**:- چي د خلع او ظهار تر مابين چونکه مناسبت وو ددې کبله چي هريو غالبا د نشوز څخه پيدا کېږي، نو ددې سببه مصنف رحمه الله يو ځاي سره راوړه، او فرق ددوي دوو په مابين کي دادي چي نشوز په خلع کي د ښځي د خوا وي، او په ظهار کي د نر د خوا.
**فائده**:- خلع که څه هم د ښځي د خوا ده پر ظهار يي د مخه کړه ولي په خلع کي تحريم او قطع د نکاح راځي کمامر، او په ظهار کي قطع د نکاح نه راځي کما سيئاتي كذا قال الامام الطحاوی رحمه الله ، اوظهار په لغت کي شا په شا کېدو ته واي، او په اصطلاح د فقهاء رحمهم الله کي مشابه کول دي د مايني کما سيئاتی امثلة الكل په داسي اندام سره چي کتل د سړي هغه اندام ته روا نه دي دده داسي ښځي ته چي وده ته يي نکاح

حرامه وي لکه مور، خور، وغیره حتی که څه هم درضاع د جهته وده ته
حرامه وي لکه رضعي مور یا خور وغیره، کذا فی الملتقی.

**فائده**:- شرط د صحت د ظهار دادي چي هغه ښځه به په نکاح کي د
سړي وي په نکاح صحیحه سره نو ظهار و مینځي ته نه دي صحیح ولي
چي هغه خو ماینه نه ده، او داغه رنګه ظهار نه دي روا وهغه ماینې ته
چي د بائن طلاق ورکړی وي ولي هغه هم اوس بالفعل د ده ماینه نه ده،
او داغه رنګه وداسي ښځه ته ظهار نه دي صحیح چي په نکاح فاسده
سره یي په نکاح کړې وي کما مر فی کتاب النکاح.

**پوښتنه**:- دا عقد ولي په نامه سره د ظهار مسمٰی سو، او سره د دې
چي سړی ماینې ته ووایي چي ته پر ما لکه زما د مور نس، یا د مور
ورون داسي یې مثلا دا هم ظهار دي کما سیئاتی؟

**جواب**:- چونکه په عربو کي د اول الامر څخه شائع دا وو چي ماینې ته
یي وویل چي ته یي پر ما لکه د مور شا، او شا ته په عربی کي ظهر
وایي نو ځکه دا عقد په دغه نامه مشهور سو، او په شرع کي که څه هم
ذکر د ظهر نه وي پکښې بلکه د نورو اندامو پکښې وي هم د ظهار په
نامه مسمٰی سو، للعلة المشترکة.

**قال القدوری رحمه الله "واذا قال الزوج لامرئته انت علی کظهر
امی حرمت علیه"** او که وویل مېړه خپلې ماینې ته چي ته پر ما لکه
زما د مور شا، نو ماینه ده ته حرامه سوه.

**فائده**:- که یي داسي وویل چي ستا سر یا لاس چي تعبیر د کل څخه
یي کېږي وشبیهه، او یا یې داسي ورته وویل چي ستا نیمې یا دریمه
چي جزء شائع دي، او یایي پر ځای د ظهر داسي وویل لکه فرج د مور

يا نس د مور، يا كوناتۍ د مور وغير ذالك. او يا يې د مور په ځاي كي
خور، ياعمه يا خاله ياده كړه وغير ذالك من المحرمات الابدية.

**فائده**:- كه يې داسي ورته وويل چي ته پر ما داسي يې لكه ستا خور
دا ظهار نه دي، ولي خوښينه خو ابدي حرامه نه ده. نو په دې ټولو
مذكوره صورتو كي ماينه ورته حرامه سوه. كه دده نيت د ظهار وي او
كه نه وي او كه يې قسم غرض وي هم ظهار دي ولي دا الفاظ په ظهار
كي صريح دي، او حرمت د ماينې په قرآن كريم او په احاديث نبويه ﷺ
كي مفصلاً ذكر سوي قال الله تعالى، والذين يظاهرون من نسائهم الى
آخر الآية"

قال" لايحل له وطيها ولامسها ولاتقبيلها حتى يكفر عن
ظهاره" نو نه دي روا دغه مظاهر مېړه ته وطي د هغې ماينې سره او ده
ته روا نه ده مسه كول د هغې او نه مچه اخيستل د هغې څخه تر هغه
پوري چي كفاره د ظهار يې نه وي ادا كړې.

**پوښتنه**:- چي د ظهار په باره كي په قرآن جيد كي داسي راغلي دي
"من قبل ان يتماسا" يعني كفاره د ظهار به وركوي د مخه تر تماس د
مېړه او ماينې، نو د مس حقيقت خو لمس دي لكن بعض اهل المذاهب
د مس څخه معنا مجازي اخلي چي وطي دي، مونږ وايو چي څه ضرورت
دي چي د مسه څخه معنا مجازي اخلي ولي قرآن پر خپل حقيقت محرم
د لمس دي پر مظاهر باندي.

**سوال**:- نو حرمت د وطي د هغې ښځي په څه شي سره ثابتېږي؟

**جواب**:- وطي او دا غه رنګه مچه اخستل خو د افرادو څخه د مسي
لغوي دي نو ټولـه كـه وطي دي او كه مچه او كه مس دي حرمت يې په

نص د قرآن ثابت دي، هذا حاصل ما في فتح القدير وغيره من كتب الفقة الحنفي، په هدايه كي وايي چي ظهار په جاهليت كي طلاق بائن وو، نو شرعي شريفي د ظهار حكم و تحريم موقت ته راوګرځوي او اصل تحريم يي پر ځاي دي، او انتهاء د تحريم يي كفاره وګرځوله، قال الله تعالى، والذين يظاهرون من نسائهم ثم يعدون لما قالوا فتحرير رقبة من قبل ان يتماسا الى آخر الاية" نو ددې آيت مبارك څخه ثابته سوه چي تحريم د ظهار په كفاره سره پورته كېږي، حكمت الهى په دې كي دادي چي ظهار چونكه يو منكر او بد او دروغ قول دي، نو شرعه شريفه جزاء ومظاهر ته په تحريم موقت سره وركړه لكن چونكه الفاظ د ظهار نه د طلاق بائن صريح الفاظ دي او نه كنايي نو ځكه يي قائل ته د تحريم مؤبد جزاء ورنه كړه، هدايه، درويش.

قال" فان وطئها قبل ان يكفر استغفر الله ولاشيئ عليه غير الكفارة الاولى" او كه چېري وطي كړه هغه ماينه د مخه تر كفاره وركولو، نو طلب د بخښني دي د خداي پاك ﷻ څخه وغواړي او نور پر ده هيڅ شي نسته بېله كفارة اولى يعني نوره جريمه نه لري ولي چي په حديث شريف كي چي روايت يي ابن عباس ﷺ كړي راغلي دي، چي يو سړي د ماينې سره ظهار كړي وو او كفاره يي نه وه وركړې، چي په سپوږمۍ داره شپه كي يي د ماينې په پښو كي پازيبونه ليدلي وه نو شيطان غلبه پر وكړه او جماع يي ورسره وكړه او سحار ونبي ﷺ ته راغلي، او ماجرا يي ټوله ورته بيان كړه عليه الصلوة والسلام ورته وويل "استغفر الله ولاتعد حتى تكفر" يعني طلب د بخښني د خداي ﷻ څخه وكړه او بيا وطي مه ورسره كوه تر څو چي دي كفاره نه وي وركړې، نو

بل شي يې پر ده نه کې لازم که لازم واي علیه السلام به یې بیان ورته کړی وای، کذا فی شروح القدوری.

قال" ولايعاود حتى يكفر" او بله پلا دې وطي نه ورسره کوي تر څو چې يې کفاره نه وي ورکړې.

مسئله:- که سړي د ماينې سره ظهار وکړی، او بیا دی مرتد سو او بیرته یې اسلام راوړی او بیا یې هغه ښځه په نکاح کړه نو په نېز د امام اعظم رحمه الله یې ظهار پاته دي بحاله، او یاران رحمهم الله وايي چې پسله ارتداد یې هغه د مخه ظهار لغوه سو، نیا بیع.

قال" والعود الذی یجب به الکفارة هو ان یعزم علی وطئها" او ګرځېدل چې په قرآن مجید کې ذکر سوي دي چې په هغه سره کفاره لازمیږي، هغه دادي چې دی ټینګ قصد لري چې د ماينې سره به وطي کوم، قال الله تعالی " ثم یعدون لما قالوا" حاصل د کلام د مصنف رحمه الله چې پر هغه مظاهر کفاره سته چې دده قصد او عزم پس له ظهاره داوي چې د ماينې سره به وطي کومه، او که یې چېري قصد ددې وو چې پر ما حرامه سي او قصد د وطي یې هم نه وي بیا کفاره نسته باندي، او که یې بېرته قصد د وطي وکړی بیرته کفاره پر راګرځي، او که یې بیرته دوهم وار عزم د وطي فسخ کړی بیرته کفاره ساقطېږي، ثم وثم، کذا فی الجوهرة.

قال" واذا قال انت علی کبطن امی او کفخذها او کفرجها فهو مظاهر" او که مېړه ماينې ته داسي وويل، ته پر ما داسي یې لکه زما د مور نس، او یا زما د مور ورون، او یا زما د مور کوس، نو دي مظاهر دي، په هدایه کي وايي چې په اصل ظهار کي خو تشبیه وه د ټول

مور سره او دلته تشبیه د هغه اندام سره د مور چي دده کتل وهغه اندام ته حرام دي.

قال" وكذالک ان شبهها بمن لایحل له النظر الیها علی سبیل التابید من محارمه مثل اخته او عمته او امه من الرضاعة" او داغه رنګه مظاهر دي که یي تشبیه د مایني وکړه د هغه چاسره چي ناروا وه وهغې ته کتل، یعني د هغې مخصوصو اندامو ته مګر د همېشه د پاره نه موقت، د محرماتو څخه دده لکه خور، عمه، خاله ، او یا رضعي مور،او یا رضعي خور وغیرها ، وقد مر بعض التفصیل فیه.

قال" وكذالك ان قال راسك علی کظهر امی او فرجك او وجهك او رقبتك او نصفك او ثلثك" او داغه رنګه ظهار دي که مېړه ومایني ته داسي وویل، چي ستا سر پر ما لکه د مور شا ، اویا ستا کوس، او یا ستا مخ، او یا غاړه، او یا ستا نیمئ، او یا ستا دریمه،

دلیل ددې مسائلو دادي، چي د راس لفظ تعبیر د ټوله ذاته څخه په عربي کي کېږي، او داغه رنګه لفظ د وجه په معنا ذات راغلي دي او رقبه هم په معنا د ټول ذات مستعمله ده، او لفظ د فرج په ښځه کي کنایةً د ټوله ذاٸت ددې تعبیر کیدای سي، نو په دې ټولو ګویا ده داسي وویل، انت علی کظهر امی" او نصف او ثلث خو جزء شائع دي نو حکم د ظهار دده څخه وکل ذات ته ساري کېږي لکه څوك چي مایني ته ووایي، نصفك او ثلثك طالق" نو ښځه طلاقېږي، فع، در.

قال" وان قال انت على مثل امى يرجع الى نيته فان قال ارت به الكرامة فهو كما قال، وان قال اردت الظهار فهو ظهار وان قال اردت الطلاق فهو طلاق بائن وان لم يكن له نيه فليس بشيئ" او كه سړي ماينې ته وويل چي ته پر ما باندي په مثل د مور يي، نو رجوع دي وکړه سي دده ونيت ته، يعني ده ته دي وويل سي چي ستا په دغه خبره کي څه مطلب وو يعني مقصد دي څه وو، ولي ده يو کلام مبهم المعنی ووايه نو دی به کشف د خپل مراد کوي، نو که ده وويل چي زما مقصد عزت ورکول ماينې ته وه، نو لکه دی چي وايي هغسي ده، ولي عزت ورکول وچاته په تشبيه سره په عربو بلکه په ټوله اهل لسان کي شائع ده، لکه په پښتو کي يو سړی وبل تهووايي ته داسي يي لکه زما ستر ګي، او که ده وويل چي زما غرض ظهار وو، نو ظهار دي ولي چي ده تشبيه د ماينې وکړه د ټولي مور سره نو په ټوله مور کي خو شا وغيره اجزاء د مور داخل دي لکن څونکه صراحةً تشبيه په اندام سره د مور لکه د شا وغيره نسته نو ځکه نيت ته ضرورت سته كذا فى الهدايه، او كه ده وويل چي زما اراده طلاق وو بيانو طلاق بائن دي، ولي چي د ده غرض تشبيه د مور سره په حرام والي کي مراد وه نو ګويا ده داسي ورته وويل چي انت على حرام كامى" او حرمت بېله طلاق بائن نه راځي، ه، د، او که د لره هيڅ نيت نه وو نو هيڅ شي نسته.

**فائده**:- چي دا قول د امام اعظم رحمه الله دي، او امام ابو يوسف رحمه الله وايي چي دا قول دده ايلاء ده، او امام محمد رحمه الله وايي چي دا قول ظهار دي، امام اعظم رحمه الله وايي چي دا قول د سړي احتمال د تشبيه فى الكرامة لري، او احتمال د تشبيه فى التحريم لري چي طلاق بائن سي،

او احتمال د ظهار يي هم سته او په يوه كي صريح نه دي، نو لازمه داده چي پر نيت دده اعتماد وكړه سي، لكه ټولي كناياتي چي موقوف پر نيت دي كما مر فی الطلاق، نو چي دی هيڅ نيت نه لري نو پر هيڅ شي دلالت نه كوي، بخلاف انت طالق فانه صريح فی الطلاق، وبخلاف انت علی كظهر امی فانه صريح فی الظهار، وبخلاف انت علی حرام كامی، فانه صريح فی الطلاق البائن، ولابی يوسف ومحمد رحمهما الله دلائل مذكورة فی الشروح اعرضنا عنها لكون الفتوی علی قول الامام اعظم رحمه الله.

قال القدوری" ولا يكون الظهار الا من زوجته فان كان ظاهر من امته لم يكن مظاهراً" او نه سي كيدلای ظهار مگر د ماينې سره نو كه سړي د ظهار لفظ مستعمل كي د مينځي سره هغه سړی مظاهر نه دي، اولا لقوله، والذين يظاهرون من نسائهم الآية" نسائهم ماينو ته د خلكو وايي، وثانياً ظهار لكه د مخه چي تېره سوه د جاهليت د وخت د طلاق څخه رانقل سوي دي او مينځي ته طلاق نسته نو ظهار هم نسته، وثالثاً چي حل د وطی په مينځه كي تابع د ملك د رقبې دي، او په منكوحه كي مقصود بالذات دي نو قياس د مينځي پر منكوحه نه كول كېږي په باره كي د ظهار، ه، د.

قال" ومن قال لنسائه انتن علی كظهر امی كان مظاهرا من جماعتهن وعليه لكل واحدة منهن كفارة" كه يو سړي وويل وړ ټولو ماينو ته، يعني دوو درو يا څلور، تاسي پر ما لكه د مور شا ياست، نو دی مظهار د ټولو ماينو دي او پر ده باندي د هري يوې په خاي كي كفاره سته، ولي چي ده نسبت د ظهار وټولو ته وكړي.

قال" وكفارة الظهار عتق رقبة فان لم يجد فصيام شهرين متتابعين فمن لم يستطع فاطعام ستين مسكينا كل ذالك قبل المسيس" او كفاره د ظهار ازادول دي د مريي يعني اولاً او كه يي مريي نه وو يعني طاقت د رانيولو يي هم نه وو نو بيا دي دی روژې ونسي دوې مياشتي پر له پسې،او كه يي طاقت د روژو نيولو نه وو بيادي ډوډۍ وركړي شپېتو (۶۰) مسكينانو ته، او دا ټولي كفارې به مخته تر جماع وي، او مذكوره ترتيب په قرآن مبارك كي صراحة ذكر دي.

مسئله:- مريي چي ازادوي نيت د كفاره ظهار به ورسره يو ځاي كوي او كه يي نيت د كفارې وروسته وكړي، او يا يې نيت ګرسره نه وو كړي كفاره يي نه صحيح كېږي، طحاوى جامع الرموز.

مسئله:- كه د مظاهر پلار مريي وو د يو چا مظاهر رانيوي وروسته يي نيت د كفارې وكي نو د كفارې غاړه يي نه په خلاصېږي ولي د سړي پلار چي مريي وي او زوي يي رانسي هغه خو پخپله ازادېږي، نو مظاهر دي په يوه ټك دوه نبانه نه ولي، درويش.

فائده:- پوه سه چي د عتق او دصوم د كفارې قبل المسيس ړلي خو په نص د قرآن ثابت دي ولي چي په دواړو كي "من قبل ان يتماسا" راغلي دي، او د اطعام په باره كي كه څه هم دا قيد په قرآن كريم كي نسته لكن صاحب هدايه وايي چونكه كفاره ظهار پاي ته رسونكي د حرمت د وطي ده نو لازماً تر وطي تقديم غواړي.

قال" ويجزء في ذالک عتق الرقبة المسلمة والكافرة والذكر والانثى والصغير والكبير" او كافي ده په كفاره د ظهار آزادول د مسلمان مريي او د كافر مريي، او د نر او د ښځي، او د بالغ او كوچني مريي. ولي رقبه چي په قرآن مجيد كي راغلي ده دا ټولو انواعو ته شامله ده. او امام شافعي رحمه الله وايي د كافر مريي ازادول په كفاره كي نه دي، روا په دليل د دې چي كفاره خو حق الله ﷻ دي نو ځرنګه به صحيح وي صرف د حق الله و عدو الله ته چي كافر دي، لكه چي د زكوة وركول وكافر ته نه دي روا ددې جواب صاحب الجوهره داسي وركړي دي چي رقبه د ظهار خو په قرآن كريم كي مطلق ذكر سوې ده د قيد څخه د ايمان او قياس پر زكوة يې نه دى روا ولي چي شرط دقياس دا دى چي په مقيس كي به نص نه وي كما تقرر في الاصول او دلته خو په مقيس كي چي كفاره ظهار د نص قرآني موجود دى.

**درويش وايي** - چي په بعضي كفاراتو كي لكه كفاره د قتل خطا چي د كافر آزادول نه دي روا په هغو كي قرآن پاك داسي ويلي دي "فتحرير رقبة مومنة"

قال" ولا يجزى العمياء ولا مقطوعة اليدين و الرجلين" او كفايت نه كوي په كفاره كي په دواړو سترګو ړوند مريى يا هغه مريى چي دواړه لاسونه يې پرې وي او دواړه پښې يې هم پرې وي، ولي چي جنس منفعت چي په مريي كي فوت دى هغه مريى كالعدم دى، نو په راندو منفعت د ليدو فوت دى او چي لاسونه يې پرې وي او پښې يې هم پرې وي په هغه كي منفعت د تګ راتګ فوت دى، ف. درويش

**پوه سه**:- چي پښې د سړي دواړي پرې وي، لکن لاسونه يي دواړه روغ وي په هغه کي جنس منفعت د لاسو خو نه دي فوت کما هو الظاهر، او د پښو منفعت که څه دواړي پرې نه وي فوت والي چي دي په دواړو بغلو کي لکړي ونسي تګ راتګ کولای سي، او که يي لاسونه دواړه پرې وه فقط په هغه جنس منفعت د لاسو فوت دي، وهذا الاحتمال لم يذکره المصنف رحمه الله لظهوره فافهم.

قال" ويجوز الاصم" او په کفاره کي کوڼ مريي روا دي لکن داسي کوڼ چي په زوره نعره پر وکړه سي اوري يي او که چېري مورزاده کوڼ وو چي ګونګئ به نو هم وي چي په عربي يې اخرص بولي هغه نه دي روا، لانه فائت جنس المنفعة، جوهره.

**مسئله**:- که يي غوږونه چا ځندي پرېکړي وه هغه روا دي، لانه فائت الزينة لافائت المنفعة کما هو الظاهر.

**مسئله**:- او که يي پزه ځندي پرې کړې وه هغه روا دي ولي چي د پزي په پرې کېدو سره ښائست د مخ ځي، منفعت يي باقي دي چي بوېول د شي دي، او که يي ذکر ځندي پرې کړي وو هغه روا دي، ولي چي ذکر ګرسره نه لري لکه مينځه خو روادې نو چي پرې وي خو په طريق اولی روادي. ح.د

قال المصنف رحمه الله " ويجوز مقطوع احدى اليدين واحد الرجلين من خلاف" او روا دي په کفاره د ظهار کي هغه مريي چي يو يې لاس پرې وي او يوه يې پښه، لکن د مخالف جانب څخه يعني لاس د ښي خوا څخه او پښه د بلي خوا څخه، ولي چي داسي سړی نه د جنس منفعت څخه د لاس چي ټينګول د شي دي محروم دي، او نه د پښو د

منفعت څخه چي تک راتګ دي، ولي چي د پرې لاس په بغل کي لکړه ونسي او پر هغه روغه پښه تلای سي كما هو المعلوم بالتجربة، او كه يې لاس او پښه د يوه طرف څخه پرې وه بيا د جنس منفعت څخه د پښو محروم دي، كه څه هم د منفعت د لاس يې چي بطش دي محروم نه دي كما يدل عليه التجربة.

**فائده سنيه**: يوه سه چي بحث او مسائل د مريانو په كفاراتو كي او يا كتاب الاعتاق، او يا كتاب المكاتب، يا كتاب المدبر، يا كتاب ام الولد، وغيرها من المسائل المتعلقه بالعبيد والاما، چي د قديم الزمان الى يومنا پوري د فقهاء مجتهدينو او علماء نامدار رحمهم الله په كتابو كي د مذاهبو اربعه وو مسطور دي داده هغه وخت اوزمان سره سمون لري چي اهل اسلام په غزواتو مصروف وه د جهاد في سبيل الله كارنامې جاري وي، او د كفارو بنديان نر او ښځي به غلامان او مينځياني د مسلمانانو په لاس كي وه، او په اوسني زمانه كي چي كفار غالبه سوه او د جهاد او غزا سلسله صرف د دفاع د پاره جاري ده، او د مريتوب او مينځي توب سلسله په ټوله اسلامي نړۍ كي قطعه سوه، نو ددغو مسائلو زده كړه په نني زمانه كي صرف او صرف د پاره د تبرك په اثارو د مجتهدينو رحمهم الله جاري ده، او په اميد ددې چي امكان لري چي خداي ﷻ به بيرته اسلام ته غلبه پر كفارو متنوعه وركړي او بيرته به از سر نو سلسله د غلامۍ جاري سي، او فوق الذكر مسئلو ته به ضرورت پيدا سي.

قال" ولا يجوز مقطوع ابهامى اليدين" او نه ده روا په كفاره كي هغه مريي او مينځه چي دوې بتې ګوتي يې د دواړو لاسو پرې وي ولي

ټينګول د شي چي جنس منفعت د لاسو دي په بټهو ګوتو پوري تعلق لري.

قال" ولا يجوز المجنون الذى لا يعقل" او نه دي روا په كفاره كي هغه ليونۍ چي هيڅ عقل نه لري، ولي د ټولو اعضاوو څخه نفع اخيستل موقوف پر عقل ده، نو ليوني فاقد د ټولو منافعو دي.

قال" ولايجوز عتق المدبر وام الولد" او نه دي روا عتق د مدبر او ام الولد په كفاره كي د ظهار.

**پوهه**:- چي مدبر هغه مريي دي چي بادار ورته ووايي چي زما د مرګه پس ته آزاد يې، او ام الولد هغه مينځه ده چي د سړي يعني د بادار څخه ولد لري چي هغه هم پسله مرګه د بادار پخپله ازادېږي نو چونكه دوي دوه مستحق د عتق دي، او همېشه توب د مريي توب او مينځي توب په دوي كي ممكن نه دي نو رق ددوي ناقص دي، او رقبه د عتق ظهار خو مطلق ذكر سوې ده او قانون دادي چي مطلق رجوع وفرد كامل ته كېږي، نو ددې وجهي ذ دغو دوو عتق په كفاره ظهار كي نه دي روا، كذا فى الهدايه والعنايه مع زيادة من العبد العاصى محمد عبيد الله القندهاري الايوبى غفرله البارى.

قال القدورى ة" والمكاتب الذى ادىٰ بعض المال فان اعتق مكاتبا لم تود شيئا جاز" او داغه رنګه نه دي روا عتق د هغه مكاتب چي بعض مال يي مولى ته وركړي وي او بعض مال پر پاته وي.

**پوهه**:- چي مكاتب هغه مريي ته وايي چي د بادار سره عقد وكړي چي زه به تاته مثلا زر روپۍ دركړم په دوه كښته مثلا ما ازاد كړه مولى دا عقد قبول كړي نو دغه مريي ته مكاتب وايي چي دى يداً حر دي

یعني خپل په لاسو به د خپل بدل الکتابت د پاره خواري کاږي، او رقبۀ مریي دي ولي علیه السلام وایي چي، المکاتب عبد ما بقی علیه درهم اذا عرفت هذا" نو پوه سه چي هغه مکاتب چي یو کنبت روپۍ یي بادار ته ورکړي وي، د هغه عتق په کفاره کي نه دي روا ولي چي عتق د کفاره باید محضاً لله وي، او دلته خو مولی یو څه روپۍ هم اخیستي دي، نو خالص د پاره د خداي ﷻ نه سو عتق ددغه مکاتب، او هغه مکاتب چي هیڅ بدل الکتابه یې مولی ته نه وي ورکړي د هغه عتق محضاً لله دي نو په کفاره کي درېږي، ق، درویش

قال القدوري رحمه الله " فان اشتری اباه او ابنه وینوی بالشراء الکفارة جاز عنها" او که چا رانیوي پلار خپل یعني چي د یو چا مریي وي، او یا زوي خپل او نیت یي وو په رانیولو کي د کفارې روا دي عتق ددوي د کفارې څخه.

**پوه سه**:- چي نیت کفارې به یې د شراء سره یو ځاي وي او که یې وروسته نیت وکړي بیا د کفارې غاړي نه په خلاصېږي کما مر من قبل.

قال" وان اعتق نصف عبد مشترک من الکفارة وضمن قیمت باقیة فاعتقه لم یجز عند ابی حنیفة رحمه الله" او که چا ازاده کړه نیمه حصه د مشترك مریي د ده او د بل چا د کفارې څخه د ظهار او وروسته د هغې بلي حصې تاوان وشریك ته ورکړه او هغه حصه یې هم پسي ازاده کړه، د کفارې غاړي نه په خلاصېږي په نیز د امام اعظم رحمه الله ولي چي عتق تجزیه او تقسیم قبلوي په نېز د ده رحمه الله یعني چي د یوه مریي نیمه حصه دی ازادوي او نیمه حصه مریي وي، نو د نیمي حصې په ازادولو سره هغه بله حصه د شریك ناقصه سوله ولي

هغه شريك د همېشه لپاره خپله حصه مريي نه سي ساتلاى بلكه يا به معتق شريك ورده ته ضمان د ده د حصې ورکوي او پر هغه دا بله حصه هم ازادېږي كه معتق غني وو، او يا به د مريي څخه طلب د سعي كوي چي په پيسو برابرولو سره ته خپله نيمه حصه زما څخه ازاده كړه، نو معتق چي مريي رانيوي هغه نقصان دده ملك ته رانقل سو نو چي ده داحصه ازاده كړه نو ده پوره كامل مريي د كفارې څخه نه كي ازاد بلكه نصف كامل او نصف ناقص يي ازاد كړي، نو ځكه د كفارې څخه نه درېږي.

قال المصنف رحمه الله" وقال ابو يوسف ومحمد رحمهما الله تعالى يجزيه ان كان المعتق موسرا وان كان معسرا لم يجز"

او امام ابو يوسف او امام محمد رحمهما الله وايي چي د كفارې غاړي په خلاصېږي كه معتق غني وو، او كه معتق مسكين وو د كفارې غاړي يي نه په خلاصېږي، په دليل ددې چي غتق په نېز د يارانو رحمهم الله تجزيه نه قبلوي، نو چي معتق نيم مريي ازاد كړي نو ټوله مريي ازاد سو نو چي معتق غني وي او د هغې نيمي تاوان وشريك ته وركړي نو ټوله مريي دده پر ملك بې نقصانه ازاد سو نو د كفاره څخه درېږي، او چي معتق مسكين وي هغه باقي حصه پر ده ازاده سوه ببله عوضه د ده د خوا ولي د هغې حيصې په ازادي كي مريي خپله سعي كوي، من. درويش

قال" وان اعتق نصف عبده عن كفارته ثم باقية عنها جاز"

او كه سړي ازاد كړي نيم مريي د كفارې څخه، وروسته يې هغه بل نيمئ هم ازاد كړي د كفارې څخه روا دي، يعني زمنوږ د ائمه وو ثلاثه وو په نېز رحمهم الله اما په نېز د يارانو خو لكه په مسئله سابقه كي معتق غني وي،

واما په نېز د امام اعظم رحمة الله عليه كه نقصان په حصه باقيه كي راغلي خود معتق پر ملك په سبب د اعتاق عن الكفارة راغلي، ومثل هذا لا يضر الكفارة بخلاف المسئلة السابقة فان النقصان قد حصل على ملك شريكه فافترقا، جوهره، درويش.

قال" وان اعتق نصف عبده عن كفارته ثم جامع التى ظاهر منها لم يجز عند ابى حنيفة رحمة الله عليه" او كه يي ازاد كړي مظاهر نيم مريي خپل د كفارې څخه او بيا يې جماع وكړه د هغې ښځي سره چې ده ظهار ورسره كړي وو، او وروسته يې هغه بله حصه هم ازاده كړه نه دي روا په نېز د امام اعظم رحمة الله عليه ولي دى عتق ته تجزيه روا بولي كما مرنو دې سړي خو نيم مريي پسله جماعو ازاد كړي او سره ددې چې عتق به بعد المسيس وي په نص د قرآن مجيد، او ياران وايي او ائمه ثلاثه رحمهم الله هم چې د كفارې غاړه په خلاسي سوي ولې چې ددوي ټولو په مذهب كي عتق تجزيه نه قبلوي نو ده چې نيم مريي قبل المسيس ازاد كړي ګويا ګرده يي قبل المسيس ازاد كړي.

قال" فان ان لم يجد المظاهر ما يعتقه فكفارته صوم شهرين متتابعين ليس فيها شهر رمضان ولا يوم الفطر ولا يوم النحر ولا ايام التشريق" او كه چېري مظاهر نه درلودي مريي چې ازاد يي كړي، نو كفاره د ظهار دده دوې مياشتي روژې دي پرله پسې چې به هغو دوو مياشتو كي به د روژې مياشت نه وي او نه به د كوچني اختر ورځ او نه به د لوي اختر ورځ او نه به ايام د تشريق پكښې وي.

**پوه سه**:- چي تتابع د دوو مياشتو خو په نص سره د قرآن ثابته ده او په مياشت کي د روژې جوړ مقيم سړي ته بله روژه لکه د کفارې نه ورسره ځائېږي، او د دوو اخترو ورځي او ايام تشريق کي روژه ممنوع ده نو کامل روژه چي د کفارې ده ددغو ورځو په روژه سره نه اداکېږي، نو که مظاهر د دغو ورځو روژې په کفاره کي داخلي کړي نو تتابع د شهرينو فوت سوه، چي په نص د قرآن مشروط وه.

**مسئله**:- که د ښځي ځخه په قصد روژه وخوړل سوه، او يا قتل خطاء ځندي سوی وو، او دې کفاره د روژو دوې مياشتي چي په هغو کي هم تتابع شرط ده نيول يي، او حيض ورغلي هغه تتابع يې تاوان نه لري ولي چي دا دوې مياشتي متتابعين د حيض خالي نه سي پيداکولای نو افطار ددې ضروري دي، الضرورات تبيح المحضورات قاعده کليه.

**مسئله**:- که ښځي روژې د کفارة اليمين نيولې او حيض ورغلي نو روژې به د سره راګرځوي ولي چي مده د روژو د کفارة اليمين خو لږ ده، بېله حيضه هم پيدا کېږي.

**مسئله**:- که ښځي مثلا د کفارة الظهار روژې نيولې نو دا لنګه سوه، نو چي د نفاس شپې يي تېري سوي بېرته به روژې د سره راګرځوي، او يا په مابين کي د روژو ناجوړې سوه چي روژه يې نه سوه نيولای نو چي جوړه سي هم به روژې د سره راګرځوي، ولي چي نفاس او ناجوړي په دوو مياشتو کي نادره پېښېږي او بناء د احکامو شرعيه وو پر نوادرو نه کېږي بلکه بناء يې پر اعم اغلب ده، تبين،ودربش.

قال القدوری رحمه الله " فان جامع التی ظاهر منها فی خلال الشهرين" او که جماع وکړه مظاهرد هغه مابنې سره چي دې ته يي د

ظهار الفاظ ويلي وه، په مابين کي ددوو مياشتو روژو، په عنايه کي وايي چي د قيد د التی ظاهرا فائده داده چي که مظاهر د بلي مابين سره جماعي وکړي، نو که داسي وطي وي چي تتابع د روژو يې باطله ول لکه جماع د ورځي په قصد سره نو د سره نيول د روژو لازم دي بالاتفاق، او که داسي وطي وي چي تتابع د روژو يې د مابين څخه نه وړه لکه وطي د ورځي لکن په هېره او يا وطي د شپې که په قصد وي که په هېره، نوچونکه تتابع د روژو نه قطع کېږي نو استيناف نسته بالاتفاق.

قال" ليلاً عامداً او نهاراً ناسياً" د شپې په قصد سره او د ورځي په هېره سره، په عنايه کي وايي چي د ورځي وطي يې ولي په هېره سره مقيد کړې؟ ولي که يې د ورځي په قصد سره وطي وکړې نوروژې د سره راګرځول بالاتفاق پر مظاهر لازم دي.

**پوښتنه**:- چي د شپې د قصد قيد اتفاقي دي، ولي چي د شپې وطي په عمد او نسيان کي فرق نه کوي ولي چي روژه نه په فاسدېږي نو تتابع نه قطع کېږي.

قال" يستانف عند ابي حنيفة ومحمد رحمهما الله"

روژې به د سره راګرځوي په نېز د امام ابو حنيفه او امام محمد رحمه الله، او قاضي ابو يوسف رحمه الله وايي چي شرط د استيناف د روژو فساد د روژې دي نو که د شپې يا د ورځي ناسياً وطي وکړي استيناف لازم نه دي، وفی البحر الرائق، وحاشية الطحطاوی رحمه الله علی الدر المختار، چي صحيح قول د طرفينو رحمه الله دي، ولي چي مامور به په قرآن مجيد کي روژې ددوو مياشتو پر له پسې چي د جماعو څخه به خالي وي، نو که مظاهر وطي وکړي په مابين کي د دغو دوو مياشتو نو کفاره قبل

المسيس نه سوه چي مامور به ده. او كه يي د ورځي روژه ماته كړه تتابع د روژو د مابين څخه ولاړه.

قال" فان افطر يوما بعذر او بغير عذر استانف" نو كه يي روژه ماته كړه يوه ورځ يعني په قصد سره كه په عذر سره وي لكه چي مريض سي، او كه بېله عذره وي نو روژه به د سره راګرځوي بفوات التتابع.

قال" وان الظاهر العبد لم يجز في كفارته الا الصوم فان اعتق المولى عنه او اطعم لم يجز" او كه مريي ظهار وكړي د ماينې سره، نو نه ده روا كفاره د هغه مګر روژې، ولي چي مېړه يې اهل د ملك نه دي كه يي بل سړي تمليك ورته وكړي هم دى يې ملك نه ګرځي لان مايده للمولى، او كه مالك دده د خوا مريي ازاد كړي او يا ډوډۍ وركړي هم دده غاړي نه په خلاصېږي ولي چي كفاره خو عبادت دي نو فعل د بل سړي فعل دده نه ګرځي، مجمع الانهر.

قال" فان لم يستطع المظاهر الصيام اطعم ستين مسكيناً او يطعم كل مسكين نصف ساع من بر او صاعاً من تمر او شعير او قيمتك ذالك" او طاقت نه درلودي مظاهر د روژو نو اطعام دي وركړي شپېتو مسكينانو ته، لقوله تعالى "فان لم يستطع فاطعام ستين مسكينا.

**پوه سه**:- چي لفظ د اعطاء غالباً په تمليك كي مستعملېږي، يعني چي هر مسكين ته خپله نيمه كاسه د لاسه وركړي، او لفظ د اطعام په تمليك او اباحة دواړو كي مستعملېږي اباحت معني دا ده چي مسكينان

مېلمانه کړي او ډوډۍ ورته کښېږدي چې وېخوري، نو مصنف چې لفظ د اطعام ووايي او اعطاء لفظ يې نه ووايي اشاره يې وکړه چې په کفاره کې تمليك او اباحة دواړه روا دي، برجندي، او لفظ د مسکين يې د د دې لپاره ووايې چې غني ته يې اطعام په کفاراتو کې که تمليکا روا دي او نه اباحة، ولې چې په قرآن مجيد کې لفظ د "ستين مسكيناً" راغلي دي.

**مسئله**:- که چا مال خو درلودي لکن پوروته پر باندې وه هغه هم مسکين دي کفارات ورته روا دي، بدائع، او ورکوي به هر مسکين ته نيمه کاسه يعني دوه کيلو د غنمو يا اوړه د غنمو، او يا يوه کاسه د خرما، او يا يوه کاسه د اوربشو او يا قيمت د دغو مذکوره شيانو به مسکينانو ته ورکړي، قياسا على صدقة الفطر حيث يجوز فيها دفع القيمة.

قال المصنف رحمة الله عليه " فان غداهم وعشاهم جاز قليلاً كان ما اكلوا اوكثيراً" او که يې غرمه ډوډۍ ورکړه وشپېتو (۶۰) مسکينانو ته او ماښام يې هم ورکړه رواده که لږ تر مقدار د نيمې کاسې دوي وخوري، او که ډېره وخوري.

**پوهه**:- چې په بعضو نسخو کې د قدوري داسې راغلي دي "وغشاهم" هغه نسخه غلطه ده ولې تغديه بېله تعشيه وبالعکس د کفارې په ځاي کې نه درېږي، كذا في المبسوط، او د امام اعظم رحمه الله څخه داسې روايت هم راغلي دي که يې تغديه شپېتو مسکينانو ته ورکړه، او تعشيه يې نورو شپېتو مسکينانو ته ورکړه د کفارې غاړه بې نه په خلاصېږي.

**فائده**:- امام شافعي رحمه الله وايي چي په كفاره كي تمليك لازم دي، او اباحة كافي نه دي، قياسا على الزكوٰة وصدقة الفطر، او بل دليل يې دادي چي په تمليك سره هر حاجت چي فقير لري په دفعه كېږي بخلاف الاباحة، په هدايه كي وايي چي قياس د كفارې پر زكوٰة او يا پر صدقة الفطر نه دي صحيح ولي چي په زكوة كي خو "اتو الزكوٰة" راغلي دي ايتاء تمليك ته وايي، او په صدقة الفطر كي اداء لفظ راغلي دي هغه هم تمليك ته وايي او په كفاره كي اطعام لفظ راغلي دي چي هغه عام دي اباحة او تمليك دواړو ته شامل دي بلكه ډېر استعمال يې په اباحة كي دي، آه مع زيادة.

قال" وان اطعم مسكينا واحدا ستين يوما اجزئه" او كه مظاهر اطعام وركړي يعني كه تمليكا يا اباحة وي ويوه مسكين ته شپېته ورځي رواده، يعني د كفارې غاړه په خلاصېږي، دا زمونږ مذهب دي، او امام شافعي رحمه الله وايي چي ستين مسكينا په قرآن كريم كي نصاً راغلي دي، نو شپېته (۶۰) كسان لازم دي، مونږ وايو چي د مسكين د هري ورځي حاجت عليحده دي، نو دا يو مسكين په دوهمه ورځ كي لكه بل مسكين دي، نو بناء على هٰذا دا يو مسكين شپېته ورځي لكه شپېته مسكينان دي، نو په اعتبار ددې چي شپېته نفره منصوص دي مونږ يې دفعه ويوه مسكين ته د ټولي كفارې روا نه بولو كما سيئاتي ګويا زمونږ په نېز د شپېتو مسكينانو څخه مراد عام دي كه حقيقة وي شپېته وي او كه حكما.

قال المصنف رحمه الله " وان اعطاه فى يوم واحد لم يجزه الا عن يومه" او كه يې وركړه ومسكين ته ټوله كفاره نه ده روا مګر د يوې

ورځي د پاره، ولي چي مظاهر خو مامور دي په رد د شپېتو وځو ولم يوجد.

قال" وان قرب التى ظاهر منها فى خلال الاطعام لم يستانف" او كه مظاهر نزدېكت وكي يعني وطي يې وكړې د هغه ښځي سره چي ده ظهار كړى وو د هغې سره او دا جماعي په مابين د اطعام وې نو اطعام د سره راګرځېدل نه غواړي، ولي چي د اطعام په باره كي قرآن مطلق دي يعني "من قبل ان يتماسا" نسته پكښي.

**سوال:**- نو ولي مونږ اطعام قبل المسيس واجب بولو؟

**جواب**:- په سبب ددې چي شايد مظاهر به قادر سي پر اعتاق يا پر روژو، محمع الانهر

قال: ومن وجب عليه كفارتا ظهار فاعتق رقبتين لا ينوى لاحدهما بينتها جاز عنهما وكذالك ان صام اربعة اشهر او اطعم مائة وعشرين مسكينا جاز" او كه پر سړي واجبې سوې دوې كفارې د ظهار، يعني د دوو ماينو سره يې ظهار كړي وو، نو ده دوه مريان آزاد كړه ددغو دوو كفارو د پاره مګر نيت د تعين د مريي يې ونه كړي، يعني دا مريي د فلانۍ ماينې د ظهار د پاره، او دا مريي د فلانۍ ماينې د ظهار د پاره دي، رواده د دواړو كفارو څخه، ولي چي جنس د كفارو يو دي نو حاجت وتعين ته نسته، پر خلاف ددې چي يوه كفاره ظهار پر لازم وي او بله كفاره د قتل خطاء پر لازمه وي او دى دوه مريان آزاد كړي او نيت د تعين ونه كړه هغه نه دي روا، ولي جنس د كفارو مختلف دي، فلا بد من نية التعين، او داغه رنګه روا دي كه يې څلور

میاشتي روژې ونیولې او یا یې یوسل و شپېتو (۱۶۰) مسکینانو ته ډوډۍ ورکړه د دواړو کفارو په ځای کي ده، والدلیل مامر چي جنس د کفارو یو دي.

قال" وان اعتق رقبة واحدة عنهما او صام شهرین کان له ان یجعل ذالك عن ایتهما شاء" او که مظاهر د دوو ماینو یو مریي آزاد کړي د دواړو کفارو څخه، او یا یې دوې میاشتي روژې ونیولې یعني د دواړو څخه، نو د دواړو غاړي خو یې نه په خلاصېږي لکن دی اختیار لري چي وګرځوي دغه یوه کفاره د هري ماینې د ظهار څخه چي یې ګرځوي، او امام زفر رحمه الله وایي چي دغه کفاره د یوې څخه نه صحیح کېږي، دی وایې چي دا یوه کفاره چي پر دواړو تقسیم کړي نیمه کفاره وهري یوې ته رسېږي، ا نیمه کفاره خو باطله ده، نو یوه کفاره هم د مېړه د زیمې څخه نه ساقطېږي. دی قیاس پر هغه مسئله کوي چي یو سړی یو مریي د کفاره ظهار او د په قصد روژه ماتولو په باره کي نو خو د یوې کفارې غاړي نه په خلاصېږي، مونږ وایو چي دا قیاس مع الفارق دي ولي په مانحن فیه کي خو جنس یو دي، او په مقیس علیه کي خو جنس مختلف دي فلا یقاس بینهما فافهم.

## ابیات متفرقه

بشنو ازني چون حکایت میکند " از جدائیها شکایت میکند
هر کسي که دور ماند از اصل خویش" باز جوید روزه گار وصل خویش،
مثنوي معنوي.

احب الصالحین ولیس منهم " لعل الله یرزقني صلاحا ، محقق رباني

آے تھے ہم مثل بلبل سیر گلشن کرچلے " دیکه مالی باغ اپنا ہم تو اپنے گھر چلے دنیا اور آخرت.

همت بلند دار که نزد خدا وخلق به باشد بقدر همت تو اعتبار تو، مرزا غالب.

اگر بهر سر موي دو صد هزار باشد" هنر بکار نیاید که بخت بد باشد، احوال معاصرین.

دا باران چي پر همه مځکو اوري " مشرف کي ذات د کیمیا ولي، رحمان

عمر تېر سو په تقریر او په تحریر کي" خداي ﷻ به کله یادوم زه په ضمیر کي عاصي

چو بینم دین احمد در غریبي " دلم سوزان از چشم خون جاري، حمید مرحوم

# کتاب اللعان

دا کتاب په بیان کي د احکامو د لعان دي چي یوه شرعي مسئله ده لکن په اوسني زمانه کي لعان دغه مسئله هیڅ وجود نه لري، یعني که سبب د وجوب د لعان لکه راچي به هم سي پیدا هم سي، لکن تر قضاء پوري خلګ نه رسوي.

**پوښتنه**:- په لعان کي (چي په دې کتاب کي به راسي عنقریب) چي په دې مسئله کي لعان هم سته او غضب هم سته نو ولي یې یوازي لعان په عنوان کي د کتاب ذکر کړي دي؟

**ځواب**:- چونکه لعان د جانبه ښځه د نر دي، او شروع هم د نر څخه کېږي او غضب د جانبه ښځه د ښځي دي او دغې ښځه وروسته پوښتنه کېږي نو هرشي چي په وجود کي د مخه وي په ذکر کي هم باید د مخه سي

**سوال**:- دواړه به يې ذکر کړي واى؟

**جواب**:- چونکه ددوي دوو تر مابين تلازم وو نو يې ځکه په يوه سره اکتفاء وکړه.

**پوه سه**:- چي لفظ د لعان مصدر دي معنا يې ترټل او لېري کول دي، حتى چي معنا د لعنة الله على ابى جهل مثلا " لېريوالي دي دده د رحمت عام څخه د خداي ﷻ نو ځکه پر مسلمان لعنت ويل ناروا دي.

قال القدوري رحمه الله " اذا قذف الرجل امرئته بالزنا" که يو سړي خپل مايني ته ښکنځل وکړه په زنا سره، يعني نسبت د زنا يې ورته وکړى چي زنا کاره يې، مراد يې د زنا څخه په پښتو کي چي مثلا ته مرداره يې، يا رنډۍ يې، يا خلګو ته کوس ورکوې.

**پوه سه**:- چي په عوامو کي د پښتو دا الفاظ ډېر و مايني ته مستعملېږي، لکن چونکه ماينه ددې طاقت نه لري چي مرافعه وقاضي ته وکړي، نو ځکه د لعان راتلونکي مسئلې اوس نسته، لکن دا الفاظ ګناه کبېره ده نو پر سړي لازمه ده چي توبه پر وکاږي.

قال" وهما من اهل الشهادة والمرئة ممن يجد قاذفها" او مېړه او ماينه دواړه به اهل د شهادة وي يعني اداء د شهادة به يې قاضي منظوره وي، نو ځکه قذف په مابين کي د مريي مېړه او د مينځي مايني تر مابين نسته، او ښځه به داسي وي چي قاذف به يې په حد کېږي يعني چي بېګانه سړى مذکوره الفاظ ودې ته ووايې.

**تفريع**:- که يو سړي ښځه په نکاح فاسد سره په نکاح کړې وه او دخول او وطي يې ورسره کړي وې وروسته يې مذکوره الفاظ ورته وويل قذف تر مابين نسته، او يا يو سړي کونډه ښځه په نکاح کړې وي او د هغې

سره زوي یا لور مجهول النسب ورسره وي نو د هغو تر مابین هم لعان نسته، حاصل عنایه.

**مسئله**:- وجوب د لعان پر مېړه موقوف دي پر مطالبه د ماینې، ولي چي دا نسبت د زنا ودې ته پېغور او رنګ بدتیا ددې ده نو دفعه یې پر مطالبه د دې موقوفه ده کما سیئاتی، نو ځکه دروېش وویل چي په پښتنو کي رواج د قذف پاته دي.

قال" او نفی نسب ولدها" یا یې نفي کړی نسب د عیال د ماینې د خپله ځانه څخه، یا یې داسي ورته وویل چي دا ستا عیال ولد الزنا دي چي په پښتو کي یې ارمني بولي، او یا یې داسي ورته وویل چي دا ستا عیال زما څخه نه دي، ولي ده چي نفي د ولد ددې د ځان څخه وکړي نو قاذف سو ودې ته، او قذف سبب د لعان دي.

**پوښتنه**:- په نفي سره د ولد د ځان څخه خو دي قاذف بالزنا ومایني ته نه دي، ولي چي احتمال ددې سته چي دا ولد دي د بل چا وي، او دا دي زانیه نه وي لکه دا چي په شبه د ماینې بل چا وطي کړې وي؟

**جواب**:- دا احتمال خلاف المتبادر دي، ولي چي فقهاء رحمهم الله په اجماع سره وايي، چي که یو سړي وبل ته وویل چي ته د خپل پلار زوي نه یې، نو دی قاذف دي مع ان الاحتمال المذکور موجود فیه ایضاً.

**پوښتنه**:- چي په بنایه کي وایې چي د غه نفي د ولد به د مخه تر اقرار په ولدیت سره وکړي او داغه رنګه د مخه تر مبارکۍ ورکولو نو د خلګو او ده د خوا قبلولو چي دا قبول د مبارکیو په حکم کي د اقرار بالنسب دي، ولي چي په دې دوو صورتو کي خبره دده یعني د ولد د ځان څخه نفي کول قذف موجب د لعان دي.

قال" وطالبته المرئة بموجب القذف فعليه اللعان"
او چي طلب کي ښځي د حکم د قذف چي حد دي نو پر مېړه لعان لازم دي.

**پوه سه**:- چي طلب د ښځي ددې لپار غواړي چي دا خو حق ددې چي پېغور د زنا د ځانه دفع کړي، نو چي دا يې طلب نه کوي نو پر مېړه لعان نسته، ط.

**مسئله**:- طلب د ښځي مشروط په دې دي چي په مجلس کي به د قاضي وي، بحر، بدائع.

**مسئله**:- فوراً طلب ددې شرط نه دي او ددې په سکوت سره ددې حق نه باطلېږي که څه دراز مده ساکته وي ولي چي ډېره مده تېرېده سره حد قذف او قصاص نه باطلوي، اس، منح.

قال" فان امتنع حبسه الحاكم حتى يلاعن او يكذب نفسه فيحد" او که چېري مېړه وويله چي زه لعان نه کوم نو حاکم دې بندي کړي تر هغو چي يا لعان ته اماده کېږي، او يا ووايي چي ما پر ماينې دروغ ويله، نو که يې داسي اقرار وکړي نو قاضي دي ده ته حد قذف ورکړي، دليل د جبس دادي چي دا لعان د ښځي د خوا پر ده حق مستحق دي او دی يې هم پر دفعه قادر دي، نو تر هغو به بندي وي چي يا د ښځي د حق غاړه په لعان باسي او يا وحد قذف ته تيارېږي په اقرار د دروغو، حاصل جوهره.

قال القدوري رحمة الله عليه" فان لاعن وجب عليها اللعان فان امتنعت حبسها الحاكم حتى تلاعن او تصدقه فتحد"

او که مېړه کلمات د لعان چي ژر به راسي ان شاء الله وويلې، نو بيا واجب ده پر ښځه کلمات د لعان او که دې منع وکړه د لعان ځخه حاکم دي دا بندي کړي ولي چي پر دې باندي د مېړه حق باندي سو تر هغو دي دا بندي وي چي يا دا لعان کوي، او يا ووايې چي زمامېړه رشتيا ويل يعني ما زنا کړې ده، نو به دې ته حد ورکړه سي يعني حد د زنا.

قال" وان كان الزوج عبداً او كافراً او محدوداً فى قذف فقذف امرئته فعليه الحد" او که مېړه کافر وو، صورت يې دادي چي مېړه او ماينه دواړه کافران وه او ښځي اسلام راوړي، او مېړه ودې ته قذف وکړي يعني نسبت د زنا، د مخه تر دې چي پر ده اسلام عرضېږي، عنايه، نو پر مېړه يې حد قذف لازم دي يعنيلعان نسته، ولي چي کافر اهل د لعان نه دي چي اهل د شهادت نه دي نو موجب اصلي د قذف دي پر ده جاري سي چي حد دي، او داغه رنګه چي مېړه يې مريي وي نوچونکه اهل د شهادت نه دي نو د لعان اهل هم نه دي نو اصلي حکم د قذف چي حد دي لګيږي، او يا داغه مېړه ته يو وار دمخه حد قذف ورکړه سوي وي نو چونکه دی اهل د شهادت نه دي ولي چي د محدودين فى القذف په باره کي خداي ﷻ وايې "ولاتقبلوا لهم شهادةً ابداً" نو اهل د شهادت نه دي چي په لعان کي شرط دي نو حکم اصلي د قذف چي حد دي پر ده دي جاري سي، والله اعلم بالصواب، درويش.

قال القدوري رحمه الله" وان كان الزوج من اهل الشهادة وهى امة او كافرة او محدودة فى قذف او كانت ممن لا يحد قاذفها فلا حد عليه فى قذفها ولا لعان" او که مېړه اهل د

شهادت وو يعني مسلمان وو او مريي نه وو او محدود فی القذف هم نه وو لکن مابنه يې مينځه وه چي اهل د شهادت نه وه او يا کافره وه يعني د اهل کتاب ښځه او يا ښځه محدود فی القذف گرځېدلې وه د مخه او يا ښځه داسي وه چي ددي قاذف په حد نه کېدي يعني يا کوچنۍ وه يا لېونۍ وه او يا مشهوره زانيه وه، نو پر مېړه نه حد سته نه لعان په قذف د مذکوره ښځو.

**پوه سه**:- حد چي نه سي کيدای پر مېړه په دې سبب چي اصلي حکم د قذف د مېړه په خوا لعان وو زمونږ په نېز نو حد ته هلته تګ کېږي چي لعان دده د خوا متعذر وي او په مذکوره مسئلو کي خو دده د خوا حد متعذر نه دي ولي چي دی اهل د شهادت دي، او لعان چي پر ده نسته ددې سببه چي جواب د لعان دده بايد ښځه هم په لعان ورکولای سي او په مانحن فيه من المسائل کي خو ښځه اهل د لعان نه ده کذا فی الهدايه، په مجمع الانهر کي وايي چي قاضي دی دغه قاذف مېړه ته تعذير ورکړي ولي پر دغي مابنې يې عيب ووايې او ددې رنګ يې وربد کړي.

قال" وصفة اللعان ان يبتدی القاضی بالزوج" ولي نص قرآني هم ابتداء په زوج کړې ده او په فعل د ﷺ هم ابتداء په زوج سره وه.

فيشهد اربع مرات يقول فی کل مرة اشهد بالله انی من الصادقين فيما رميتها من الزنا ثم يقول فی الخامسة لعنة الله عليه ان کان من الکاذبين فيما رما ها به من الزنا يشير اليها فی جميع ذالک" او د لعان صفت او بيان دا دي چي قاضي دي

شروع وکړي په مېړه سره نو دی به د قاضي په مخ کي څلور واره شاهدي اداء کوي، او دی به وايي په هره پلا کي زه شاهدي اداء کوم چي په تحقيق زه د رشتيا ويونکو څخه يم په هغه خبره کي چي ما يې نسبت کړي ودې ته چي زنا ده، او وروسته پنځم وار به داسي وايي لعنت خداي ﷻ دي وي پرده که به دي وي د درواغ ويونکو څخه په هغه خبره کي چي ما ودې ته کړې ده يعني زنا، او په هر وار کي به دی وخپلي ماينې ته اشاره کوي تا چي دا احتمال دفع سي چي دده په قصد او په زړه کي بله ښځه وي.

**مسئله**:- نر چي د لعان کلمې وايي په ولاړه به يې وايي، او ښځه به يې هم په ولاړه وايي، او امام کرخي رحمه الله وايي چي ولاړه شرط د لعان نه ده بلکه صرف د پاره د شهرت او د بل چا د عبرت د پاره په ولاړه به يې وايي.

قال" ثم تشهد المرئة اربع شهادات تقول فی کل مرة اشهد بالله انه لمن الکاذبين فيما رمانی به من الزنا وتقول فی الخامسة ان غضب الله عليها ان کان من الصادقين عليها فيمارمانی به من الزنا" او بيا دي ښځه څلور واره شاهدي اداى کړي او په هر وار کي به داسي وايې زه شاهدي د خداي ﷻ د پاره اداى کوم دغه زما مېړه د درواغ ويونکو څخه دي په هغه شي چي ده يې ماته نسبت کړي دي د زنا څخه، او پنځم وار به وايي چي غضب د خداي ﷻ دي وي پردې که به دی د صادقانو څخه وي په نصبت کي د زنا وما ته.

**فائده**:- په هر وار به دا هم اشاره کوي ومېړه ته کما مر.

**پوه سه**:- چي د نر تر څلورو شاهديو وروسته لعنت الله ويل. او د ښځي د څلورو شاهديو وروسته غضب الله ويل آه، وجه يې داده چي د ښځو په خلو کي د لعنت لفظ ډېر رائج دي نو دوي په هغه باق نه کوي، او د نرو په خلو کي د غضب لفظ ډېر رواج لري، لکه يو چا ته چي درد ورسي نو دی ورته وايې چي د خداي ﷻ په غضب اخته سي لکن اعتبار اکثر اغلب لره دي، نو دا سوال نه واردېږي چي بعض خره اميان لفظ د لعنت ډېر وايې.

قال القدروي رحمه الله " واذا التعنا فرق القاضي بينهما " چي مېړه او مايني د لعان الفاظ سره استعمال کړه نو قاضي دي دوي سره جلا کړي.

**فائده**:- امام زفر رحمه الله وايي چي فرقت په لعان ويلو سره د دواړو واقع کېږي يعني د قاضي تفريق ته ضرورت نسته" وهو المشهور من مذهب مالك رحمه الله او دا مذهب د امام احمد رحمه الله او د ابن عباس رضي الله عنه هم دي، او امام شافعي رحمه الله وايي چي د نر په لعان سره فرقت واقع کېږي ولي چي نر څلور واره پر مايني شاهدي اداء کړه په زنا سره او بيا يې لعنت پر خپل ځان هم ووايې نو عقل سليم دا وايې چي ددوي تر مابين الفت وروسته نه دي ممکن نو په بقاء کي د نکاح فائده نسته او پر دې دليل دا سوال واردېږي چي بايد چي لعان ته د مايني ضرورت نه وي، الاان يقال انه لمراعات ظاهر النص، او زمونږ دليل هغه حديث دي چي بخاري او مسلم يې روايت کړي دي چي ابن عمر رضي الله عنه يې روايت کړي دي، چي يو سړي د مايني لعان وکړي يعني په عصر نبوي ﷺ کي، ففرق

النبي ﷺ، او داسي په هيڅ روايت کي نه دي راغلي چي آنحضرت ﷺ وروسته تر لعان د نر سم دستي حکم د تفريق صادر کړي دي، کمال، جوهر، در.

قال" وکانت الفرقة تطليقة بائنة عند ابی حنيفة ومحمد رحمهما الله وقال ابو يوسف رحمه الله يکون تحريما مؤبدا"

او دا جلا کول د قاضي دوي لره طلاق بائن دي په نيز د امام اعظم رحمه الله او محمد رحمه الله او امام ابو يوسف رحمه الله وايي چي دوي دوه د ابد د پاره سره حرام سوه يعني پس د عدت نکاح جديد هم نسي ورسره کولای، دليل د قول د ابو يوسف رحمه الله هغه حديث دي چي عليه الصلوة والسلام وويله، المتلاعيان لا يجتمعان ابدا والی هذا الحديث ذهب زفر رحمه الله والحسن البصري رحمه الله.

**الجواب**:- چي معنا د حديث مذکور داده چي متلاعنان چي پر صفت او حال د داغه تلاعن باقي وي نو نسي سره يو ځاي کيدلای، يعني پس له تلاعنه هم نر ښځه زانيه بولي او ښځه دی درواغ جن بولي، او د طرفينو رحمه الله دليل دادي چي دا فرقت د مېړه د خوا پر نکاح عرضي پېښ سو يعني چي مېړه ومايني ته وويل چي ته زنا کړې ده، نو دا فرقت عارضي پر نکاح داسي دي لکه چي مېړه مايني ته ووايې، انت طالق" او د بائن والي وجه يې داده چي هر تفريق چي قاضي يې وکړي هغه طلاق بائن دي، کما تقرر فی کتب الفقه.

قال" وان کان القذف بولد نفی القاضي نسبه والحقه بامه"

او که چېري وو قذف د مېړه په نفي سره د ولد د ماينې د ځانه ځخه يعني داسي يې ورته وويل چي دغه عيال دي زما ځخه نه دي، نو قاضي دي نفي کړي نسب د هغه ددغه لار ځخه او د پلانی ښځي د عيال په

نامه دي يې خلګو ته معرفي کړي، ولي د مېړه غرض خو هم داغه وو چي دغه ولد د ځانه څخه نفي کړي حتی چي لعان ته يې ځان وسپاره نو قاضي پسله لعان دده دا غرض تسليم کړي، او بل دليل دادي چي په حديث کي د ابن عباس رضی الله عنه داسي راغلي دي چي ﷺ تفريق وکړی په مابين کي د هلال بن اميه او دده د ماينې پس له لعان څخه او حکم يې وکړي چي اوس نو ولد د ښځي دي.

قال القدوري رحمه الله " فان عاد الزوج و اكذب نفسه، يعني وروسته تر لعان؛ حده القاضى" ولي ده اقرار وکړي پر وجوب د قذف پر ده، وحل له ان يتزوجها" او که مېړه راوګرځېدي د نسبت څخه د زنا چي ده ماينې ته کړی، او خپل ځان يې په هغه نسبت کي دړواغجن کړي قاضي دي دی په حد کړي، او روا ده هغه ملاعن مېړه ته چي نوې نکاح وکړي د هغي قبلي ماينې سره ولي چي حکم د لعان چي عدم جواز د نکاح وو پورته سو په تکذيب سره دده د خپل ځان.

**مسئله**:- که ماينې وروسته تر لعان تصديق د ميړه وکړي په نسبت کي د زنا ودې ته يعني ويويل چي زما مېړه رشتيا ويل ما زنا کړې وه، قاضي به دا په حد کړي ولي چي اقرار په موجب د حد زنا يې وکړي، او بېرته يي نکاح سره روا ده، په جواز کي د نکاح په دواړو صورتو کي امام ابو يوسف رحمه الله او امام زفر رحمه الله او ائمه ثلاثه سره مخالف دي هغه وايي ابدا يې نکاح نه ده سره روا وقد مر دليله وجوابه عنقريب.

قال" وكذالك، يعني نکاح يې سره روا ده، وان قذف غيرها فحد به" او داغه رنګه حکم دي که سړي بېګانه ښځي ته قذف يعني

نسبت د زنا وکړي او ده ته حد قذف ورکړه سو، بیا ده تکذیب د خپل ځان وکړي لکن پر دغه سړي حد قذف نسته للتداخل بین الحدین.

او زنت فحدت" ضورت دذې مسئلې دادي چي سړي وخپلې ماینې ته قذف د زنا وکړي نو د مخه تر لعان دې ښځي د بل سړي سره زنا وکړه، نو یا په اقرار د دې او یا په شاهدانو دې ته حد زنا ورکړه سوه نو هغه د مخه مېړه ته د دې نکاح روا ده ولي چي د لعان حکم د دې د خوا مات سو ولي دا پسله زنا اهل د شاهدي نه ده نو اهل د لعان هم نه ده کما مر.

**سوال**:- چي ښځي اقرار په زنا وکړي یا په شاهدانو ثابته سي، او حال دادي چي ښځه خو مېړه داره ده حد خو د دې رجم دي، بیا څنګه حکم د روا او ناروا جاري کېږي؟

**ځواب**:- دادي چي معنا د حددت جلدت دي صورت د مسئلې دادي چي لعان بعد النکاح قبل الدخول بیا دا ښځي زنا وکړي نو حد د ښځي په دغه صفت سره دره وهل دي نه رجم، ولي دا محصنه نه ده او د شروط څخه د احصان، الدخول بعد النکاح الصحیح ولم یوجد فی، عنایه.

قال" وان قذف امرئته وهی صغیرة او مجنونة فلا لعان بینهما ولاحد" او که یو سړي قذف وکړي وماینې ته چي هغه بالغه نه وه،اویا لیونۍ وه نولعان ترمابین ددوي نسته اونه پرمېړه حد قذف سته، په هدایه کي وایې چي د لعان شرط خو دادي چي دا ښځه یعني ماینه د سړي به داسي ښځه وي که بېګانه سړی ودې ته قذف وکړي هغه په حد کېږي، او سره ددې چي صغېرې یا لیونۍ ته بېګانه قاذف خو نه په حد کېږي، نو د مېړه څخه یې حکم د لعان هم پورته سو ولي چي لعان

خو د میړه په باره کي قائم مقام د حد قذف دي، وکذا لو کان الزوج صغیرا او مجنونا آه، هدایه.

قال القدوري رحمة الله عليه " وقذف الاخرس لا يتعلق به للعان" او د ګونګي نسبت د ماینې وزنا ته یعني په اشاره سره تعلق د لعان بینهما نه لازموي، ولي چي لعان خو لکه حد قذف په صریح الفاظو سره تعلق لري ولي چي په اشاراتو کي د ګونګي شبه سته والحدود تندرئ بالشبهات، وفیه خلاف الشافعي رحمة الله عليه، هدایه.

قال" واذا قال الزوج هذا الحمل ليس منى فلا لعان" او که میړه وویل ومایني ته چي دغه ستا موجوده حمل زما نه دي نو لعان نسته.

**پوه سه**:- چي دا مذهب د ابي حنیفه رحمة الله عليه او زفر رحمة الله عليه دي، ولي دا متعین نه ده چي حمل سته او که یې داغسي نس پړسېدلي دي، فلا یصر قاذفا بالشك، او یاران وایې که دغه ښځه تر شپږ میاشتي کم لنګه سوه نو دی قاذف دي لعان به کوي للتیقن بوجود الحمل عند ما قال ذالك، او که پر شپږ میاشتي یا بالا لنګه سوه بیا لعان نسته، لعدم التیقن بالحمل عند قول الزوج، د امام اعظم رحمة الله عليه د خوا جواب دادي چي میړه چي فی الحال قاذف دي نو دده قذف ګویا په شرط سره متعلق سو، ګویا میړه داسي ورته وویل چي که به ستا حمل موجود وي هغه زما څخه نه دي او سره ددې چي تعلیق د قذف په شرط پوري نه دي روا

قال" وان قال زنيت وهذا الحمل من الزنا تلاعنا" او که میړه ماینې ته داسي وویل چي تا زنا کړې ده او دا موجوده عمل په تاکي د

زنا ځخه دي نو به لعان سره کوي، ولي دي د زنيت په ويلو قاذف دي او وروسته خبره خو دده د پاره د نفي د ولد د ځان ځخه ده.

قال" ولم ينف القاضى الحمل منه" او قاضي دي نه نفي کوي حمل د مېړه ځخه، ولي چي د حمل حال خو معلوم نه دي چي وي به او که نه.

قال" واذا نفى الرجل ولد امرئته عقب الولادة او فى الحال التى تقبل التهنية فيها وتبتاع آلة الولادة فيها صح نفيه ولاعن به" يعني نسب يې دده ځخه نه ثابتېږي، او د ماينې سره به لعان کوي، او که نفي کي مېړه ولد د ماينې دده وروسته تر ولادته او يا په هغه حال کي چي خلګو به وده ته مبارك باد ويلای، او رانيول کيدل به اسباب د ولادة لکه زانګو سيزنۍ د کوچني د پېچلو شيان او يا د هغه د اواريدو شيان، نفي يې صحيح دي او لعان به هم کوي ولي چي ده نفي د ځان ځخه وکړه نو دى قاذف سو ماينې ته په زنا سره.

قال" وان نفاه بعد ذالك لاعن ويثبت النسب" او که يې نفي د ولد وکړه او وروسته تر قبول د مبارك باد د خلګو او تر رانيولو د اسبابو د ولادت د لعان خو به د ماينې سره کوي ولي خو په نفي سره د ولد لره نسبت د زنا وښځي ته موجود سو نو دى قاذف سو نو مقتضٰى د قذف د ماينې چي لعان دي پر ځاي کوي به يې، او نسب يې په دې ثابت دي چي ده مبارك باد د خلګو قبول کړي او نور هم د نسب قبلولو کارونه يې وکړه کمامر.

قال" وقال ابو يوسف ومحمد رحمهما الله تعالى يصح نفيه في مدة النفاس" او امام ابو يوسف او امام محمد رحمه الله وايي چي نفي د ولد په ټوله مده کي د نفاس صحيح دي، او امام شافعي رحمه الله وايي که بي بالفور نه کي نفي نسب يې ثابت دي، او په بل قول کي دده رحمه الله تر درو ورځو پوري نفي صحيح دده وروسته تر درو ورځو نسبت ثابت دي، د ټولو مذهبو دلائل په شروح مفصله وو کي د قدوري دي مطالعه سي.

قال" وان ولدت ولدين في بطن واحد"

**پوه سه**:- چي بطن واحد دا بولي چي ددې دوو د ځېږېدو تر مابين کم تر شپږ میاشتي وي.

فنفى الاول واعترف بالثاني ثبت نسبهما وحد الزوج" که ښځي وځېږول دوه کوجنیان په یوه نس چي په پښه تو يې غبرګولیان بولي، نو مېړه ددې اول نفي وکړه یعني دا زما عیال نه دي، او اقرار يې وکړی په ثاني سره یعني چي زما د ابو ځخه دي، نو نسب خو د دواړو ثابت سو دده ځخه ولي چي غبرګولیان خو د یوه سړي د ابو ځخه پیداکېږي، چي ده دوهم ومنی چي زما دي نو اول هم دده دي او مېړه ته دي یمین د قذف ورکړي قاضي، ولي په نفي د اول خو دي قاذف سو او په اقرار د دوهم ده ځان قاذف کړي نو حد قذف پر لازم دي.

وان اعترف بالاول ونفى الثاني ثبت نسبهما ولاعن" او که ده اقرار وکړي په اول سره چي زما ولد دي او دوهم يې نفي کړي نسب خو ددواړو ثابت سو لما مر چي غبرګولیان خو د یوه سړي د اوبو ځخه پیدا کېږي او په نفي د ثاني دی قاذف سو نو د مايني سره به لعان کوي.

# كتاب العدة

دا كتاب دي په بيان كي د عدې د ښځې چې مختلف اقسام لري چونكه عده د مېړه او مابينې د جلاوالي په ټولو صورتو كي كه طلاق وي او كه موت د مېړه موجوده وه، نو ځكه مصنف رحمه الله تر طلاق او ظهار او ايلاء او لعان وروسته راوړه.

**پوه سه**:- چې عدت پر درې قسمه دي، ګاهي په حيضو وي، او ګاهي په مياشتو وي، او ګاهي په وضع الحمل سره وي چې دا درې سره اقسام به په دې باب كي راسي ان شاء الله.

**فائده**:- عده په لغت كي شمېرلو ته وايې، نو چونكه په عده شرعيه كي شمېرل د حيضو يا د مياشتو وغيره سته نو ځكه د عدت په نامه مسمّٰى سوه، او په شريعت كي هغه مدت چې شرعا مقرر سوي د پاره د پېژندلو د رحم د ښځې چې خالي دی د اولاد څخه او دا په اعتبار د اصل وضع فلايرد سوال بالصغيرة ولآيسة.

قال القدوري رحمه الله " واذا طلق الرجل امرئته طلاقا بائنا او رجعيا او وقعت الفرقة بينهما بغير طلاق" كه طلاقه كړه سړي مابينه خپله په طلاق بائن سره او يا په طلاق رجعي سره لكه د مخه چې تېره سوه او يا جلاوالي د دوي تر مابين بې طلاقه راغلي لكه مابينه چې مدخول بها وي او وروسته دا د بونځي سره وطي وكړي نو پر مېړه بېله طلاقه حرامه سوه.

قال" وهى حرة ممن تحيض فعدتها ثلثة اقراء" او دا ښځه حره وي نو كه مسلمانه وي او كه كتابيه وي، د حري قيد ددې لاره دي چې د

مینځي ماینې عدت دوه حیضه دي، او دې ښځې ته حیض ورځي، اعتراض دي د صغیرې او آیسې ښځه نو عدت ددوې درې اقراء ده.

والاقراء الحیض" او اقراء حیضو ته وایې زمونږ په مذهب، او بعض فقهاء رحمة الله علیه د نورو مذهبو وایې چې عده ددغه ښځې درې طهره ده، ودلائل المذاهب والجواب عنها فی الشروح المطولة.

قال" وان کانت لاتحیض من صغر او کبر فعدتها ثلثة اشهر" او که ښځې ته حیض نه ورتلې په سبب د کوچنیوالي او یا د کلان سالی په سبب چې آیسه یې بولي نو عده ددې درې میاشتې ده چې، قال الله تعالی "والاتی یئسن من الحیض من نسائکم ان ارتبتم فعدتهن ثلثة اشهر.

قال" وان کانت حاملا فعدتها ان تضع حملها" او که چېرې دا مطلقه ښځه حامله وه نو عده ددې دا ده چې حمل کښېږدي یعني لنګه سي حتی که څه هم لږ وخت تر طلاق وروسته لنګه سي، لقوله تعالی" واولات الاحمال ان یضعن حملهن" او هغه ښځې چې درلودونکي وي د حمل عده یې دا چې حمل کښېږدي.

وان کانت امة فعدتها حیضتان وان کانت لاتحیض فعدتها شهر ونصف" ولې چې میاشت خو تنصیف قبلوي، او که چېرې دا مطلقه ښځه مینځه وه نو عده ددې دوه حیضه دي دا په سبب د دې چې حیض خو نه نیمی کېږي، ورنه باید عده ددې باید پر نصف د عدې د حرې وایې یعني یو نیم حیض، قال علیه الصلوٰة والسلام طلاق الامة تطلیقتان وعدتها حیضتان" یعني هغه طلاق چې مینځه مغلظه په

طلاقېږي دوه طلاقه دي لکه د حرې چې درې دي ولې طلاق هم تنصیف نه قبلوي.

قال" واذا مات الرجل من امرئته الحرة فعدتها اربعة اشهر وعشرة ايام" او که مړ سو سړی د خپلې ماينې ښځه يعني دی مړ سو مانيه يې پاته سوه نو عده د ماينې څلور مياشتې او لس ورځې ده.

وان كانت امة فعدتها شهران وخمسة ايام" او كه چېرې مېړه مړ سو او ماينه يې مينځه وه د بل چا نو عده يې دوې مياشتې او پنځه ورځې ده، خداي پاك ﷻ په قدآن مبارك کې وايې "والذين يتوفون منكم ويذرون ازواجا يتربصن بانفسهن اربعة اشهر وعشرا" او هغه کسان چې وفات سي د تاسې ښځه او پرېږدي ماينې نو دوي به انتظار کوي څلور مياشتې او لس ورځې يعني بل مېړه به نه کوي.

**پوه سه**:- چې په دغه عده کې مدخول بها او غير مدخول بها ماينه سره برابر دي، ولې آيت شريف مطلق دي د مدخول بها او غير مدخول بها فرق يې نه دي کړي، لکه صرف يې د مېړه مرګ سبب ددغې عدې ګرځولي دي.

**فائده**:- په مذکوره احکامو کې د عدې مينځه او مکاتبه او مدبره سره برابر دي،

قال القدوري رحمه الله " واذا ورثت المطلقة فى المرض، اي مرض الموت، فعدتها ابعد الاجلين عند ابى حنيفة ومحمد رحمها الله" او که ميراث يوړي هغې ماينې چې مېړه طلاق ورکړي وو

په مرض موت کي نو عده ددې هغه لېري مده د دوو عدو چي يوه عده درې حيضه ده او بله عده څلور مياشتي او لس ورځي ده.

**سوال**:- څلور مياشتي او لس ورځي خو تر دروو حيضو معلوم داره لېري مده ده ولي چي ښځي ته په هره مياشت کي يو وار حيض ورځي نو خو په درې مياشتي کي درې حيضه پوره کېږي ما معنى ابعد الاجلين؟

**جواب**:- دا لازمه نه ده چي هري ښځي ته به په مياشت کي حيض ورځي ولي بعض ښځي ممتدة الطهره وي، دوې درې بلکه بالا تر هغه پاکي ګرځي وروسته بيا حيض ورځي، نو په داسي ښځه کي ابعد الاجلين درې حيضه دي کما لايخفى.

**فائده**:- بعض مړونه د ماينو څخه يې بد راځي نو چي دى په مرض الموت ناجوړى سي دده په خيال نو ماينې ته طلاق ورکړي فراراً عن ميراثها، ودې ښځي ته امرئة الفار وايې، نو ددې ښځي په باره کي د شريعت پاك فيصله داده چي دا په عده کي وي او مېړه يې مړ سي نو دا ميراث وړلاى سي په اتفاق زمونږ د مذهب د امامانو رح، خو طلاق يې يو بائن ورکړي وي او يا درې طلاقه لکن په عده کي اختلاف سته مذهب د امام اعظم رحمه الله خو هغه دي چي په متن کي ذکر سو، او امام محمد رحمه الله هم د امام اعظم رحمه الله سره متفق دي،او امام ابو يوسف رحمه الله وايې چي عده ددې ښځي درې حيضه ده، دى وايې چي د عدې لزوم خو پر دې په سبب د طلاق دي، وقد مر ان عدة طلاق ذات الحيض ثلث حيض، او په ميراث کي دې ته برخه ورکول خو په سبب ددې دي چي مېړه يې متهم دي چي په طلاق سره دى ددې د ميراث څخه تښتي نو دا په عدې پوري څه کار لري، او امام اعظم رحمه الله او امام محمد رحمه الله وايې

چي دغه ښځه چي طلاقه سوه په حال کي د مرض الموت په حکم کي د
هغي ښځي وګرځيده چي مېړه ځندي مړ سي بيله طلاقه په باره کي د
ميراث نو په باب کي د عدې په طريق اولى لکه هغه ښځه ده ولي چي
ميراث په شك سره نه ثابتېږي او عده خو احتياطا ثابتېږي نو چونکه
دغه ښځه ذات الوجهين ده يعني هم مطلقه ده او هم متوفى عنها زوجها
ده نو احتياطا دي د ابعد الاجلين عده تېره کړي.

قال المصنف رحمه الله " وان اعتقت الامة فى عدتها من طلاق
رجعى انتقلت عدتها الى عدة الحرائر" او که آزاده سوه د مالك د
خوا مينځه چي ماينه د يو چا وي په عده کي د طلاق رجعي نقل کېږي
عده ددي وعدې ته د حرو ښځو، په دې سبب چي ملك د مېړه په دې کي
قائم دي من کل وجه.

قال" وان اعتقت وهى مبتوتة او متوفى عنها زوجها لم
تنتقل عدتها الى عدة الحرائر" او که مينځه ماينه د سړي ازاده کړه
سوه او دا په عده کي وه د طلاق بتي يعني قطعي طلاق چي يا يو بائن
طلاق دي او يا درې طلاقه دي او د عدې په ورځو کي مېړه مړ سو نو نه
نقل کېږي عده ددې وعدې ته د حرو ښځو ولي چي ملك نکاح ددې
ښځي خو زائل سوي دي په طلاق بائن سره، او يا دمېړه په مرګ سره.

قال" وان کانت آيسة فاعتدت بالشهور ثم رئت الدم انتقض
ما مضى من عدتها وکان عليها ان تستانف العدة بالحيض"
او که ښځه يعني مطلقه نااميده وه د حيض څخه نو دې عده په مياشتو
تېرولله، نو عده د مياشتو يې لاټه وه پوره چي دې ويني وليدلې يعني د

حيض نو ماته سوه هغه عده د مياشتو ددې او پر دې لازمه ده چي عده په د سره راګرځوي په حيض سره.

قال" والمنكوحة نكاحا فاسدا والموطوئة بشبهة عدتهما الحيض فى الفرقة والموت" او هغه ښځه چي په نکاح فاسده سره په نکاح سوي وي، لکه نکاح بېله شاهدانو، يا د يوې خور په عده کي د هغې د بلي خور سره نکاح کول، او يا نکاح کول د پينځمي مايني په عده کي د څلورمي مايني، او يا وطي سوې وي په شبه سره لکه ښځي چي ورولي ښځه وغير ته د مېړه هغه يې وطي کړي په دې شبه دي چي واى زما ماينه ده، عده ددواړو په حيض سره ده که يې طلاقه کړي او که يې مېړه مړسي.

**پوه سه**:- چي د موت په صورت کي هلته پر دې عده د حيض سته چي هغه مړ مېړه ددې سره وطي کړي وي او که يې وطي نه وې ورسره کړي نو بيا هيڅ عده نسته، جوهره، بنايه، در.

**سوال**:- عده د موت خو څلور مياشتي او لس ورځي ده نو ولي دلته عده په حيض سره ده؟

**جواب**:- عده مذکوره د موت خو د پاره د حرمت د نکاح او احترام د نعمت د نکاح وه چي په مرګ سره زائله سوه، او نکاح فاسده او وطي بالشبه خو هيڅ احترام نه لري صرف دا عده د پاره د طلب د پاکي د رحم د ښځي ده د ولد څخه نو موت او فرقت دواړه پکښي برابر دي.

**فائده**:- د استبراء رحم د پاره يو حيض کافي دي ولي که دا ښځه حامله واى حيض نه ورتلي.

قال" واذا مات مولى ام الولد عنها او اعتقها فعدتها ثلث حيض" او كه مړ سو بادار د هغي مينځي څخه چي د بادار څخه لنګه سوې وه، او يا دغه ام ولد بادار ازاده كړه نو عده ددې په دواړو صورتو كي درې حيضه دي ولي ددې نعمت د فراش د بادار څخه زائل سو نو مشابه د عدة النكاح سره ده، قال صاحب الهداية ثم امامنا فيه عمر ﷺ فانه قال عدة ام لولد ثلث حيض.

قال المصنف رحمة الله عليه " واذا مات الصغير عن امرئته وبها حبل فعدتها ان تضع حملها فان حدث الحبل بعد الموت فعدتها اربعة اشهر وعشرة ايام" او كه چېري مړ سو كوچنى د ماينې څخه يعني ماينه يي پاته سوه او ماينه يې حمل داره وه نو عده يې داده چي لنګه سي، دا مذهب د امام اعظم رحمة الله عليه دي او امام محمد رحمة الله عليه په دليل ددې قول د خداي تعالى جل جلاله "واولات الاحمال اجلهن ان يضعن حملهن" او امام ابو يوسف رحمة الله عليه وايې چي عده يې څلور مياشتي او لس ورځي ده ولي دا حمل خو د ثابت النسب كوچني څخه نه دي ولي چي كوچني اهل د احبال نه دي، او كه چېري وروسته تر مرګ د كوچني حمل پيدا سو نو عده ددغي ښځي څلور مياشتي او لس ورځي ده، ولي دا حمل خو يقينا عند الموت نه وو نو عده د وضع الحمل پر دې نسته بلكه عده د ميړه د مرګ پر دې سته.

قال" واذا طلق الرجل امرئته فى حالة الحيض لم تعتد بالحيضة التى وقع فيها الطلاق" او كه يو سړي طلاقه كړه ماينه په حيض كي نو اعتبار نسته دغه حيض لره چي په هغه كي طلاق واقع

سوي دي يعني دا حيض په عده کي نه شمېرل کېږي ولي طلاق خو دړي حيضه کامل غواړي په نص د قرآن، ددې موجوده حيض خو څه وخت تېرسوي دي نو کامل حيض نه دي.

قال المصنف رحمه الله " واذا وطئت المعتدة بشبهة"

**پوه سه**:- چي مراد عدة د طلاق بائن ده ولي چي که طلاق رجعي وو خو دغه وطي رجوع ده او مراد د شبهي ځخه دادي چي مېړه ووايې چي زما خيال دا وو چي ددې وطي ماته روا دي، يعني که وطي کړه سوه ښځه چي په عده کي د طلاق وه.

فعليها عدة اخرىٰ وتداخلت العدتان فيكون ماتراه من الحيض محتسبا منهما جميعا واذا انقضت الاولى ولم تكمل الثانية فعليها اتمام الثانية" نو پر دې باندي بله عده سته ولي وطي چي سبب د عدې وو پيدا سو او دا دوې عدې تداخل خوري يعني يوه په بل کي داخلېږي حتیٰ چي وروسته دا يو حيض ويني د دواړو عدو ځخه حسابل کېږي او که اوله عده تېره سوه او دوهمه عده نه وه پوره سوي نو پر دې لازم دي چي دوهمه عده به هم پوره کوي،

صورت د دې مسئلې داداي چي يوه ښځه مېړه په طلاق بائن طلاقه کړه، نو دې عده پوره کول مثلا يو حيض يې تېر کړی وو چي بيا مېړه وطي ورسره وکړې، نو پر دې خو بله نوې عده په سبب د وطي لازمه سوه ولي چي طلاق خو باقي دي، نو د هرې عدې د پاره خو درې حيضه غواړي لکن دا درې حيضه تداخل سره کوي يعني يو حيض ددواړو عدو ځخه حسابل کېږي نو چونکه دې خو يو حيض تېر کړي دي نو دا چي دوه حيضه نور تېر کړي اوله عده خو پوره سوه او د دوهمي عدې يو

حيض پاته دي نو پر دې واجبه ده چي يو حيض به بل تېروي چي دوهمه عده هم ختمه سي، او امام شافعي رحمه الله وايې چي دوې عدې تداخل نه قبلوي که دواړي عدې د يوه جنس څخه وي يعني دواړي په حيضو سره وي او يا دواړي په مياشتو سره وي، او يا ددوو جنسو څخه وي يعني يوه په حيضو سره وي او دوهمه په مياشتو سره وي، وعليک بالتامل فی استخراج تلک الصورالثلاثة فتکون علی بصيرة، نو د ده په نېز دا به اول عده پوره کوي او بيا دي شروع په دوهمه عده کوي دی وايې چي دواړي حقان واجبان دي فلا يتداخلان کسائر الواجبات، مونږ وايو چي عده په مذکوره صورتو کي د پاره د برائت د رحم مشروع دي نو په صورت کي د تداخل هم هغه غرض پر ځاي کېږي.

قال" وابتداء العدة فی الطلاق عقيب الطلاق وفی الوفاة عقيب الوفاة فان لم تعلم بالطلاق والوفاة حتی مضت مدة العدة فقد انقضت بها" او که ښځه نه وه خبره په طلاق د مېړه دې لره، او يا نه وه خبره د مېړه په مرګ لکن په اندازه د عدې د طلاق او يا د عدې د وفات تربص يې وکړي نو په دواړو صورتو کښې يې عده تېره سوه، او حضرت علي رضي الله عنه وايې چي ابتداء د وفات د عدې د هغه وخت څخه ده چي ښځه د مېړه په وفات خبره سي که څه هم ډېري مياشتي وروسته خبره سي، مونږ وايو چي عدة خو مضی ته د زمانې معهودي وايې، وذالک موجود وان لم تعلم به، او انقضاء د عدې ددې پر فعل توقف هم نه لري ولې چي دا خبره هم وي لکن دا پرهېز نه کوي چي پر معتدي هغه پرهېز لازم دي لکه ترک د زينت، بيا هم چي هغه وخت پوره کي عده تېره سوه.

قال القدوري رحمة الله عليه " والعدة في النكاح الفاسد عقيب التفريق بينهما او عزم الواطى على ترك الوطها " او عده په نكاح فاسده كي يعني هغه صورتونه چي مونږ بيان كړه وروسته تر تفريق د حاكم په مابين كي د مېړه او مابنې يعني چي حاكم حكم د تفريق صادر كړي عده د ښځي شروع سوه، او د هغه وخت څخه شروع كېږي چي مېړه قصد وكړي پر ترك د وطى ددې.

**پوه سه**:- چي مطلق عزم قلبي د مېړه نه دي كافي لكه د ظاهر څخه د متن چي فهمېږي ولي چي عزم د زړه مبطن او پټ شى دي ښځه څه په خبره ده بلكه په خوله به اظهار د عزم كوي يعني داسي به وايې مثلا تركت وطيها او عزمت على عدم وطيها فيما بعد وامثال ذالك، كما في الجوهره

قال القدوري رحمة الله عليه " وعلى البتوتة" او پر هغه ښځه باندي چي نكاح يې بيخي قطعه سوې وي يعني مېړه حق د رجوع نه لري، چي هغه درې قسمه ده (۱) اول هغه ښځه ده چي د مېړه سره خلع وكړي (۲) او دوهمه هغه ښځه ده چي مېړه درې طلاقه وركړي وي (۳) دريمه هغه ښځه ده چي مېړه يې يو طلاق بائن وركړي وي، ع

والمتوفى عنها زوجها" او هغه ښځه چي مېړه يې ځندي مړ سوي وي "قال عليه الصلوٰة والسلام لايحل لامرئة تومن بالله واليوم الآخر ان تحد على ميت فوق ثلاثة ايام الا على زوجها اربعة اشهر وعشرا"

**ترجمه**:- نه ده روا هيڅ ښځي ته چي ايمان يې پر خداي جل جلاله او پر ورځ د آخرت راوړي وي، چي احداد به كوي يعني ترك د زينت كوي پر هيڅ مړي باندي يعني كه يې پلار وي او كه يې زوي وغيره وي مگر احداد به

کوي پر مېړه باندي څلور مياشتي او لس ورځي، ه، در.

اذا كانت بالغة مسلمة الاحداد" نو پر كوچنۍ نجلۍ چي مېړه يې مړ سي احداد نسته ولي چي دا په نعمت د نكاح نه ده پوهېدلې چي پر زوال يې غم وكړي، د مسلماني قيد يې ځكه ولګوي چي كه ماينه كافره وي يعني د اهل كتابو څخه وي احداد نسته باندي ولي چي دا په فروع د اسلام نه ده مكلف، نو پر دغو دوو ښځو چي مسلمانه وي او بالغه وي احداد لازم دي.

والاحداد ان تترك الطيب والزينة والدهن" او احداد پرېښول دي د خوشبويې هر قسم چي وي او د زينت يعني ټوله هغه شيان چي ښځي ځان په ښائسته كوي لكه سرخي و سفيده لاسونه سره كول بنګړي په لاس كول ګوتمۍ په ګوتو كول غوژوالي په غوږو پوري ځړول او خوشبويه جامه وغيره، قاضي خان، او داغه رنګه د غوړولو څخه د سر او مخ د زيتون وغيره په تېلو سره كه څه هم خوشبويه نه وي.

**پوه سه**:- چي د احداد د لزوم يوه وجه داده چي د تاسف او غم او خوابدي ښكاره كړي پر زوال د نعمت د نكاح په مرګ د مېړه او بل داده چي دا شيان چي ذكر سوه د خلګو رغبت جلبوي ددې ونكاح ته او دا خو په عده كي ممنوع ده د نكاح، نو دواعي د نكاح اشياء مذكوره ده هم دي يې نه كوي چي آخر په زنا اخته نه سي، او په صحيح حديث كي راغلي دي چي عليه السلام منع كړه معتده د ستركو د تورولو څخه، او غوړول د سر خو زينت د وېښتيانو دي.

**پوه سه**:- چي په هدايه كي وايې چي ستركي تورول يا بله دوا د جهت د عذره نه ده زينت دا رواده.

**مسئله**:- که چېري د ښځي د سر غوړول عادت وه او دې ته په تجربه معلومه وه چي سر نه کي غوړ د سر درد ورته پيدا کېدي، نو د عدې په شپو کي هم سر غوړول ورته روا دي، كذا في الهدايه. د شرعي شريفي خلاف رواج د خلکو خصوصا د پښتنو.

**بېوه مسئله**:- چي په ډېرو پښتنو کي دا رواج دي چي د چا پلار يا لوي زوي ځوان يا ورو وغيره مړسي د فاتحه خوانۍ وروسته د هر اختر ورځ چي راغله يعني ددغو اقرباوو مړګ خلور پنځه مياشتي مثلاً د مخه تر اختر واقع سوي وي، نو ددغه مړي د کور که يې نر وي که يې ښځي وي په دغه اول اختر نه نوي کالي اغوندي او نه بل د اختر دخوشالۍ مناسبت کوي، بلکه خيرن کالي يې اغوستي وي او په دي غم پر هغه مړي کوي او په دغه اول اختر اقربا او شناخته ګان د مړي تپوله د هغه زاړه مړي د فاتحه خوانۍ د پاره راځي او تر درو ورځو پوري دا فاتحه خواني دوام لري، او د مړي د کوره حسب الطاقت ودغو فاتحه خوانانو ته ډوډۍ غورمې وغيره ورکول کېږي، دا فعل سخته ګناه او ډېر ناجائز کار دي، هغه حديث نبوي ﷺ لايحل لامرئة آه. عنقريب تېر سو دليل پر ناروا والي ددغه رواج نور خلګ پوهېږي.

قال" والكحل الا من عذر" او په رنجو دي سترګي نه توروي مګر د عذر د لاري يعني چي سترګي يې خوږېږي.

ولا تختضب بالحناء" او لاسونه يا پښې دې نه سره کوي په نکرزو ولي چي نکرزي هم زينت دي او هم طيب په اول الوهلت کي.

ولا تلبس ثوبا مصبوغا بورس ولا بزعفران " او نه به اغوندي هغه جامه چي په ګل ورس او يا په زعفران رنګ سوي وي.

**پوښتنه**:- په پخوا زمانه کي خو سپينو کالو ته عارضي رنګ ښځو ورکاوه، اوس خو رنګونه د کالو د ښځو کارخانه يې پاخه رنګونه دي آيا اوس هم رنګه جامې ومعتدي ته روا نه دي؟

**ځواب**:- د اوس رنګه جامې د ښځو فرق سره لري يو داسي رنګه جامه ده چي د هيڅ زينت د پاره يې ښځي نه اغوندي بلکه د کور د استعمال د پاره، ولي د ښځو سپين کالي په اوسنۍ زمانه کي بېخي نا رواجه دي، نو دغه سي رنګ داره جامې ومعتدي ته روا دي، او يو هغه رنګ داره جامې دی چي ښځي يې د زينت د پاره اغوندي ياد مېړه د پاره يا په واده وغيره کې اغوندی د هغو اغوستل ورته ناروا دي، ويدل علی ماقلنا هغه قول د مجمع الانهر چي د ورس او زعفران د رنګ کړو جامو تر عنوان لاندي ليکلي دي اذيضوح منها رائحته الطيب، وروسته وايي چي دا منعه هلته ده چي جامه نوې وي چي زينت پکښي راځي او که جامه زړه وه زينت نه پکښي پيدا کېدي، فلا باس بلبسه، انتهی.

قال القدوری رحمة الله عليه " ولااحداد علی کافرة ولاصغيرة وعلی الامة الاحداد" او احداد نسته پر کافري مايني چي مېړه يې مړ سي "لما مرمنا وجهه" او نه احداد سته پر صغيرې مايني ولي خطاب د احکامو الهيه وو ددې څخه پورته دی، لمامر منا" او پر مينځه احداد سته يعني چي مېړه يې مړ سي احداد به کوي ولي چي دا مکلف ده، او په حقوق د خدای جل جلاله مخاطب ده.

قال المصنف رحمة الله عليه " وليس فی عدة النکاح الفاسد ولافی عدة ام الولد احداد"

او نسته په عده د نکاح فاسدې او نه په عده کې د ام الولد احداد، ولې چې نکاح فاسده خو نعمت نه وه چې ښځه تاسف پر وکړي، او ام الولد خو د سره په نکاح کې نه وه بلکه مولی په ملك يمين وطي ورسره کولې او شرعاً احداد د پاره د تاسف پر زوال د عقد د نکاح صحيح دی.

ولاينبغی ان تخطب المعتدة: او نه ښايي چې څوك مرکه وکړي وه معتدې ته، ولې چې مرکه خو دپاره دنکاح وي او معتده خو د نکاح څخه ممنوع ده.

ولاباس للتعريض فی الخطبة" او پروا نسته په تعريض سره مرکه کول ومعتدې ته.

**پوهه**:- چې تعريض په لغت کې ميل الکلام الی العرض، او په اصطلاح کې دادي چې يوه خبره وکړي او غرض اصلي بله خبره وي، په مانحن فيه تعريض ومعتدې ته دادي چې هغې ته سړی داسې ووايي چې ته ډېره ښائسته يې او يا داسې ورته ووايي چې ډېر خلق ستا شوقيان دي او يا داسې ورته ووايي چې زه هم د نکاح اراده لرم، وامثال ذالك، او دا ورته ووايي، قد سمعت ما قلت او تصريح نه ده ورته روا چې داسې ورته ووايي چې زما اراده ده چې تا په نکاح کړم.

**پوهه**:- چې مصنف رحمه الله تعريض و مطلقې معتدې ته روا بللې دي يعني که معتد د وفات وي او که د طلاق وي، لکن په ډېرو متنو او شروحو او فتاواو کې يې جواز د تعريض په معتدې د وفات سره مقيد کړي دي په تنويرالابصار کې وايي،وصح التعريض فی معتدة الوفات آه، او په درمختار کې وايي، لاالمطلقة اجماعاً، ولې دا تعريض سبب کرځي د عداوت د ده او دطلاق ورکونکي،

ومثل هذا في مجمع الانهر وجامع الرموز وردلمختار وغيرها من الشروح والفتاوٰى.

قال رحمة الله عليه " ولايجوز للمطلقة الرجعية والمبتوتة الخروج من بيتها ليلاً ونهاراً" او نه دي روا وه ومطلقي ښځي ته که په رجعي طلاق وي يعني يا يو يا دوه طلاقه يې ورکړي وي او يا په طلاق قطعي سره طلاقه وي يعني يا واحد بائن طلاق وي او يا درې طلاقه وي، وتل د کور څخه ددې نه ده ورځي او نه د شپې لقوله تعالى په باره کې د مطلقات، ولاتخرجوهن" تاسي اې مړو مه باسي مطلقات د کورو څخه ولايخرجن" او نه دي وځي پر خپل سر د کورڅخه الا ان ياتين بفاحشة" مګر نه دوي راتګ وکړي په فاحشه سره.

**پوه سه**:- چي عبدالله بن مسعود رضي الله عنه تفسير د فاحشې په زنا سره کړی دي يعني که دې زنا وکړه نو د پاره د حد ورکولو دې د کوره وباسي دليل د عدم جواز د خروج دادي چي نفقه د مطلقې ښځي خو پر مېړه ده نودا وتلو ته څه ضرورت لري.

**فائده**:- او که نابالغه وه هغې ته خروج روا دي، لعدم کونها مکلفة بالاحکام الشريعة، او که طلاقه سوېماينه د بل چا مينځه وه هغې ته هم خروج روا دي ولي په سبب ددې چي پردې باندي خدمت د بادار لازم دي نو دا وه خروج ته د کور څخه د مېړه مجبوره ده او که مطلقه ماينه ذميه وه پر هغې هم اوسېدل په کور کي د مېړه واجب نه دي ولي چي اهل زمه په احکامو شرعيه وو مخا طب نه دي.

**فائده**:- هغه ښځه چي مېړه يې وفات سوي وي چونکه دا نفقه نه لري نو دي ته وتل د پاره د نفقې روا دي د ورځي، مګر شپه به بل ځای نه

تېروي الاضرورة لکه دغه کونډه ښځه چي داسي ناجوړي ورپېښه سي
چي اپرېشن ته ضرورت وي نو دا د پاره د اپرېشن شپې او ورځي په
هسپتال کي تېرولای سي ولهذا.

قال المصنف رحمة الله عليه " والمتوفى عنها زوجها تخرج نهارا وبعض الليل ولا تبيت في غير منزلها" او هغه معتده چي ددې ځخه مېړه وفات سوي وي هغه د ورځي وتلای سي يعني په طلب د نفقې او يا د کور د بلي سودا د پاره او بعض د شپې د ولي چي ګاهي دا تر لمر لوېدو پوري په نفقه پيدا کولو سره مشغوله وي او شپه به نه تېره وي په غېر کي د خپل کور ولاتنس الاستثناء الذی ذکرناه.

قال القدوری رحمة الله عليه " وعلى المعتدة ان تعتد في المنزل الذي يضاف اليها بالسكنى حال وقوع الفرقة" او لازمه ده پر معتدې ښځي يعني که معتده د طلاق وي او که معتده د وفات الزوج وي چي عده به يې تېره وي په هغه کور کي چي دې ته يې نسبت د اوسېدو کيږي په حال کي د وقوع د جلاوالي ددې او د مېړه تر مابين يعني که جلاوالي په طلاق وي او که جلاوالي په مرګ د مېړه وي، اما معتدة الطلاق فلما مر قوله تعالى ولاتخرجوهن من بيوتهن الاية" او شک نسته چي بيت مضاف وښځه ته هغه کور دي چي دا پکښي اوسيږي.

**فرعه**:- که ښځه د پلارکره مثلا تللې وه او مېړه طلاق ورکړی پردې واجب ده چي د مېړه کور ته به راځي او عده به هورې تېره وي، کذا قال فقهاء رحمة الله عليه مذهبنا.

قال" فان كان نصيبها من دار الميت لايكفيها واخرجها الورثة من نصيبهم انتقلت" او كه وه برخه د ښځي چي مېړه يې مړ سو په سراى كي د مړى ددې نه بسېده يعني كوچني عيالونه يې درلوده او ورثه وو دا وشړل د خپلو برخو څخه د سراى د مړي، نو دې ته روا دي چي نقل مكان وكړي يعني د پلار يا ورنړو مثلاً كور ته ولاړه سي او هورې عده تېره كړي ولي چي دا نقلي مكان په عذر سره د مجبوريت دي والضرورات تبيح المحذورات، او په عباداتو الهيه وو كي مجبوري ډېر رول لري، په هدايه كي وايي چي كه معتده په منزل منسوب كي دغلو څخه بېرېدله او يا ددې څخه چي خونه به راباندي ونړېږي، او يا يې مېړه په هغه سراى كي په كرايه پروت وو، او دې د كرايې طاقت نه درلودي، نو د هغه سراى څخه ودې ته وتل روا دي، يعني كه معتده د طلاق وي او كه معتده د وفات الزوج وي، مع، در.

قال رحمة الله عليه " ولايجوز ان يسافر الرجل بالمطلقة الرجعية"

او نه ده روا چي مېړه سفر كوي په مطلقه رجعيه سره، او امام زفر رحمة الله عليه وايې روادي، دى وايې چي سفر لكه مچه داسي دي نو رجعت دي، مونږ وايو چي سفر خو په نكاح پوري كار نه لري ولي چي سفر خو سړى په مور او خور وغيره سره هم كولاى سي نو حكم د مچې به څرنګه ولري.

قال القدوري رحمة الله عليه " واذا طلق الرجل امرئته طلاقا بائنا"

د بائن قيد د پاره ددې دي كه يې په رجعي طلاق طلاقه كړې وي او په عده كي په نكاح كړې خو داغه دده رجوع ده، بيا چي قبل الدخول په نكاح كړې هيڅ ولور پرده نسته ولي چي ولور خو يې وركړى دي او دا

ښځه خو په هغه نکاح سابق کي پاته ده او په دې ښځه صرف اتمام د عدې لازمه ده بالاتفاق.

**قال المصنف** رحمة الله عليه "**ثم تزوجها في العدة**" ولی که چېري وروسته تر عدې په نکاح کړه نو کې وطي ورسره وکړې او بیایې طلاق کړه نو هم پوره ولور پر لازم دي او هم نوې عده پر ښځه لازمه ده. او کې دخول نه وو په کړي او طلاق يې کړه نو نیم ولور پر لازم دي او عده هيڅ نه لري.

**وطلقها قبل ان يدخل بها فعليه مهر كامل وعليها عدة مستقبلة وقال محمد** رحمة الله عليه **نصف المهر وعليها تمام العدة الاولى**" او که چېري طلاقه کړه نر خپله مابنه په طلاق بائن سره او بیایې په نکاح کړه په عده کي او بېرته يې طلاقه کړه د مخه تر وطي کولو ددې نو پر نر پوره ولور سته او پر دې ښځه بله عده تېرول لازم دي او امام **محمد** رحمة الله عليه وايې چي پر ده نیم ولور دي، او پر ښځه پوره کول د اولي عدې لازم دي.

**پوهه**:- چي ښځه چي په عده کي وي په هغه د مخه نکاح کي وطي داسي دي لکه په وروسته نکاح کی امام اعظم رحمة الله عليه او ابو یوسف رحمة الله عليه وايې چي نعم، نو دغه ښځه چي مېړه په عده کي په نکاح کړه که يې څه هم په دوهم نکاح کي وطي نه وي ورسره کړي داده اول نکاح په وطي سره مدخول بها ده، او د مدخول بها خو مهر کامل پر مېړه لازم دي او چي بیایې طلاقه کړه د مدخول بها پوره عده تېرول لازم دي، نو هغه د مخنې عده کان لم يكن وګرځيده، او امام محمد رحمة الله عليه وايې چي د هغې مخکني نکاح وطي ددې نوي نکاح نه کنړل کيږي نو چونکه قبل الوطي

په نوي نکاح کي ده طلاقه کړه نو د قبل الوطي طلاق خو نیم ولور کېږي او چونکه په نوي نکاح کي دا غیر مدخول بها ده نوعده پردې نسته البته هغه زړه عده به پوره کوي، عنایه، ودر.

قال القدوری رحمه الله " ویثبت نسب ولد المطلقة الرجعية اذا جائت به لسنتين" یعنی د وقته څخه د طلاق، او اکثر مالم تصر بانقضاء عدتها" او ثابتیږي نسب د عیال د مطلقه رجعیه ښځي یعني د مېړه څخه یې نسب دي که چېري دا راوړي دا عیال پر دوه کاله او یا بالاتر دوه کاله لنګه سي، تر هغو چي دې اقرار نه وي کړي دمخه تر لنګول چي زما عده تېره سوله یعني په حیضو سره ولي چي دا اقرار اقرار په تېریدو د عدې وکړی خو دا د مېړه څخه بائن سوه نو حمل ددې تر بینونت وروسته دي نو ځکه یې نسب د مېړه څخه نه ثابتیږي.

**پوښتنه**:- چي کومه مده د حمل شپږ میاشتی ده او اکثر مده یې دوه کاله زموږ په نېز.

**پوښتنه**:- د دغی مطلقې چي په وخت کي د طلاق یې حمل نه وو نو د دې عده خو په حیضو ده نو درې حیضه خو په درو میاشتو کي پوره کیږي نو څرنګه ددې ولد چي د وقت څخه طلاق بالاتر دوه کاله تیر سي ثابت النسب دي ددې د مېړه څخه کیدای سي چي دوه کاله اکثره مده د حمل ده؟

**ځواب**:- نه شرعا نه عادة دا لازمه ده چي هري ښځي ته د په میاشت کی یو حیض ورځي بلکه داسي ښځي ډېري دي چي ممتدة الطهره وي بعض په (۶) میاشتي کي یو حیض ورځي او بعض داسي ښځي هم سته چي په کال کي یو حیض ورځي نو چونکه دي اقرار په تېرېدو د عدې نه

دي کړي نو دا ممتدة الطهر ده او چونکه طلاق رجعي دي نو مېړه ته خو يې وطي روا دي نو مېړه په اثناء کي د عدې ددې سره وطي کړي، او دې به حمل اخستي وي چي تر دوه کاله وروسته وضع حمل وسو نو مېړه په دغه وطي سره رجوع ودې ته کړی ده نو ځکه نسب د ولد د ده څخه ثابت دی.

قال رحمة الله عليه " وان جائت به لاقل من سنتين بانت من زوجها "
او نسب د ولد د ده څخه دي ولي چي امکان لري چي دې به په نکاح کي حمل اخستي وي او يا په عده کي د طلاق رجعي، او بائن په دې سوه چي عده په وضع الحمل سره تيره سوه.

**سوال**:- مېړه د دې مراجع بولل کيږي؟

**ځواب**:- ولي خو دا احتمال سته چي حمل دي د نکاح په وخت اخستي وي، او دا هم احتمال سته چي د عدې په وخت کي دې اخستي وي، والرجوع لايثبت بالشک قاله صاحب الهداية.

قال القدوری رحمة الله عليه " وان جائت به لاکثر من سنتين يثبت نسبه وکانت رجعة" صاحب هدايه وايي چي دې راتګ وکي په ولد سره بالاتر دوه کاله نو نسب يې په دې ثابت دي ده مېړه څخه چي مېړه به يې پسله طللاقه په عده کي وطي ورسره کړي وي ولي لنګون ددې تر اکثر مدې د حمل چي دوه کاله وه بالاسوه نو په سبب د حسن ظن پر مسلمانه ښځه چي دې زنا نه ده کړې، نو وطي په عده کي خو رجوع د مېړه ده، انتهی مع زياده.

قال رحمة الله عليه " والمبتوتة يثبت نسب ولدها اذا جائت به لاقل من سنتين" او د مبتوتې يعني په طلاق بت قطعي طلاقه سوې وي يعني يا درې طلاقه يا طلاقه واحد بائن سره ثابتيږي نسب د عيال د دې د مېږه ښځه چي ددې لنګون کم تر دوه کاله وي تاچي موږ مېږه واطي وبولو په نکاح کي ولي چي په عده کي د ته وطي روا نه دي.

قال القدوری رحمة الله عليه " واذا جائت به لتمام السنتين من يوم الفرقة لم يثبت نسبه الاان يدعيه الزوج" او که راتګ وکړی ښځي په ولد سره پر پوره والي د دوو کلو د ورځي ښځه د جلاوالي د مېږه ښځه د دغي مبتوتې، نو نسب د ولد خو يې نه ثابتيږي ولي چي مېږه ته وطي د مبتوتې خو په عده کي نه دی روا، او په نکاح سابق کي هم علوق او حمل نسي کيدای ولي د فرقت د وخته ښځه دوه کاله پوره سوه، مګر هلته نسب ثابتيږي چي مېږه دعوه د نسب وکړي.

قال صاحب الهدايه رحمة الله عليه، لانه يحتمل ان يكون الولد قائما وقت الطلاق فلا يتيقن بزوال الفراش قبل العلوق فيثبت النسب احتياطا.

**درويش وايي**:- چي دا احتمال چي صاحب هدايه پېش کړی دي ډېر نادر دي، لما قلنا آنفا لکن د جهت د احتياط په نسب کي او د مېږه د نسب د دعوې اعتبار ورکړه سو.

قال القدوری رحمة الله عليه " ويثبت نسب ولد المتوفى عنها زوجها مابين الوفات وبين سنتين" او ثابتيږي نسب د ولد د هغي ښځي چي مېږه يې مړ وي په مابين کي د زمانې د وفات او د دوو کلو لکن دا حکم هلته دي چي دغه ښځه په زمانه کي د وفات د مېږه صغيره نه وي.

قال رحمة الله عليه " واذا اعترفت المعتدة بانقضاء عدتها ثم جائت بولد لاقل من ستة اشهر ثبت نسبه" او كه چېرې اقرار وكړي معتده ښځې په دې سره چې زما عده تېره سوه او بيا راوړي ولد كم تر شپږ مياشتي ددې د اقرار څخه نو نسب يې د مېړه څخه ثابت دي ولې چې موږ يقينا پوه سوو چې هغه اقرار ددې دروغ وه ولې چې اقل مده د حمل شپږ مياشتي ده په اجماع سره، بلكه زموږ يقين دي چې دا په وخت كي د اقرار حامله وه.

قال رحمة الله عليه " وان جائت به لستة اشهر لم يثبت نسبه" او كه راتګ وكړي معتدې په ولد سره پر شپږ مياشتي نسب د ولد يې د مېړه څخه نه ثابتيږي ولې چې موږ يقينا د دې هغه اقرار دروغ نه سو ګڼلای ولې چې احتمال لري چې په وخت كي د اقرار ددې په تېرېدو د عدې دا حمل نه وو، او وروسته دا حمل پيدا سوی د زنا څخه، حاصل مافى الهدايه.

قال القدورى رحمة الله عليه " واذا ولدت المعتدة ولدا" خواه معتده د طلاق رجعي وي او يا د طلاق بائن وي او يا د وفات د مېړه وي.

لم يثبت نسبه عند ابى حنيفة رحمه الله الا ان يشهد بولادتها رجلان او رجل وامرئتان الا ان يكون هناک حبل ظاهر او اعتراف من قبل الزوج فيثبت النسب من غير شهادة" او كه راتګ وكړي معتدې په ولد سره، نه ثابتېږي نسب د هغه د مېړه حخه د معتدې مګر هغه وخت چې شاهدي ادا كړي دوه نر او يا يو نر او دوې ښځې په لنګېدو سره د دې او يا حامله توب يې ښكاره وي چې تر

شپږو میاشتو د مخه لنګه سي د طلاق او یا د وفات د وخت څخه، او نا
په صورت کي د طلاق مېږه اقرار وکي په لنګواله ددې نو په دې ټولو
صورتو کي بیا نسب د هغه ثابتیږي.

وقال ابو یوسف ومحمد رحمهما الله تعالی یثبت فی الجمیع شهادة امرئة واحدة.

**درویش وایي**:- چي چونکه دلائل د دواړو مذهبو اوږده وه او دقیق الفهم وه نو ځکه ما صرف نظر وکړی د راوړو څخه د هغو که د تفصیل شوق ځوك لري نو شروحاتو ته د قدوري دي رجوع وکړي.

قال المصنف رحمه الله " واذا تزوج الرجل امرئة فجائت بولد لاقل من ستة اشهر منذ یوم تزوجها لم یثبت نسبه" او که په نکاح کړه یو سړي یوه ښځه هغې راوړی ولد په کمه مده کي تر شپږو میاشتو د هغه وخت څخه چي ده دا په نکاح کړې وه نسب يې نه ثابتیږي ولي چي یقینا دا معلومه سوه چي ددې ښځي حمل تر نکاح د مخه دي چي تر اقل مدته د مخه خو د حمل وجود او زیږېدل اجماعا نه کیږي.

قال القدوری رحمه الله " وان جائت به لستة اشهر فصاعدا یثبت نسبه ان اعترف به الزوج او سکت وان جحد الولادة یثبت بشهادة امرئة واحدة تشهد بالولادة" او که ښځي راتګ وکړی په ولد سره پر پوره شپږ میاشتي یا بالاتر شپږ میاشتي نو نسب يې ثابتیږي د مېړه څخه که ده اقرار وکړی په نسب سره او یا پټه خوله وو، ولي خو نکاح قائمه او مده د حمل هم پوره ده او که مېړه د لنګیدو څخه

د ماينې يکلخته منکره وو بيا لنګواله د هغې په شاهدي سره د يوې
ښځي ثابتېږي چې هغه شاهدي ادا کړي په لنګواله سره ولي چې نسب
خو په فراش قائم سره د يوې ښځي ثابتېږي ولي د سړي خو ماينه ده او
نفس لنګول په شاهدي د يوې ښځي په اجماع ثابتېږي. ...

قال القدوری رحمه الله " واکثر مدة الحمل سنتان واقله ستة
اشهر" او اکثره مده د حمل چې د ښځي په رحم کي پاتېدای سي دوه
کاله ده او کمه مده د حمل چې تام الاعضاء ولد پيدا کېږي هغه شپږ
مياشتي ده.

**پوه سه**:- چې غالبه لنګول د ښځو (۹) مياشتي دي.

**فائده**:- دا مذهب چې په متن کي ذکر سو زموږ حنيفيانو رحمهم الله دي،
او د آئمه ثلثه وو رحمه الله مذهب دادي چې اکثر مده د حمل په رحم کي د
مور د پاته کيدو څلور کاله ده، او د عباد رحمه الله چې داغسي يو روايت د
امام مالك رحمه الله څخه هم راغلي دي وايې چې اکثره مده د حمل پنځه
کاله ده او امام ربيعه رحمه الله وايې چې اکثره مده د حمل اوه کاله ده، او د
امام زهري رحمه الله څخه روايت دي چې اکثره مده د حمل شپږ کاله ده.

**پوه سه**:- چې د مذکوره مذهبو دلائل صرف حکايات دي لکه چې
وايې چې عبدالعزيز الماجشوني د مور څخه پر څلور کاله وزېږېدي، او
دوي وايې چې د ماجشون د قبيلې د ښځو دا عادت دي چې پر څلورم
کال لنګېږي، او دوي وايې چې ضحاك د مور څخه پر څلور کاله پوره
وزېږېدي چې د مخ غاښونه يې ښکاره سوي وه او ده خندله نو ځکه
ضحاك نوم پر کښېښو، زموږ دليل هغه حديث د سيدنا عائشة رضي
الله تعالي عنها دی چې دې وويل چې عيال د مور په رحم کي بالاتر دوه

کاله نسي پاته کېداى، ولو بظل المغزل" که څه هم په قدر د ګرځېدو د سايه د څرخ لرګي وي چي ښځي ورته پر پېچي، وفی رواية بفلكة المغزل يعني په قدر د ګرځېدو د هغه لرګي، او دا يو مثال دي د لږي زمانې ولي چي د څرخ د لرګي سايه ښخي ژر ژر ګرځي.

**سوال**:- دا خو د عائشة رض خپله رايه وه حديث د عليه الصلوة والسلام خو نه دي.

**ځواب**:- صحابه کرام ﷺ که نر وي او که ښځي وې مقدار ونه د شرعي شيانو په عقل سره نه بيا نه وى بلکه تولـه محمول پر سماع دي د رسول الله ﷺ څخه کما ثبت فی اصول الفقه، او حکايات احتمال د غلطيا لري او بل سبب د دغو حکاياتو دا هم کيداى سي چي ښځي هغه وخت خپل ځان حمل داره بولي چي حيض يې قطع سي او شك نسته چي قطعه والي د حيض خو په حمل لکه چي کيداى سي دغه رنګه د بعضي ناجوړي په سبب هم کيداى سي نو امکان لري چي د يوې ښځي حيض دي د ناجوړي په سبب دوه کاله بند وي او وروسته دا حامله سي، او دوه کاله وروتسه لنګه سي نو د دې په خيال دا پر څلور کاله لنګه سوه، مجمع الانهر، ودرويش.

قال القدوری رحمة الله عليه " واذا طلق الذمی الزمية فلاعدة عليها" که طلاقه کړه زمي نر زميه ښځه، زمي هغه بولي چي په دار اسلاك کي يې زمه يعني تبعيت قبول کړي وي" نو عده پر هغې زميه نسته دا مذهب دي د امام اعظم رحمة الله عليه لکن دا حکم هلته دي چي د دې په دين کي د طلاق عده نه وي.

**مسئله**:- که د زمیې ښځې مېړه مړ سي پر دې باندې عده د وفات نسته که د دوي په دین کي داغسې وه. او امام ابو یوسف او امام محمد رحمهما الله وايي چي په دواړو صورتو کي پر ښځه عده سته ولې چي دا په دار اسلام کي اوسېږي نو بايد د اسلامي اصولو سره مطابق رفتار وکړي.
امام اعظم رحمه الله وايي چي عده خو حق الله او حق الزوج ده اوزمې په حقوق الله مخاطب نه دي لکه لمونځ روژه وغيره، كذا في الجوهرة.

قال رحمه الله " وان تزوجت الحامل من الزنا جاز النكاح ولايطاها حتى تضع حملها" او که نکاح وکړه يوې ښځې چي حمل داره وه د زنا څخه يعنى د يو سړي سره، نکاح خو يې روا ده لکن مېړه به وطي نه ورسره کوي تر هغو پوري چي لنګيږي، عليه الصلوة والسلام وايي چي نه دي وطي کوي حامله د زنا تر هغو چي حمل اږدي يعني لنګيږي.

**مسئله**:- که ناکح هغه زاني وو بيا وطي ورته روا دي ولي چي دى خپل کښت او بوي بخلاف غير الزاني، ولي هغه خو د زاني کښت او بوي او دا په شريعت کي ناروا ده، کما جاء في الحديث النبوي ﷺ.

# كتاب النفقات

دا کتاب په بيان کي د نفقو د احکامو او اقسامو دي.

**پوه سه**:- چي مصنف رحمه الله چي د نکاح او طلاق د احکامو او اقسامو د بيان څخه فارغ سو نو شروع يې په بيان کي د احکامو د نفقو وکړه.

**فائده**:- چونکه نفقې ډېر اقسام لري لکه نفقه د مطلقې، او نفقه د ماينې، او نفقه د ذوي الارحام، او نفقه د مريانو چي دا دوه آخير اقسام

يې په نکاح او طلاق پورې هيڅ علاقه نه لري نو ځکه مصنف رحمه الله عليحده کتاب ورته وضح کړي.

**پوهه**:- چې نفقه هغه طعام ته وايې چې يو څوك يې وبل چا ته ورکړي او يا په حکم د طعام وي لکه کالي جامې وغيره او چونکه اسباب د نفقې درې دي، (١) زوجيت او متعلق د زوجيت چې طلاق يا وفات دی (٢) قرابت او دريم (٣) ملك دي نو مصنف رحمه الله شروع د اول سبب څخه وکړه چې دېر مناسب وو د زوجيت او طلاق او عدت سره نويې داسې وويل.

النفقة واجبة للزوجة على زوجها" دليل يې کتاب الله دي، لينفق ذو سعة من سعة، ولقوله تعالى وعلى المولود له رزقهن وکسوتهن بالمعروف، ولقوله تعالى اسکنوهن من حيث سکنتم من وجدکم" د اول آيت ترجمه" حتمابه انفاق کوي خاوند د قدرت برابر د قدرت سره يعني بعض مړونه مسکينان وي د مسکنت د طاقت سره به برابر انفاق کوی، او بعض به اغنيا وي هغه به د غنا پر طاقت برابر انفاق کوي معنی دا چې پر مسکين باندي نه ده لازمه چې نفقه د غنيانو به ماينی ته ورکوي او غني سړی دي هم دومره ګنجوسي نه کوي چې ماينې ته نفقه د فقراء ورکوي، او داغه رنګه په اورده حديث کي د جابر رضي الله عنه چې روايت يې مسلم او ابو داود رحمه الله کړي دي راغلي دي، ان لهن، ای لزوجات، عليکم، ای الازواج، نفقتهن وکسوتهن بالمعروف، ای المعلوم فی الشرع وهو مايکون بقدر طاقة الازواج" او عقلا هم بايد د ماينې نفقه پر مېړه واجبه وي ولي چې ماينه بندي په کور کي د پاره د خدمت د زوج او د او لادو د ده او نورو ضرورياتو د کور وي، نو هرڅوك چې بندي وي د

يو چا د پاره نو نفقه به يې هم هغه سړی ورکوي، يعنی نفقه واجب ده پر مېړه د زوجې که دا فقيره وي او که غني وي ولي چي د دې غنا خو حق د دی پر چا نه ساقطه وي، لکه د يوه غني سړي چي پر بل پور باندي وي، کي وطي کړي او که نه، منح.

**پوه سه**:- مېړه که مسکين وي او که غني که حاضر وي او که غائب د ماينې نفقه پر واجب ده.

قال القدوری رحمه الله " مسلمة كانت او كافرة اذا اسلمت نفسها فی منزله فعليه نفقتها وكسوتها وسكناها"

نو که يې ماينه مسلمانه وي او يا کافره وي يعني د اهل کتابو ښځه، ولي چي د مشر کي ښځي نکاح و مسلمان ته نه ده روا هغه وخت چي ښځه ځان وسپاري ومېړه ته د مېړه په کور کي، يعني د پلاره په کور کي چي وي که څه هم مېړه يو شپه شپه د جماعو د پاره د خسر کور ته ورځي خو نفقه د ماينې نه ده پر لازمه، بلکه چي د ده کورته راغله چي په اصطلاح يې واده بولي نو پر مېړه نفقه او کالي او خونه د اوسېدو واجب ده، لکن په نهايه کي وايي چي شرط د نقل د مېړه کور ته نه دي لازم په ظاهر الرواية کي، په مبسوط کي وايي چي وروسته تر صحت د عقد نفقه د ښځي لازمه ده که څه هم د پلار په کور کي وي او د مېړه کور ته واده سوې نه وي، وهو ظاهر الرواية كذا فی العناية.

**درويش وايي**:- حکم په کبيره ماينه کي دي چي د پلار په کور کي ناسته وي، نه په صغيره کي لکه امام شافعي رحمه الله چي وايې چي نفقه د ښځي لازمه ده که څه هم په زانګو کي وي.

**مسئله**:- که صغيره ښځه يعنى نابالغه د مېړه کور ته واده سوه نو که قابله د وطي وه چي بعض فقهاوو رحمه الله يې تقدير په نهه (۹) کاله سره کړي او بعض فقهاء وايي چي تقدير نه دی صحيح ولي هغه په بدن پوري د ښځي اړه لري حتى چي بعض نابالغه نجوني چي په صورت ډېري چاغي وي پر (۸) اته کاله مثلا دا قابل د وطي وي، او که چېري داسي صغيره وه نو نفقه يې واجبه ده، او که داسي صغيره وه چي قابل د وطي خو نه وه لکن مشتهاته وه چي مېړه بيله کوسه په کوناټو وغيره کي نفع پر اخستاى سوه نو د هغې نفقه هم واجب ده، کذا فی الذخيره.

اوکه دومره صغيره وه چي داغه قدر نفع هم مېړه نه سواى پر اخستاى نو نفقه يې نه ده واجبه که څه هم په کور کي د مېړه وي، کذا فی کمال الدرايه

**قال القدوري رحمه الله "يعتبر ذالك بحالهما موسرا كان الزوج او معسر"** اعتبار د نفقې په حال پوري د مېړه او ماينې دواړو اړه لري کې مېړه غني او که مسکين وي د دې مسئلې خصاف رحمه الله داسي تفصيل کړي دي که چېري مېړه غني وو او ماينه هم غني وه نو پر مېړه د اغنياو نفقه واجبه ده، او که مېړه مسکين وو او ښځه هم مسکينه وه نو پر مېړه نفقه د مسکينانو لازمه ده، او که مېړه غني وو او ښځه مسکينه وه نو پر مېړه تر غني ښځي کښته او تر مسکيني ښځي بالا نفقه واجبه ده، او که مېړه مسکين وو او ماينه يې غني وه نو د مسکيني ښځي تر نفقې لږ لوړه او د غني ښځي تر نفقې لږ کښته نفقه واجبه ده، او شيخ ابوالحسن الکرخي رحمه الله وايي چي اعتبار په غني او مسکنت کی حال لره د مېړه دي، وهو قول الشافعي رحمه الله ايضا ويدل على مذهبه قوله

تعالی، لينفق ذوسعة من سعته ومن قدر عليه لذقه فلينفق مما آتاه الله" فالله عز وجل اعتبر حال الزوج فی الايسار والاعسار.

**درويش وايي**:- چي تحقيق د دي مسئلې اختلافيه دي، په ردالمحتار او شرحو کي د قدوري دي مطالعه سي.

قال القدوری رحمة الله عليه " فان امتنعت من تسليم نفسها حتٰى يعطيها مهرها فلها النفقة" او که مايني منع وکړه د تسليم د خپل ځان ومېړه ته يعني کور ته د مېړه نه ورتله، تر هغو پوري چي زما ولور راکوي نو دې لره نفقه سته يعني ناشزه نه ګڼل کيږي ولي دا خپل حق غواړي، ظلم د ميړه په خوا کی دی.

قال" وان نشزت فلا نفقة لها حتٰى تعود الی منزله" او که ماينه د ميړه د کوره ووتل نو نفقه يې نسته څو بېرته راځي د ميړه کورته ولي د مېړه د خوا چي پر دې باندي بنديز وو هغه دې ختم کړي او نفقه خو جزاء د احتباس وه، او چي بېرته د ميړه کور ته راسي احتباس دې راوګرځاوه نو نفقه يې حق دي.

**مسئله**:- که ماينې د مېړه په کور کي خو وه لکن کوس يې نه ورکاوه نفقه يې واجبه ده، ولي احتباس خو باقي دي او پاته کوس نه ورکول هغه خو د مېړه د وسه پوره ده په زور دي کار او وطي ورسره وکړي، کذا فی الهدايه.

قال القدوري رحمة الله عليه " وان کانت صغيرة لايستمع بها فلانفقة لها وان سلمت اليه نفسها" او که چېري ماينه ښځي کوچنۍ وي چي په هيڅ وجه د دې څخه مېړه نفع نه سي اخستلای نه په جماعو او نه د کناتو د انزال په واسطه نو د نفقي حق نه لري ولي مانع د نفع اخستولو

د دې د خوا دي چې د دې صغر دي، لکن ولور يې حق دي که څه هم دا وسپاري خپل ځان ومېړه ته، او که چېرې مېړه د ساتېرې د پاره او يا د کور د خدمت د پاره دا په کور کې ساتلې وه بيا يې نفقه واجبه ده جوهره.

قال رحمه الله " وان كان الزوج صغيرا لايقدر على الوطى والمرئة كبيرة فلها النفقة من ماله" او که مېړه کوچنی وو د ماينی د وطي قدرت يې نه درلود او ماينه يې لو وه نو نفقه يې حق ده د مېړه د مال څخه ولې چې عجز د جماعو څخه خو د مېړه د خوا دي د دې د خوا نه دي، او که دواړه کوچنيان وه د وطي قابل يو هم نه وو نو بيا يې نفقه نه ده واجب حتى چې حد ته د استمتاع رسېږي، جوهره.

قال القدوری رحمه الله " واذا طلق الرجل امرئته فلها النفقة والسكنى رجيعا كان او بائنا" او که طلاقه کړه يو سړي ماينه خپله نو دې لره نفقه سته او د اوسيدو ځای هم که رجعي طلاق وي او که بائن او امام شافعی رحمه الله وايې چې په بائن طلاق سره طلاقي سوي ښځي لره نفقه نسته مګر که حامله وه نو په سببه د حمل چې د نر ولد دي نفقه د مور يې واجب ده. والدلائل للفريقين طويلة الازيال والتفصيل فى الشروع وبحر الرائق والشامى وفتح القدير وغير.

قال القدوری رحمه الله " ولا نفقة للمتوفى عنها زوجها" او نفقه نسته هغي ښځي لره چې مېړه ځندي مړوي يعني نفقه د عدي د مياشتو نه لري ولې داچې په کور کې بندي ده د حق الزوج په سبب نه ده، بلکه عدت د وفات حق الله دي، او دا اوسېده د دې د ميړه په کور کې عبادت موجب دي د ثواب د دې د پاره او په دې عده برائت د رحم د دې هم نه

دي مقصود، كه هغه واى نو عده بې په حيضو وايې او بله خبره دا ده چي نفقه د عدې د ورځو خو كرار كرار پر مېړه لازمېږي، مېړه چي مړ سو نو خو دى هيڅ ملك نه لري، هدايه در.

قال القدوری رحمة الله عليه " وكل فرقة جائت من قبل المرئة بمعصية فلا نفقة لها" او هر جلاوالي د مېړه او د مايني چي د مايني د خوا راسي په يوه ګناه سره لكه ښځه چي د مېړه د بلي مايني د زويه سره زنا وكړي، او يا مرتده سي نو د نفقې حق نه لري ولي خو دې بغير حقه ځان د مېړه څخه بند كړي، كذا في الهدايه.

**مسئله**:- اوسېده په كور كي د مېړه مستحق او واجب دي نو د دې په معصيت سره نه ساقطيږي، عنايه.

قال المصنف رحمة الله عليه " وان طلقها ثم ارتدت سقطت نفقتها" او كه مېړه ماينه طلاقه كړه يعني دا مسلمانه وه وروسته تر طلاق دا مرتده سوه نفقه يې ساقطه سوه ولي حق د مېړه چي عده ده او يا رجوع ورته كول كه طلاق رجعي واى د دې د معصيت په سبب ساقط سو، نو حق د دې چي نفقه وه هم دې په لغته ووهله، او كه د مخه تر طلاق مرتده سوه هم نفقه يې نسته بلكه په طريق اولى.

قال المصنف رحمة الله عليه " وان امكنت ابن زوجها من نفسها فان كان بعد الطلاق فلها النفقة وان قبل الطلاق فلا نفقة لها" او كه قدرت وركي ښځي د مېړه و زوي ته پر خپل ځان يعني وطي يې ورسره وكړي نو كه دغه وطي كه وروسته تر طلاق وې نو دي لره نفقه سته او د مخه تر طلاق وطي ورسره وكړې بيا نفقه دې لره نسته ولي په اول

صورت کي تر فرقت وروسته دې زناه وکړه او په دوهم صورت تر فرقت د مخه دي د تمکين الزوج ګناه وکړه نودې خپل حق د نفقې په خپله د لاسه ورکړي.

قال" ولو حبثت بدين" او که بندي سوه ښځه يعني ماينه د سړي په پور کي چي پر دې باندي وو.

**پوه سه**:- چي په مبسوط او په جامع کي وايي که ښځه ظلما بندي سوې وه يعني بېله پوره، د هغې هم دغه حکم دي.

او غصبها رجل کرها فذهبت بها" او يا غصب کړې وه دا ښځه يو سړي نو يې بېولې وه د کوره څخه.

**پوه سه**:- چي ذهب بها تفسير د غصب دي ولي چي د کور يې نه بوزي هغه خو غصب نه دي.

او حجت مع محرم" او ياحج ته تللې وه سره د محرم سړي.

فلا نفقة لها" نو په درو سره صورتو کي دې لره نفقه نسته، ولي چي احتباس د مېړه فوت سو لکن دا مذهب دي د امام اعظم رحمه الله او د امام محمد رحمه الله، او صحيح هم دغه مذهب دي او امام ابو يوسف رحمه الله وايي که ښځي چي په پور کي بندي سوه، او دې قدرت پر آدا کولو د پور نه درلو دي او يا ظلما بندي وه نفقه يې حق ده، لکن په مجمع الانهر کي وايي که مېړه وه بندي خانې ته رسېدي او د دي سره يې وطي کولای سواى نو نفقه يې واجب ده.

قال المصنف رحمه الله " واذا مرضت في منزل الزوج فلها النفقة" او که ښځه ناجوړې سوه په کور کي د مېړه نو دې لره نفقه سته

ولي دې خو خپل ځان مېړه ته سپارلي دي، او احتباس د دې هم موجود دي او ناجوړي خو د طرف ځخه د خداي پاك ﷻ ده، او مېړه كه وطي نه سي ورسره كولاى په سبب ددې د ناجوړي لكن بيا هم خو يې په دې د كور دروازه خلاص ده، او د وحشت د يوازي والي خو مېړه په دې سره د ناجوړي خلاص دي نو دا ناجوړي لكه حيض داسي ده، نو دا ناجوړي مانع د حق د دې چي نفقه ده نه ده لكه حيض چي كه څه هم مانع ده وطي دي لكه نفقه يې واجب ده.

**مسئله**:- كه ښځه د پلار يا ورور په كور كي ناجوړې سوه بيا نفقه يې نسته، ولي احتباس د مېړه د خوا فوت سو او نفقه خو كما مر جزا د احتباس ده.

قال رحمة الله عليه " وتفرض على الزوج نفقة خادمها اذا كان موسرا ولايفرض لاكثر من خادم واحد" او فرض ده پر مېړه نفقه د خادم د ماينې يعني كه ماينې د كور يو خادم ښځه پيدا كړي وه د هغې نفقه هم پر مېړه واجب ده لكن چي مېړه د ښځي غني وي، او كه مسكين وو فلا يكلف نفسا الا وسعها ، دليل د لزوم د نفقې د خادم دادي، چي هغه شيان چي ماينه په كور كي احتياج ورته لري هغه پر مېړه دي نو خادم هم د ما تحتاج اليه ځخه دي، او نه ده فرض نفقه د بالاتر يوه خادم ولي چي ضرورت ورته نسته.

قال رحمة الله عليه " وعليه ان يسكنها فى دار مفردة ليس فيها احد من اهليه الا ان تختار ذالك" او فرض ده پر مېړه باندي چي ماينه به اوسوي په جلا سراى كي چي په هغه سراى كي هيڅوك د قريبانو ځخه ددد نه وي ولي د هر ځله ښځه د قريبانو ځخه د مېړه تنګيږي يعني په

سرخي وو سپيده د مېړه سره ازاده ګوزاره نه سي کولای بلکه د خسر او خواښې او د خوندو د مېړه غالبا په جنګ او جدل به اخته وي، کماهو المجرب في زماننا، مګر که دې ماينې خوا بده کړه چې زه ستا د قريبانو سره اوسېږم نو بيا عليحده سرای پر مېړه فرض نه دي لکن، درويش وايي، چې دا به ډېره نادره ښځه وي.

**واقعه**:- زموږ کور ته يو وخت ښځې راغلي وې زموږ د ښځو سره يې مجلس کاوه زه پخپله خونه کې ناست وم او دوي د باندې، نو يوې ښځې وبلې ته چې هغې بلې ښځې لور چاته ورکړې وه دې ښځې ورته وويل چې، تاچې لور ورکړې ده زوم دې ټکټر او ټپله درلوده؟

هغې ورته وويله هو درلوده يې نو هغې بلې ښځې ورته وويل چې نو دې ولې لور ورکول ظالمې، زه ودې خبرې ته حيران سوم چې ټکټر او ټپله په نکاح پورې څه اړه لري وروسته چې هغه ښځې ولاړې ما د خپلو ښځو څخه پوښتنه وکړه چې دا ټکټر او ټپله دې ښځو څه شي بولي هغو راته وويل چې د ټکټر څخه مراد خسر وو او د ټپلې څخه مراد خواښې وه.

قال القدوري رحمة الله عليه " وللزوج ان يمنع والديها وولدها من غيره واهلها من الدخول عليها" او مېړه دا حق لري چې منع کړي مور او پلار د ماينې او زوی د ماينې چې د بل مېړه څخه وي او نور قريبان د دې لکه ورونه او خوندي د دې چې سرای ته د مېړه د ننه د ملاقات دده د ماينې د پاره ورځي ولې چې کور خو خاص ملك د ده دي نو دي حق لري چې بل څوك ځندي منع کړي.

قال القدوری رحمة الله عليه " ولايمنعهم من النظر اليها ولامن كلامهم معها في اى وقت اختاروا" اونه دي منع كوي مېړه مور او پلار يعني او نور محرمان د ماينې د كتلو ځخه ودې ته، او نه دي منع كوي د خبرو ځخه ددې سره يعني د سراي په دروازه كي. ولي په داسي منع كي خو قطعه د وصلي رحمي د دې او د قريبانو تر مابين راځي، او دا قطعه حرام ده او د مېړه په دې كي ضرر هم نسته ولي چي داخل ته د سراى د ده نه ورځي نو دا ملاقات هروخت چي د قريبانو زړه وغواړي كه د شپې او كه د ورځي، هدايه.

**درويش وايي**:- كه د قريبانو په دخول وه سراى ته د دوي مېړه ضرر ليدي نو په منع كولو كي كراهت هم نسته، او كه يې صرف دوي په دغه منع سره زهېروله نو بيا يې منع كول مكروه دي.

قال المصنف رحمة الله عليه " ومن اعسر بنفقة امرئته لم يفرق بينها" او كه مېړه مسكين وو په وركه كي د نفقې د ماينې يعني د طاقت يې نه وه پوره جلاوالي دي نه كيږي په مابين كي د دوي يعني قاضي دې حكم په جلا والي نه كوي ولي چي تفريق خو خالص ضرر د مېړه دي او تاخير د نفقې خو ډېر ضرر د ماينې نه دي ولي خو دابه استدانت وكړي پر مېړه كما سيئاتى، او امام شافعي رحمة الله عليه وايي چي فورا دې سره جلا كړي، دى قياسه وي پر مجبوب او پر هغه غني مېړه چي نفقه ماينې ته نه وركوي مور وايو چي دا قياس مع الفارق دي، كما لايخفى.

ويقال لها استدانى عليه" او د قاضي د خوا دي وويل سي ښځي ته چي ته طلب د پور كوه د خلكو ځخه پر زمه د مېړه يعني د خلكو ځخه

په قدر د نفقې د دې او کوچنيانو د دې چي زما ميړه يې بيا درکوي د قاضي په امر د استدانت، فائده داده چي ښځه بل وخت د پوره ورړو حواله په امر د قاضي پر مېړه کولای سي.

قال القدوری رحمه الله " واذا غاب الزوج وله مال فی يد رجل يعترف به وبالزوجية فرض القاضی فی ذالک المال نفقة زوجة الغائب واولاده الصغار ووالديه ويامنها کفيلا بها ولايقضی بنفقة فی مال الغائب الا لهٰؤلاء" او که مېړه د ښځي غائب وو او ده مال درلودی په لاس کی د يو سړي يعني که يې پور پر باندي وي او که يې امانت ورته ايښي وي او هغه سړي هم اقرار کاوه په مال د غائب چي زما سره سته او په دې يې هم اقرار کاوه چي دغه غائب د دې ښځي ميړه دي يعني که هغه سړي يا خو اقرار په مال د غائب د ده سره نه کاوه، بلکه منکر وو، او يا يې اقرار په مال د غائب خو کاوه مګر د دې ښځه چي دغه ښځه د هغه ماينه د منکر وو، نو بيا قاضي پر دغه سړي د غائب د ماينې او د عيال د هغه نه سي فرضولای، او چي دا دوه شرط پيدا وي نو دي قاضی مقرره کړي نفقه دي ښځي او د کوچنيانو د دې او د مور او پلار د مېړه، يعنی چي دوی محتاجه وي، په هغه مال کي د غائب يعني په قدر د کفايت او قاضي دي ضامن واخلي د ښځي څخه چي ماته دومره نفقه رسېدلې ده تاچي بله ورځ انکار ونکړي او قاضي دي حکم نه کوي په مال کي د غائب په نفقې سره د ماسوی د دغو مذکوره کسانو.

قال القدوری رحمه الله" واذا قضى القاضى لها بنفقة الاعسار ثم ايسر فخاصمته تمم لها نفقة الموسر" او كه قاضي حكم وكړي پر مېړه د ماينې د پاره په نفقه د مسكنت يعني چي مېړه مسكين وو او وروسته مېړه غني سو او ماينې يې دعوه د نفقه ايسار وكړه نو قاضي دي وريوره كړي ودې ته نفقه د موسر او غني مېړه يعني پر مېړه دي حكم وكړي چي نفقه د غني وركوه.

قال" واذا مضت مدة ولم ينفق الزوج عليها وطالبته وبذالك فلاشيئ لها الا ان يكون القاضى فرض لها نفقة او صالحت الزوج على مقدارها فيقضى لها بنفقة مامضٰى" او كه يوه مده تېره سوه او مېړه نفقه نه وه وركړې ماينى ته، وروسته ماينې طلب وكي د تېرو سوو مياشتو مثلا د نفقې نو دې لره د مامضٰى د نفقې حق نسته ولي چي نفقه د ماينې شرعا صله رحمي ده د مېړه د خوا، ولاتملك الصلة الا بالقبض" مگر هغه وخت د مامضٰى نفقه د دې حق دي كه قاضي ودې ته نفقه ايښې وه ولي حكم د قاضي نافذ دي پر هرچا، او يا مېړه او ماينې د مخه لا پر اندازه مقدار د نفقې صلح سره كړې وه نو بيا هم ښځه مطالبه د مامضٰى د نفقې كولاى سي ولي چي د دوي ولايت پر خپلو ځانو بالا دي تر ولايت د قاضي پر دوي باندي.

**درويش وايي**:- چي په دې مسئله كي امام شافعي رحمه الله مخالف دي ومزيد التفصيل والدلائل يطلب من الشروح.

فيقضٰى لها بنفقة مامضٰى" نو حكم دي وكړه سي په نفقه د تېري زمانې د ښځي د پاره په دواړو صورتو كي.

قال" فان مات الزوج بعد ماقضٰی علیه بالنفقة ومضت شهور سقطت النفقة" او که مړ سو مېړه پسله دې څخه چې پر ده باندي قضاء او حکم د نفقې سوي وو او څو میاشتي تېري سوې نفقه ساقطه سوه، په مجمع الانهر کي وایي که مایني پور کړي وو په امر د قاضي نو هغه نفقه نه په مرګ اونه په طلاق ساقطیږي، وهو الصحیح ولي چي قاضي ولایت همه جانبه لري، نو پور کول د ښځي په امر د قاضي لکه پور پخپله د مېړه د نفقې د مایني د پاره او هغه په مرګ د مېړه نه ساقطیږي نو د قاضي په امر پور هم په موت د زوج نه ساقطیږي یعني ورثه به يې د ده د ماله څخه ورکوي، دلیل د سقوط د نفقې چي په متن کي ذکر سو هغه خبره ده چي موږ قبلا ذکر کړه چي نفقه شرعا صله رحمي د مېړه د خوا او صلاحت قطعه سو ولي په مرګ سره مال د وارثانو حق دي، په مرګ قبل القبض ساقطیږي لکه هبه قبل القبض، کذا فی الهدایه ودر.

قال المصنف رحمة الله عليه " وان اسلفها نفقة سنة ثم مات لم یسترجع منها بشئ" او که پېشکي ورکړې وه مېړه مایني ته نفقه د یوه کال او مېړه مړ سو یعني تر کال تېرېدو د مخه نو طلب د بېرته ورکولو د مایني څخه نسي کیدای یعني ورثه د میت دا دعوه نه سي کولای ولي چي موږ وویله چي نفقه لکه هبه ده او هغه بعد القبض، وموت الواهب ورثه حق د بېرته اخستو نه لري، فکذا النفقة.

وقال محمد رحمة الله عليه یحتسب لها نفقة مامضٰی وما بقی للزوج" او امام محمد رحمة الله عليه وایي چي ښځي ته دي په حساب د تېرو

سوو میاشتو نفقه وربرېږ دي او پاته نفقه د مېړه ده، یعني ورثه د مېړه دي د ښځي څخه بېرته واخلي، وهذا مزهب الشافعی رحمه الله ایضا والدلائل فی المبسوطات.

قال المصنف رحمه الله واذا تزوج العبد حرة فنفقتها دین علیه یباع فیها" او که چیري په نکاح کړه مریي حره ښځه نو د هغې نفقه پور دي پر ده چي مریي پکښي خرڅېږي. تفصیل المقام، که مریي ماینه وکړه بېله اجازې د بادار نو نکاح یې نه ده صحیح، نو نفقه هم حق نه لري که څه هم وطي ورسره وکړي نو مریي د هغې په نفقه کي نه خرڅیږي، او دغه رنګه په ولور کي د هغې پر بادار نه ده لازمه چي مریي به خرڅوي، ولي چي مریي خو د نکاح په باره کي ممنوع وو، نو وجوب د مهر یې د بادار پر ذمه نسته البته چي مریي ازاد سي بیا به یې ماینه مطالبه د مهر څندي کوي او مولي کولای سي چي د طرف د ده څخ فدیه د ولور ورکړي او که مریي مړ سو بیا ولور ساقط سو، او د حري د قید فائده داده که مریي مینځه د بل سړي په نکاح کړه نو هغه مستحق د نفقې نه ده چي بادار د ښځي دوي دوه یوځای شپې تېرولو ته پرې نږدي، او که یې حره ښځه په اجازه د مولي په نکاح کړه نو نفقه د هغې او دغه رنګه ولور د هغې پور دي په زمه کي د مریي نو چونکه نکاح په اجازه د بادار ده نو دا پور نقل کېږي ورقبه‌ته د مریي چي ملك د مولی ده نو ځکه مریي پکښي خرڅېږي چي مولي یې برداشت د پور نه لري، لکه چي پر عبد ماذون فی التجارة پور باندي سي، نو مریي په هغه پور کي خرڅېږي، فکذا فی نفقة الحرة ومهر.

قال المصنف رحمه الله " واذا تزوج الرجل امة فبوئها مولاها معه منزلا فعليه النفقة وان لم يبوئها فلا نفقة لها عليه"
او که يو سړي په نکاح کړه مينځه يعني د بل سړي نو بادار د مينځي دوي دوه سره الـه کړه په يوه کور کي نو پر مېړه نفقه د هغې مينځي ماينې واجبه د ولي چي احتباس د مېړه د خوا پر دې راغلي او جزاء د احتباس نفقه ده، او که مولي پسله يوځای کېدو ځخه د مينځي او مېړه د مينځي ځخه د کور د خدمت طلب وکړي نفقه د مېړه ځخه ساقطه سوه ولي چي مينځه د ده د احتباس ځخه ووتله، او که بادار خو د دې ځخه طلب د خدمت نه کاوه لکن دې ګاهي ګاهي د بادار د کور خد مت ورکاوه بيا نفقه پر مېړه لازمه ده، او که بادار خپله مينځه د مېړه سره نه کړه يوځای بيا حق د نفقې نه لري.

قال القدوری رحمه الله " ونفقة الاولاد الصغار على الاب لا يشاركه فيها احد كما لا يشاركه فى نفقة الزوجة احد"
او نفقه د کوچنيانو اولادو پر پلار ده په لزوم کي د نفقې د دوي هيڅوک نه دي ورسره شريك، يعني نه لويان ورونړه نه اکاګان وغيرهم لکه په نفقه کي د ماينې د سړي چي هيڅوک يې په نفقه کي ورسره شريك نه دي، قال الله تعالى وعلى المولود له رزقهن، او مولودله پلار ته وايي.

قال" فان كان الصغير رضعيا فليس على امه ان ترضعه ويستاجر الاب من ترضعه عندها" او که کوچنی شير خوره وو نو پر مور يې لازمه نه ده يعني شرعا چي ودې خپل زوي ته تی ورکوي، ولي چي نفقه د کوچني خو پر پلار ده او رضاع خو د کوچني نفقه ده، او مور

به يې شايد د تي ورکولو ښځه عاجزه وي، او دليل د عجز د دي امتناع د رضاع ښځه ورنه کوچنی خو پر مور تر پلار ګران وي، قال الله تعالى "لاتضار والدة بولدها" يعني ضرر دي نه رسول کېږي ومور ته په سبب ددې د کوچني، يعني سره د عجزه پلار دا مجبوره کوي پر رضاع باندي، او سره ددې فقهاء رحمهم الله وايې چي د جهت د تقوٰي دي مور امر سي چي تی ورکوه، نو دا رضاع داسي ده لکه د ښځي جارو کول د کور ډوډۍ او دېګ پخول د کور کالي د مېړه پرېول، که څه هم قاضي يې نه سي مجبوره کولای پر دغو کالو لکن ديانة پر دې واجب دي، او پلار به د کوچني د پاره بله ښځه شيدې ورکونکې پيدا کوي چي هغه به هم کوچني ته شدې ورکوي د مور په حضور کي.

**مسئله**:- که د کوچني پلار ته مرضعه نه پيدا کېده او يا کوچني د بلي ښځي تی نه رودي نو بيا دې مور مجبوره کړي پر رضاع باندي ولي چي کوچني ضائع نسي، او دې مذهب ته قدوري رحمه الله او شمس الائمه السرخسي رحمه الله تللي دي، او په ظاهر الروايـة کي وايې چي په دغه صورت کي دي هم مور نه مجبوره کوي پر رضاع ولي چي کوچني نه ضائع کېږي په غوړو يا بارتنګو يا په تورو چايو هم ژوند کولای سي، وفی المجتبى الاصح انها تجبر فی تلك الحالة وبه جزم فی الهدايه، والخانيه وعلى هذا الفتوی، وفی فتح القدير هو الاصح، ولي چي کوچنی بېله شيدو د ښځي ناجوړی کېږي.

**درويش وايې**:- چي دا فتوٰی په پخوا زمانې پوري مبني ده چي کوچني ته به يې د مور د شيدو پر ځای يا غوړي يا بارتنګ ورکوله او يقينا په هغه سره کوچني مريض کيدي او دائمي ژوند يې نه سوای په کولای،

واما اليوم والزمان الحاضر فالفتوىٰ عندى علی ظاهر الرايه، ولي په ډاكټري نصاب كي د هر عمر كوچنيانو لپاره خارجي د عيبه پاكي شيدې يعني پوډر راځي چي په هغو شيدو سره په بعض اوقاتو د مور تر شيدو بالا كوچني وده او پرورشت كوي، كما هو المعلوم بالتجربة، اللهم الا ان يقال ان الفتوىٰ علی خلاف ظاهر الرواية كما صدر عن هٰؤلاء العلماء الكرام رحمهم الله انما هو فى الصحارى البعيدة عن البلاد التى لا تصل الى تحصيل اللبن المذكور والفتوىٰ تختلف باختلاف الازمنة والامكنة ولها امثلة كثيرة فى كتب الفقه فافهم ولاتسرع فى الرد والقبول والله اعلم بالصواب.

**قال القدوري رحمه الله " فان استاجرها وهى زوجته او معتدته لترضيعَ ولدها لم يجز"** او كه سړي مور د كوچني مزدوره كړه چي خپل كوچني ته دي تی وركوه، او دا ښځه د سړي فالحال هم ماينه وه، او په عده كي د طلاق رجعي وه اجماعا ودې ته دا مزدوري اخستل نه دي روا، او كه په عده كي د طلاق بائن وه نو بيا ومور ته مزدوري اخستل روا دي، ولي د مېړه ملك په طلاق بائن سره زائل سو نوددې او اجنبيه ښځي فرق نسته يعني اجنبيه ته خو مزدوري اخستل روا وه ودې مطلقې ته كه څه هم په عده د طلاق بائن وي مزدوري اخستل روا دي، وهو الصحيح، جوهره، در.

او دليل د عدم جواز د مزدوري اخستلو په صورت كي د ماينې او يا دعدې د طلاق رجعي دادي چي خداي پاك جل جلاله وايي "والوالدات يرضعن اولادهن حولين كاملين الآية" كه څه هم عبارت قرآني جمله خبريه ده لكن

دلته په معنا د امر ده يعني مندي به لزوما شدي وركوي وخپلو عيالو
ته پوره دوه كاله.

**سوال**:- چي امر الهي موجود دي نو مېړه ولي ښځه نسي مجبوره
كولای پر ارضاع د كوچني كما مر فى متن السابق؟

**جواب**:- عدم جبر خو په دې سبب وو چي مونږ وايو چي شايد مور به
معذوره وي د ارضاع څخه لكن اوس چي دې اقدام وكړي پر ارضاع د
مزدورۍ په سبب نو مونږ ته دا معلومه سوه چي دا د ارضاع څخه عاجزه
نه ده، مجمع، در.

قال القدوري رحمه الله " وان انقضت عدتها فاستاجرها على
ارضاعه جاز" او كه د ښځي عده تېره سوه او بيا ددې مېړه دا مزدوره
كړه پر رضاع ددې ولد هغه روا ده، ولي چي نكاح په تېرېدو د عدې
بالكل د مابين څخه ولاړه او دا بېگانه ښځه سوه، هدايه.

قال" وان قال الاب لااستاجرها وجاء بغيرها فرضيت الام
بمثل اجرة الاجنبية كانت الام احق به وان التمست زيادة لم
يجبر الزوج عليها" او كه مېړه وويل چي زه دا مطلقه چي عده يې
تېره سوي ده، د ولد د رضاع د پاره نه مزدوروم بلكه بېگانه ښځه
مرضعه يي پيدا كړه، نو هغه مور د كوچني راضي سوه د هغې بېگانه
ښځي په مقدار د مزدورۍ يعني د مخه يې ډېر مقدار مزدوري غوښته
لكن اوس راضي سوه، نو مور حقداره ده تر بېگانه ښځي ولي د مور
شفقت ډېر دي، او د خپل ولد ښه پالنه كوي تر بېگانه ښځي كما
لايخفى، درويش.

قال القدوري رحمه الله " ونفقة الصغير واجبة على ابيه وان خالفه في دينه كما وجبت نفقة الزوجة على الزوج وان خالفته في دينه" او نفقه د نا بالغه اولاد واجبه ده پر پلار يعني كه كوچني مال نه درلودي، يعني چي يوچا وصغير ته مثلاً هبةً روپۍ نه وي وركړي كه څه هم صغير مخالف وي په دين كي د پلار څخه مثلاً پلار يې يهودي يا نصراني وي او كوچنى كه څه هم نا بالغه وي لكن عاقل وي او دين د اسلام يې قبول كړي وي، نو كه يې پلار غني وي او كه مسكين نفقه د زوي پر واجبه ده، لكه چي واجبه ده نفقه د مايني پر مېړه كه څه هم زوجه په دين كي مخالفه وي، مثلاً مېړه يې مسلمان وي او ماينه نصرانيه وي، وجه د وجوب د نفقې د مايني داده چي دا نفقه لكه ولور د ښځي په عقد كي د نكاح واجبه ده، او هر هغه مال چي په سبب د عقد لازم سي او عقد صحيح هم وي كما مثلنا هغه په اختلاف سره د دين كار نه لري لكه ثمن د مبيعې، او دليل د نفقې د صغيرانو پر پلار هغه حديث دي چي هنده چي ماينه د ابي سفيان رضي الله عنه وه وعليه السلام ته يې وويل چي ابو سفيان ډېر بخيل سړي دي، ماته او زما اولاد ته دونده شي نفقه نه راكوي چي زما او د عيال بس سي نو عليه السلام ورته وويل چي "خذى من ماله ما يكفيك وولدك بالمعروف" يعني په پټه دده د ماله څخه دومره شى اخله چي ستا او د عيال بس سي لكن بالمعروف يعني بېله اسرافه بالكه معتاده نفقه اخله، بخاري، قطع، درويش.

## زېرى

**اسانه فقه پښتو چي پر مسائل دينيه وو مشتمله ده ډېر ژر به چاپ شي.**

# كتاب الحضانه

كتاب ثابت دي په بيان كي د روزني د كوچنيانو، يعني چي د مېره او
مايني تر مابين جلاوالي راسي په سبب د طلاق د عيال د روزني حق د
چا دي.

قال" واذا وقعت الفرقة بين الزوجين فالام احق بالولد ، وان
لم تكن الام فام الام اولى من ام لاب فان لم تكن ام الام فام الاب
اولى من الاخوات فان لم يجد جدة فالاخوات اولى من العمات
والخلات" او كه جلا والي راغلي په مابين كي د مېره او مايني، فالام
يعني مور د كوچني ډېره حق داره ده يعني تر ټولو قريبانو د كوچني، په
صحيح حديث كي راغلي دي چي يوه ښځه وعليه الصلوٰة والسلام ته
راغله او داسي يې ورته وويل چي زما زوي زما نس يعني زما رحم دده د
پاره ظرف وو، او زما غېږ دده د پاره ځاي وو، او زما تى دده د پاره
مشكوله وه، او اوس يې پلار زما څخه ګرځوي، نو عليه الصلوٰة والسلام
ورته وويل چي ته حق داره يې تر پلار د كوچني چي تا مېړه نه وي كړي،
او بله خبره داده چي مور اشفق ده پر ولد تر پلار او په تربيه د كوچني ښه
پوهېږي تر پلار، او په حديث آخر كي راغلي دي چي څه فرقت واقع سو
په مابين كي د عمر ﷺ او دده د مايني او عمر ﷺ غوښتنه د اولاد كوله،
نو ابو بكر صديق ﷺ په لويه مجمعه كي د صحابه وو ﷺ حضرت عمر ﷺ
ته داسي وويل، چي د مور ناړي ستا تر عسلو ډېري فائده مندي دي
كوچني ته، نو حضرت عمر ﷺ هم راضي سو او صحابه ﷺ وو هيڅ چا
ترديد د رايي د حضرت ابو بكر ﷺ ونه كړي فكان اجماعا منهم،

درویش ناقلا من المواضع المختلفة، او که چیري د کوچني مور نه وه
یعني یا مړه وه او یا یې بل مېړه کړي وو نو هغه لکه مړه دا سي ده ولې
چې د موجوده مېړه د زاړه مېړه د اولاده څخه عموما بد راځي، نو بیا د
مور مور ده چې د کوچني انا کېږي د مور د خوا اولی په حضانة د
کوچني ولې چې مذکوره انا په شفقت کي لکه مور د کوچني دا سي دي
کما یدل علیه التجربة، تر ام الاب، او که ام الام نه وه یعني مړه وه بیا نو
ام الاب اولی ده په حضانة کي د کوچني تر خوندو، ولې چې هغه انا په
جمله کي د مندو ده او شفقت یې تر خوندو ډېر دي، او که چیري انا نه
وه نه د مور د خوا نه د پلار د خوا بیا نو خوندي د کوچني اولی دي تر
عمه ګانو او خاله ګانو دده په سبب د قرب قرابت تر عمه او خاله.

**پوښتنه:-** چې بعض فقهاء وایي چې خاله تر خوندو اولی ده، یقول
علیه الصلوٰة والسلام الخالة والدة، ای مثل الوالدة والتجربة یشهد
بذالک.

قال القدوري رحمه الله " وتقدم الاخت من الاب والام ثم الاخت لام
ثم الاخت لاب" او د مخه ده خور د کوچني چې په مور او پلار دواړو یې
خور وي، ولې چې دوه قرابت والا بهتره ده تر یوه قرابت والا، ثم او
وروسته د مخه ده هغه خور چې د مور د خوا د کوچني خور وي، ولې
چې د مور طرف ترجیح لري د پلار پر طرف، او وروسته نو خور د پلار د
خوا یعني تر عمه ګانو او خاله ګانو ترجیح لري، او که دا ټولي نه وي بیا
نو حضانت د عمه ګانو او خاله ګانو دي.

قال" وینزلن کما نزلت الاخوات ثم العمات ینزلن کذالك"
او ترتیب لري خاله ګاني لکه ترتیب د خوندو، یعني ذات قرابتین اولی

دي تر ذات قرابة واحدة وروسته ذات قرابة الام اولی ده تر ذات قرابة الاب، او عمه ګاني هم پر دغه ترتيب دي.

قال" وكل من تزوجت من هٰؤلاء سقط حقها فى الحضانة الا الجدة اذا كان زوجها الجد" او هري ښځه ددغو مذکوراتو څخه که يې مېړه وکړي د هغې حق په حضانت کي ساقط سو، مګر نه انا د کوچني چي مېړه د هغې د کوچني نيکه وي، که د مور د خوا نيکه وي که د پلار د خوا، په حديث شريف کي راغلي دي چي يوه ښځه يعني چي دا او ددې مېړه سره جلا سوي وه، په باره کي يې د خپل ولد د ﷺ څخه پوښتنه وکړه نو ﷺ ورته وويل چي ته حقداره يې د ولد چي مېړه دي نه وي کړي، او وجه ددې خبري داده چي مونږ مخ کي وويل چي د ښځي د نوی مېړه د زاړه مېړه و عيال ته په ډېر ذلت ګوري او بد يې اسېږي. او په دې کي معلومداره ضرر د کوچني دي، نو ځکه حق د حضانت ددغو ښځو ساقطېږي.

قال القدوري رحمه الله" فان لم تكن للصبى امرئة من اهله فاختصم فيه الرجال فاولاهم به اقربهم تعصيبا" او که نه وه د کوچني د قريبانو څخه ښځه چي ذکر يې تېر سو په ترتيب سره، نو په کوچني دعوه وسوه د نرو قريبانو يعني دصبي په حضانت کي، نو اولی د نرو هغه قريب دي چي اقرب ددوي وي په عصوبت کي.

**پوه سه**:- چي د عصباتو بعد او قرب دي په سراجي کي په باب کي د عصباتو مطالعه سي اجمالا بيان يې دادي چي پلار تر ټولو اولی دي، او بيا نيکه تر ټولو مقدم دي او تر هغه وروسته ورور د کوچني چي لاب او ام وي، وروسته زامن دي ددوي په ترتيب سره وروسته بيا اکا د کوچني

دي او بيا زامن د اکا دي اصل ددې حضانت مېراث دي، او ولايت د نکاح دي، قطع، در، مجمع، په هدايه کي وايې چي صغيره نجلۍ دي داسي نر ته په حضانت نه ورکوي چي هغه يې محرم نه وي لکه د اکا زوي تحرزاً عن الفتنة آه.

قال" والام والجدة احق بالغلام حتى ياكل وحده ويشرب وحده ويلبس وحده ويستنجي وحده" مور او انا حقداره دي په نر کوچني سره يعني تر پلار هغه وخته پوري چي ډوډۍ که وچه وي او که لنده يوازي خوړلای سي، يعني بېله دې چي بل څوك يې په خوله ورکوي، او اوبه څښلای سي پخپله يعني بېله کهمك د مور او د انا، او کالي قميص او پرتوګ وغيره اغوستلای سي يوازي، او استنجاء وهلای سي خپله يعني پرتوګانې پخپله خلاصولای سي، او بولي او غول خپله کولای سي، او استنجای هم خپله وهلای سي او بيا خپل پرتوګانې خپله يوازي تړلای سي، او امام خصاف رحمة الله عليه اوه (۷) کاله سن ورته ايښي دي، للغالب فی هذه الامور، بلکه مذکور فی المتن او د خصاف مذهب تقريباً سره يو شي دي، ولي چي عليه اسلام وايې چي تاسي امر کوي خپل کوچنيان په لمانځه سره چي اوه کاله ته ورسېږي، او دا ښکاره خبره ده چي لمونځ بېله اوداسه او استنجاء نه دي روا، او ابوبکر الرازي رحمة الله عليه نهه (۹) کاله سن ورته ايښي دي، دی وايې چي په عادت کي کوچني پر امور مذکوه وو قدرت نسي پيدا کولای تر نهه کاله په کم عمر کي، لکن فتوی پر قول د خصاف رحمة الله عليه ده.

**فائده**:- مراد د استنجاء څخه تول اودس دي، او وروسته تر دغي اندازې يې بيا پلار د مور څخه جلا کولای سي، تا چي پلار يې عادات

او آداب د نرو وروښوي. او په بيع او شرا يې اموخته کړي. او مور يا انا دونده قدرت نه لري چي کوچني ته دي آداب او اخلاق د نرو ورزده کړي قال" وبالجارية حتّى تحيض " يعني مور او انا حقداره دي په حضانت د ښځي کوچني تر هغه وخته پورې چي دې ته حيض ورځي. ولي ښځه که څه هم د نرو مذکوره مرتبې ته ورسېږي. خو بيا هم دا محتاجه ده د ښځو د آدابو زده کېدو ته. او محتاجه ده د ډوډۍ پخېدو طريقوته او د کتهوي وپخېدوته، او د کاليو رغېدو ته، وغير ذالك بما يحتاج اليه النساء في بيت الزوج، او مور او انا دا مذکوره کارونه ډېر ښه ورښولای سي تر پلار، وروسته تر دې کارو زده کړي او وروسته تر حيض دا محتاجه ده ومېړه ته او پلار په دې باره کي ښه تجربه او قدرت لري تر مور وغيره او کفو وغير کفو سره پېژني، او ښه او بد خلګ سره جلاکولای سي، ولي پېغله ښځه چي د ښځو په اختيار کي وي لويه بېره د زينا پر سته، او نر خو غيرت مند دي څوك ددوي پر پېغلو لڼو ناوړه اقدام نسي کولای، نو ځکه دي دا نجلي وپلار ته وسپارل سي، او په نوادرو رواياتو کي د هشام عن محمد رحمه الله داسي روايت راغلي دي چي نجلي چي حد ته د شهوت ورسېږي نو پلار ته دي وسپارل سي، وهٰذا صحيح وبه يفتىٰ في زماننا زمان الفتن وحب الشهوات في النساء المراحقه وكثرت الضاق، نو چي نجلۍ يولس (۱۱) کاله ته ورسېږي دا يې حد د شهوت دي او فقيه ابو الليث رحمه الله نهه کاله وحد ته د شهوت مقرر کړي دي.

**د درويش خپله ذاتي فيصله داده**:- چي د صحرا او د ښارو بايد فرق وکړل سي، ولي چي په صحراء کي يا په يوه محدوده قريه کي خو

کورونه وي ښه او بد نران پکښي معلوم وي، او نر که څه هم د زنا شوقي وي خو بیا هم د ښېري پر نا بالغه نجلۍ د بل چا تعرض نسي کولای، او بل د صحراء نجوني په خیرونو جامو کي وي او سپېره مخان یې وي، نو د چا شهوت هم نه ورته کېږي، او د صحراء نجوني ساده لوحه وي، د زنا او کوس ورکولو په قصه کي هم نه وي نو د صحراء په نجونو کي باید فتوی په قول د هشام عن محمد رحمة الله علیه چي یولس کاله دي ورکړه سي، او په ښارو کي چونکه ښځي او نجوني نر او هلکان د زنا په کار ډېر ښه پوهېږي، او د کور ښځي چي خپلي لنړي بازار یا دکان ته د سودا د پاره استوي شونډان یې ورسره کي او په بارخو ګانو سرخي ورومورېي او سپېده په وکي، نو که نجلۍ څه هم بدرنګه وي په سرخي او سپېدې او په سرو شونډانو ښائسته معلومېږي، او په ښارو کي ډېر بد هلکان سته چي تر احاطه لاندي نسي راتلای، نو ځکه په ښارو کي دي فتوی په قول د فقیه ابو اللیث چي نهه کاله یې د نجلۍ د پاره ټاکلي دي ورکړل سي.

**فائده**:- دا ټوله بیان چي درویش وکړي دا د تجربې څخه وایې، وللناس فیما یعشقون مذاهب" شاید چي ملا کندل او ملا خوشدل به وایي چي ته ځوك یې چي فتوی ورکوې.

**درویش وایې**:- چي ورور د بل په عیبو پسي مه ګرځه وخپل عیبو ته متوجه سه، عذر من صنف قد استهدف.

قال المصنف رحمة الله علیه " ومن سوی الام، والجدة احق بالجاریة حتی تبلغ حدا تشتهی" او ماسوا د مور څخه انا حقداره ده د حضانت د نجلۍ تر هغه وخته پوري چي نجلۍ وحد ته د اشتها رسېږي،

يعني چي د نر اشتها ورته كېږي، ولي د ماسوا د مور او انا ځخه پر نجونو كنټرول كم دي نو د فتني بېره سته.

قال المصنف رحمه الله" والامة اذا اعتقها مولاها وام الولد اذا اعتقت فهى فى الولد كالحرة" او مينځه چي بادار يې ازاده كړي او داغه رنګه ام الولد چي په مرګ د بادار ازاده سي نو هره يوه ددوي لكه حره ښځه ده په باره كي د ولد ددوي، يعني بادار يا ورثا د مړي حق د خصومت په حضانت كي نه ورسره لري مخروجهما عن ملكه.

قال" وليس لامة وام الولد قبل العتق حق فى الولد" او نسته مينځي او ام الولد لره د مخه تر عتق حق د حضانت په عيال كي ددوي ولي چي دوي د حضانت ځخه عاجزه دي ولي چي دوي مشغوله په خدمت د مولى د كور دي سائر اليوم.

قال" والذمية احق بولدها مالم يعقل للاديان او يخاف عليه ان يالف الكفر" او ذميه ښځه لكه نصرانيه مثلا چي د مسلمان ماينه وي، حقداره په حضانت د ولد ده تر پلار تر هغو پوري چي كوچنى د كفر او اسلام په فرق نه وي پوهېدلي، او يا بېره ددې نه وي چي د كفر سره به يې الفت پيدا سي.

قال" واذا ارادت المطلقة ان يخرج بولدها من المصر فليس لها ذالك الاان تخرجه الى وطنها وقد كان الزوج تزوجها فيه" او كه مطلقې ښځي اراده وكړه چي دا اوباسي خپل ولد د ښار ځخه يعني هغه ښار چي پلار يې په هغه ښار كي وي، نو دې لره دا حق نسته ولي چي په دې كي د پلار ضرر دي چي ګاهي به خپل عيال ليدي

او ښځه يې دده ځخه غائبه وي، مګر که ښځي ولد خپل اصلي وطن ته ورېي نو بيا حق لري، لکن په دې شرط چي مېړه دا په هغه وطن اصلي کي ددې په نکاح کړې وي، لکن که په دار حرب کي دوي نکاح سره کړې وي، نو ښځه يې دار حرب ته نه سي بيولای للخطر فی ذالك كما لايخفى، مجمع، در.

قال" وعلى الرجل ان ينفق على ابويه واجداده وجداته اذا كانوا فقراء وان خالفوه فى دينه" او پر نر يعني نه پر ښځي واجبه نه ده چي نفقه به ورکوي مور او پلار او نيکه ګانو ته چي دوي مسکينان وي، که څه هم دوي دده ځخه په دين کي مخالف وي، يعني دى مسلمان وي او هغه کافران، په هر نوع کافر چي وي، د پلار او مور د نفقې دليل دا قول د خداي پاك ﷻ دي چي په باره کي د مور او پلار نازل سوي دي، چي مور او پلار دواړه کافران هم وي " صاحبهما فى الدنيا معروفا" يعني ته ګذاره کوه د مور او پلار سره د معروف او احسان پر طريقه، او دا به معروف نه وي چي زوي ورجي او غوښي او د خداي ﷻ نور نعمتونه خوري او مور او پلار يې د لوږي مري او د نيکه ګانو او اناګانو نفقه چي پر لمسي واجبه ده ددې سببه چي دوي هم په جم کي د ابا او امهاتو دي، نو هم دا سبب دي چي پلار د مړي نه وي نيکه يې د ميراث برخه وړي، او مصنف رحمه الله ددوي فقر شرط کي ولي که دوي اغنيا وي نو نفقه ددوي په خپل مال اولى ده.

قال القدوري رحمه الله " ولا تجب النفقة مع اختلاف الدين الا لزوجته والابوين والاجداد والجدات والولد وولد الولد" او نه ده واجبه نفقه سره د اختلاف ددين مګر نه مايني لره، ولي چي په عقد د

نکاح د مېړه سره دا بندي ده وقد مر من قبل، نو چونکه نفقه د ښځي عوض د احتباس ده نو ددې سببه که دی غني هم وي نفقه یې پر مېړه واجبه ده، نو اختباس په یو والي پوري د ملت اړه نه لري او د مور او پلار او نیکه ګانو او انا ګانو بیان دمخه تېر سو، او د اولاد صغار او کبار چي فقراء وي او داغه رنګه ولد الولد که څه هم کافران وي ددې سببه واجب ده چي اولاد لکه د سړی جزء داسي دي نو لکه د خپل ځان نفقه، ځان چي په کفر پوري اړه نه لري نو جزء هم په کفر پوري اړه نه لري.

**مسئله**:- که دغه کسان په دار حرب کي که څه هم مسکینان وي نفقه یې پر مسلمان زوي لازمه نه ده، لانا نهینا عن البر حق من یقا تلونا فی الدین، هدایه، منح، در.

قال" ولا یشارک الولد فی نفقة ابویه احد" او نه دي شریك د زوي سره په نفقه کي د مور او پلار دده هیڅ څوك یعني ورونړه او خوندي او اکاګان وغیرهم، ولي چي مال د زوي لکه د پلار مال دي کما جاء فی الحدیث النبوي ﷺ "انت ومالك لابیك" نو ګویا پلار په مال د زوي غني دي، او د غني نفقه خو پر چا نه ده واجبه.

قال المصنف رحمه الله" والنفقة واجبة لکل ذی رحم محرم اذا کان صغیرا فقیرا او کانت امرئة بالغة فقیرة او کان ذکرا زمنا او اعمٰی فقیرا یجب ذالک علي مقدار المیراث" او نفقه واجبه ده پر سړي د هر چا چي قریب وي د ده یعني په نسب کي او محرم یعني نکاح یې سره ناروا وي یعني یو نر فرض کړي او بله ښځه نکاح یې سره ناروا وي، نو په نسب کي قریب وو او محرم نه وو لکه د اکا زوي او یا

محرم خو وو لکن د نسب قريب يې نه وو لکه رضعي ورور، نو نفقه پر سړي نه ده واجبه، بنايه بحذف، چي هغه کوچنی وي او فقير وي ولي چي کوچنی فقير خو د کار او کسب څخه عاجزه دي او د غني نفقه خو د خپله ماله څخه ده، او يا ښځه وه بالغه فقيره يعني چي مېړه نه لري، او يا نر وي لکن شل او يا ړوند وي فقير نو دا نفقه په اندازه د ميراث د سړی.

**درويش وايي**:- چي ترتيب او تفصيل د ميراث د عصباتو په دې کتاب کي ډېر ګران او بې فائدې دي، ولي چي متعليمان ددې شرحي به هيڅ فائده پروا نه خلي ولي چي سراجي چي وضع يې د ميراث د ويشلو د پاره ده، هورې دغه تقسيم د ميراث د زوي الفروض او عصباتو ډېر مشکل دي، نو څکه ما دا تفصيل صرف نظر کړي او که د تفصيل شوق لري نو دي سراجي مطالعه کړي او يا لوي شرحي د قدوری وه ګوری او انشاء الله العزيز بعض تفاصيل د ميراث به په دوهم جلد کي د دې شرحي د قدوری راسي، نو تر هغو انتظار وکړه چي درويش د دوهم ټوك د نکاح د قدوري و هغه ځای ته ورسېږي، ومن الله التوفيق.

قال القدوری رحمه الله " و تجب نفقه الابنة البالغة والابن البالغ الزمن على ابويه اثلاثا على الاب الثلثان وعلى الام الثلث"

او نفقه د بالغ زوی چي شل وي او د لور چي بالغه وي، يعني چي مېړه نه لري پر پلار او پر مور ده، پر پلار باندي دوې حصې او پر مور باندي يوه حصه يعني په اندازه د ميراث د دوی.

**يوه سه**:- چي دا روايت د خصاف رحمه الله دي او په ظاهر الرواية کي ټوله نفقه پر پلار ده، وينبغی ان يفتی بظاهر الروية.

قال رحمة الله عليه " ولا نفقة واجبة على الفقير" او نفقه د هيڅ قريب پر فقير سړي واجبه نه ده، يعني بېله ماينې ولې چي د فقير په خپله نفقه پر اقرباو لازمه ده، نو پر ده څرنګه د قريب نفقه واجب سي.

قال" وان كان لابن الغائب مال قضى عليه بنفقة ابويه وان باع ابواه متاعه فى نفقتهما جاز عند ابى حنيفة رحمة الله عليه"

او كه چېري وو غائب زوى لره مال، قاضي دي حكم پر مال د غائب په نفقه د پلار او مور وكي يعني چي فقيران وي، او كه پلار او مور خرڅ كړي مال او سامان د مسلمان غائب زوي په نفقه كي خپل روا دي په نېز د امام اعظم رحمة الله عليه، او ياران رحمة الله عليه وايي چي د غائب د مال كه منقول وي او كه غير منقول وي مور او پلار ته نه ده روا خرڅول يې، و هو القياس فى مال الغائب" او امام اعظم رحمة الله عليه وايي چي ابوين لره حق د تملك سته په مال كي د زوي، او منقول مال چونكه حفاظت غواړي نو په انفاق د مور او پلار كي خرڅول د حفاظت يو قسم دي، او غير منقول لكه مځكه او باغ هغه خو په خپله محفوظ دي نو ځكه مصنف رحمة الله عليه وويل.

قال" وان باع العقار لم يجز وان كان لابن الغائب مال فى يد ابويه فانفقامنه لم يضمنا" او كه چيري وو ابن غائب لره مال په لاس كي د ابوينو نو دي په نفقه كي مصرف كي عند الاحتياج نو پر دوي ضمان د زوي د خوا نسته ولي خو دوى خپل حق واخستى ولي چي نفقه د دوى واجبه ده په وخت كي د فقر پر زوى باندي.

قال المصنف هدايه رحمة الله عليه " واذا كان له مال فى يد اجنبى فانفق عليهما بغير اذن القاضى ضمن" او كه ابن غائب لره مال

وو په لاس کی د بېګانه او هغه بيګانه سړي دا مال مصرف کی په نفقه کي د ابو ينو د غائب لکن بېله اجازې د قاضي نو دغه اجنبي ضامن دي وه ابن غائب ته چي هغه مال به ورکوي، او که دغه سړي د قاضي اجازه اخستې وه نو بيا ضمان پر ده نسته، ولي چي په اول صورت کي خو دی د حفظ المال د پاره غائب مختار کړی وو، او په دوهم صورت کي خو قاضي لره ولايت قائمه سته.

**قال القدوری رحمة الله عليه "واذا قضى القاضى للولد والوالدين ولذى الارحام بالنفقة فمضت مدة سقطت"** او که قاضي حکم وکړی پر يو سړي يعني چي غني وو د ولد، مور و پلار او د نور اهل قرابت د ده په نفقه سره نو څو مياشتي مثلا تېرې سوې يعني مذکوره کسانو طلب د نفقې نه وکړی، نو د هغو تېرو مياشتو نفقه يې ساقط سوه ولي نفقه د پاره د حاجت او مسکنت وه ځکه د غني نفقه پر سړي لازمه نه ده، نو دوی چي داڅو مياشتي طلب د نفقې نه کاوه نو معلومه داده چي د دوی ګزاره کېدله، او د دې ښځه مخالف دي نفقه د مايني چي قاضي حکم په وکړي او دې يې څو مياشتي طلب وه نه کړي پر مېړه د مامضى من الشهور نفقه هم واجبه ده، ولي ماينه که څه هم غني وي نفقه يې پر مېړه د بخلاف هو لاء المزکورين، هدايه، ودر.

**قال المصنف رحمة الله عليه " الا ان يقضى القاضى بالاستدانة عليه"** مګر هغه وخت د مامضى نفقه هم پر سړي لازمه ده که قاضي ودغو کسانو ته حکم ورکړی وو چي تاسي پور کوي د ده پر زمه.

قال" وعلى المولى ان ينفق على عبده وامته" ولي چې په حديث شريف کي راغلي دي چې آنحضرت ﷺ وفرمايله د مريانو په باره کي، انهم اخوانكم جعلهم الله تحت ايديكم فاطعموهم مما تاء کلون والبسوهم مما تلبسون ولاتعذلوا عبادالله.

فائده:- ظاهر د حديث شريف خو پر دې دلالت کوي که سړي په کور کي ورجي او غوښي او چرګان خوړله او هغه کالي يې اغوستل چې ګز يې مثلا په سل کالداري وو مريي ته به هم هغه خواړه ورکوي او هم هغسي کالي ورکوي، لکن فقها رحمة الله عليه وايې چې ښه کار خو هم داغه دي يعني حديث پر استحباب محمول دي، لکن هر چي وجوب دي هغه مطلقي نفقه د مريي پر بادار واجبه ده، كذا في حواشي البخاري

قال المصنف رحمة الله عليه " فان امتنع من ذالک وکان لهما کسب اکتسبا وانفقامنه" او که منع وکړه بادار د نفقې څخه د مريي او مينځي، او د دوي کسب زده وو نو خپل کسب دي کوي او د هغه څخه دي د خپل ځان نفقه برابروي.

وان لم يکن لهما کسب اجبرالمولى على بيعهما"

او که د مريي او مينځي هيڅ کسب نه ووزده چې ډوډۍ په برابر کړي او مولى خو نو هم ډوډۍ نه ورکوله، نو دې قاضي بادار مجبور کړی دا مريي او منځه خرڅه کړه تادوي د مرګ څخه د لوږي خلاص سي.

صورت د عدم قدرت د مريي پر کسب دادي چې شل وي مثلا او د مينځي دادي چې ډېره سپين سرې وي څوك مزدوري نه ورکوي، او يا ډيره مردار خوره وي څوك يي نه مزدوره وي، او وجه د اجبار پر خرڅلو

داده چي دوي خو حق د نفقې پر بادار درلودي نو چي بادرا يې حق نه ورکوي نو چي خرڅ يې کړي هم به د دوي حق پر ځاي سي يعني پر بل مهربانه بادار به پېښ سي چي هغه به نفقه ورکوي، او د بادار په بيع کي ضرر هم نسته ولي خو ثمن به لاس ته ورسي، هدايه.

# كتاب العتاق

دا کتاب دي په بيان کي د آزادولو د مريانو او يا منځيانو او د اقسام او احکامو د عتاق.

**ښهانه فائده**:- چونکه په اوسني زمانه کي په ټوله نړۍ کي د مسلمانانو په ديارو کي مريان او منځياني نسته په قرار د معلوماتو د درويش نو د هغو د احوال تحقيق او بيان د عتاق د اقسامو تفصيل په دې مختصره شرحه کي مناسب نه دي خصوصا و مبتديانو ته د پښتنو، چي د دوي په وطنو کي نوم د مريي خو سته لکن مصداق يې نسته نو ځکه درويش په دغو مباحثو کي ډېر تفصيل نه کوي.

**سوال**:- ولي دا کتابونه او بابونه چي د عتق په متعلق کي دي نه حذف کوي؟

**جواب**:- د تبرک په اثارو سره د مذاهب اربعه وو رحمهم الله نه حذف کوم، اما په علت مذکوره د تفصيل څخه ډډه کوم لکه صرف او صرف ترجمه لفظي د عربي الفاظو بيانوم.

**پوښتنه**:- که خداوند متعال جل جلاله وه مسلمانانو ته قدرت پر کفارو ورته په برخه کړي او بېرته مريان او مينځياني و عالم وجود ته راغلې بيابه نو د دوې د احوالو بيان داغسي مهمل پاته سي؟

**ځواب**:- هرګز نه ولي زمانه د علماو څخه د دين نه خالي کېږي، او کتابونه او شروحي د هغو او د فتاواو کتابونه د مريانو او مينځيانو په احوالو سره ډك دي د هغو څخه به استفاده وکړه سي.

**پوښتنه**:- عربي کتابونه د قدماو رحمهم الله او د متاخرينو علماو رحمهم الله په تفصيل واره بيان د عقائدو د اهل سنة والجماعة رحمهم الله او په بيان د فرائضو او د واجباتو او د سننو وغيرها ډك وه نو ماته څه مجبوريت وو چي پر نورظلم دي شرح وکړه او پر ابوالمنتهى دي تفصيلي شرح وکړه او پر شروط الصلوة او د قدوري پر حصه د عباداتو او پر حصه د نکاح دي شرحي وکړې په پښتو ژبه او دا هم اراده لري ان شاء الله تعالى چي د جناياتو څخه نيولې تر پايه پوري هم په پښتو شرح وکړې او پر نورالايضاح دي په درې (۳) غټو جلدو سره هم په پښتو شرحه کړې ده؟

**ځواب**:- ماڅو واره پخپلو پښتو کتابو کي ويلي دي چي زما مقصد صرف او صرف د پاره د رضا د جل وعلا د خپل پښتون قوم خدمت دي هغه قوم چي پښتو خط ويلای سي او د عربي د ترجمې څخه عاجزه وي که نر وي او که ښځي، او زما مقصد دادي چي دې قوم ته په خپلو کورو کي په خپل مورنۍ ژبه استادان پيدا کړم او انشاء الله تعالى په دې مقصد کي زه سل په سل کي کاميابه يم، البته حاسدان به هرڅه وايي لکن د هغو په خبرو زما پروا نسته ولي دنيا په حسد کي روانه ده.

**واقعه**:- د يوه ملا چي څه ناڅه زما سره يې حسد دَرلودي او زما نوشته به يې د نالائق کار په نظر کتله، نو دغه مولوي صاحب يوه شپه خوب ليدلي وو، او يو بل عالم ته يې دا خوب ويلي وو چي ډېر خلك ناست وه او مانخود په وېشله او في نفر مي يو يو موټ ورکوله، او په

دې مابين کې مولوی عبيدالله راغلي او هغه في نفر يوه يوه لمن ډکه وېشله نو د هغه بل عالم ته ويل چې زما زړه دده سره د حسد څخه پاك سو، او زه بيا وايم چې دا خوب ليدونكې عالم كه يې زما غيبت كړی وي او كه يې پر مابهتان ويلي وي، او كه يې زما سره څه كړي وي ما توله د ته بخښلي په سبب د دغه بشارت آميزه خوب دده په حق كې د عاصي.

قال القدوری رحمه الله " **العتق يقع من الحر العاقل البالغ في ملكه**" آزادول د مريي يا مينځي واقع كيدای سي د حر سړي چې عاقل او بالغ وي په خپل ملك كې.

**فاذا قال لعبده او امته انت حر او معتق او عتيق او محرر او حررتك او اعتقتك فقد عتق نوى العتق او لم ينو**" كه مالك وويل وه مريي ته يا وه مينځي ته چې ته حر يې، او يا آزاد شده يې، او يا عتيق يعنی آزاد سوی، او محررا يې، او يا ماته ازاد كړی يې او يا ما تاته عتق دركړي دي نو هغه آزاد سو كه د ده نيت د عتق وي او كه نه وي.

قال" **وكذالك اذا قال راسك حر او رقبتك او بدنك**" او دغه رنګه ازادېږي كه يې وويل ستا سر حر دي، او يا ستا غاړه حره ده، او يا ستا بدن حر دي. او **قال الامته فرجك حر**" او يا يې مينځي ته وويل چې ستا كوس حر دي.

وان قال لا ملک لی علیک ونوی بذالک الحرية عتق وان لم ينو لم يعتق" او كه يې وويل چي زه پر تا ملك نه لرم او قصد يې حريت وو، نو ازاديږي او كه يې نيت نه وو نه آزاديږي.

وكذالك جميع كنايات العتق" او داغسي حكم دي د ټولو كناياتو د عتق.

وان قال لاسلطان لی علیك ونوى به العتق لم يعتق" او كه يې وويل چي بادشاهي نه لرم پر تا باندي او نيت يې هم د عتق وو، نه آزاديږي.

و اذا قال هذا ابنی وثبت علی ذالك او قال هذا مولای او يا يامولای عتق" او كه يې وويل چي دا مريي زما زوي دي او پر دغه خبره هم ټينګ وو، او يا يې وويله چي دا زما بادار دي، او يا يې نعره وروكړه اې زما باداره، آزاد سو. وان قال يا ابنی او يا اخی لم يعتق" او كه يې نعره مريي ته وكړه چي اې زويه او يا اې وروره نه آزاديږي.

قال" وان قال لغلام لايولد مثله لمثله هذا ابنی عتق عليه عند ابی حنيفة رحمة الله عليه وعند هما لايعتق" او كه مالك وويل وداسي مريي ته چي د دونه عمر سړی وي چي د دوند عمر سړی بادار دي نه سوای زېږولای، داسي وويل چي دا زما زوي دي، نو په نېز د امام اعظم رحمة الله عليه پر ده آزاد سو، او ياران وايي نه آزاديږي.

ولو قال لامته انت طائق" او كه يې وويل وه مينځي ته چي ته پر ما طلاقه يې. ونوى به الحرية لم تعتق" او د ده نيت په دې وينا كي

حریت وو، نه ازادیږي. وان قال لعبده انت مثل الحرة لم یعتق"
او که یې مریي ته وویل چې ته لکه حره ښځه یې نه ازادیږي.
وان قال ما انت الاحر عتق" او که یې مریي ته وویل چې ته نه یې
مګر حر ازاد سو.
قال القدوری رحمة الله علیه " واذا ملك الرجل ذارحم محرم منه عتق
علیه" او که یو سړی مالك سو د داسي چا چي خاوند د قرابت نسبي
وو، او محرم هم وو یعني نکاح یې هم سره حرامه وه نو پر ده بېله
اختیاره ازاد سو.
واذا اعتق المولی بعض عبده عتق علیه ذالک البعض
ویسعی فی بقیته قیمته لمولاه عند ابی حنیفة رحمة الله علیه وقالا
یعتق کله" او که یو بادار آزاده کړه یوه حصه د خپل مریي یا نصف
یاثلث مثلا نو پر مولي هغه قدر حصه آزاده ده، او مریي به کوشش کوي
په مزدوري وغیره سره چې د باقي حصې قیمت ومولی ته اداء کړي، دا
په نېز د امام اعظم رحمة الله علیه او یاران رحمة الله علیه وایي چې ټوله مریي ازاد سو.
قال المصنف رحمة الله علیه " واذا کان العبد بین شریکین فعتق
احدهما نصیبه فان کان موسرا فشریکه بالخیار ان شاء اعتق
وان شاء ضمن شریکه قیمة نصیبه وان شاء استسعی العبد"
او که یو مریي وو په مابین کي د دوو شریکانو، نو یوه شریك حصه
خپله آزاده کړه نو که دغه معتق غني وو نو هغه بل شریك ته یې اختیار
دي که دی هم خپله حصه مفته آزاده وي او که یې خوښه وي ضمان ده

شريکه څخه واخلي د قيمت د خپلې حصې او که يې خوښه وي طلب د سعي دي مريي څخه وکړي.

قال القدوری رحمة الله عليه " وان کان المعتق معسرا فالشريک بالخيار ان شاء اعتق نصيبه وان شاء استسعى العبد وهذا عند ابی حنيفته رحمه الله" او که آزادونکی شريك مسکين وو نو هغه بل شريك اختيار لری که دی هم خپله حصه آزاده وي او که طلب د سعي د مريي څخه کوي او دا مذهب دي د امام اعظم رحمة الله عليه.

وقال ابو يوسف ومحمد رحمهما الله ليس له الا الضمان مع اليسار والسعاية مع الاعسار" او ويلي دي امام ابو يوسف رحمة الله عليه او امام محمد رحمة الله عليه چي نسته هغه بل شريك لره بېله ضمانه سره د غنا د متعق اولی، او سعايه د مريي څخه په وخت د مسکنت د معتق.

قال القدوری رحمة الله عليه " وکذالک اذا ورثاه والشريک بالخيار ان اعتق نصيبه وان استسعى العبد" او دغه حکم دي که دوو کسانو ته يو مريي په ميراث پاته سو، او پر يوه آزاد سو نو دا بل شريك لره اختيار دي که خپله برخه آزاده وي او که د مريي څخه سعايه غواړي د دې مسئلې صورت دادي چي يوې ښځې د مېړه زوي يعني چي د بلې مايني څخه يې وو رانيوی او دا مړه سوه يو يې ورور پاته سو او يو يې مېړه نو نيمه حصه خو د مريي ددې ښځه د مېړه ده، لکن چونکه دا خو زوي دي پر ده خو آزاد سو کما مر، اوس نو بل شريك د مريي چي د ښځې ورور دي اختيار د عتق او سعايه لري.

قال القدوری رحمة الله عليه " واذا شهد كل واحد من الشريكين على الآخر بالحرية سعى العبد لكل واحد منهما فى نصيبه موسرين كانا او معسرين عند ابى حنيفة رحمه الله"
او كه شاهدي ادا كړه هر يوه د دوو شريكانو د مريي پر هغه بل شريك د حريت د مريي، يعني هر يوه دا وويل چي تا خو خپله حصه آزاده كړې ده، يعني هغه بل شريك د دې څخه منكر وو نو مريي دي د دواړو مالكانو د هغه حصې قيمت ور برابر كړي، كه دا دواړه مالكان غنيان وي او كه مسكينان وي په نېز د ابو حنيفه رحمة الله عليه.

وقالا ان كانا معسرين سعى لهما وان كان احدهما موسرا والآخر معسرا سعى للموسر ولم يسع للمعسر" او ياران رحمهما الله وايي چي په صورت مذكوره كه دواړه مالكان مسكينان وه نو مريي دي د هر يوه په نصيبه كي كوښښ وكړي، او كه يوه غني وو او بل مسكين وو د غني د حصې قيمت دي مريي ور برابر كړي او د مسكين لپاره دي سعي نه كوی.

قال القدوری رحمة الله عليه " ومن عتق عبده لوجه الله تعالي او للشيطان او للصنم عتق" او كه چا مريي آزاد كړی لپاره د رضا د خدای جل جلاله او يا د شيطان لپاره او يا د بت لپاره نو مريي آزاد سو.

قال المصنف رحمة الله عليه " وعتق المكره والسكران واقع" او آزادول د مجبوره كړي سړي او د مست نشه سړي واقع دي.

**واذا اضاف العتق فی ملك او شرط صح کما یصح فی الطلاق"** او که يې نسبت وکړي د عتق و ملك ته يعني د بل چا مريي ته يې وويل که زه ستا مالك سوم پر ما آزادېږې، او ياېې وشرط ته نسبت وکړي يعني خپل مريي ته يې وويل که تا پلاني کار وکړی پر ما آزاد يې صحيح دي يعني مريي آزادېږي د ملك په وخت کي، او يا د وقوع الشرط په وخت کي لکه چي نسبت د طلاق و ملك يا و شرط ته صحيح دي.

**واذا خرج عبد الحربی من دارالحرب الینا مسلماً عتق"** او که راووتی د يو حربي کافر مريي د دار الحرب څخه زموږ دارالاسلام ته نو هغه مريي آزاد دي.

**واذا اعتق جاریة حاملا عتقت وعتق حملها ، واذا عتق الحمل خاصة عتق ولم یعتق الام"** که سړي ازاده کړه مينځه چي حمل داره وه، دا آزاده سوه او حمل د نس يې هم آزاد سو، او که يې آزاد کړی يوازي حمل هغه حمل خو آزاد سو، او مور يې نه ده آزاده.

**و اذا اعتق عبده علی مال فقبل العبد عتق فاذا قبل صار حرا و لزمه المال"** او که بادار آزاد کړی پر يو مال باندي يعني هر مال چي وي، او مريي قبول کړي آزاد سو يعني دستي او چي قبول يې وکړي آزاد خو سو او هغه مسمٰی مال پر لازم دي.

**ولو قال ان اديت الی الفا فانت حر صح ولزمه المال"** او که يې ورته وويل که تا ماته زر روپۍ راکړې نو ته حر يې عقد صحيح او پر مريي مال لازم دي.

قال المصنف رحمة الله عليه " وصار ماذونا فان احضر المال اجبر الحاكم ولمولي علي قبضه وعتق العبد " او وه ګرځېدي مريي د بادار مجاز، يعني كه مزدوري كوي كه سوال وغيره، نو چي مريي هغه مشروط مال حاضر كړي او مولي نه اخستي نو حاكم د وخت دي مولي مجبور كړي پر اخستو د هغه مال او مريي آزاد سو.

قال القدوری رحمة الله عليه " وولد الامة من مولاها حر وولدها من زوجها مملوک لسيدها وولد الحرة من العبد حر " او عيال د مينځي د بادار د خو آزاد دي، او ولد د دې د مېړه د خوا مريي دي د مولي د دې، او ولد د حري ښځي د مريي څخه آزاد دي.

# باب التدبير

باب ثابت دي په بيان كي د تدبير.

**پوه سه**:- چي تدبير په لغت كي و آخر ته د كار كتل دي او په شريعت كي هغه دي چي په كتاب كي به راسي.

قال القدوری رحمة الله عليه " اذا قال لمملوكه اذا مت فانت حر او انت حر عن دبر منى او انت مدبر او قد دبرتک فقد صار مدبرا " او كه بادار و مملوك ته خپل كه نر وي او كه ښځه وويل چي هر وخت چي زه مړ سوم نو ته آزاد يي، او يا يې داسي ورته وويله چي ته آزاد يي د شاګرځولو څخه زما يعني وروسته ترما، او يا يې ورته وويل چي ته مدبر يې، او يا داسي په تحقيق ماته مدبر كړي يې، نو په ټولو الفاظو سره مريي مدبر سو چي دا ټوله صريح الفاظ دي.

قــال المصــنف رحمة الله عليه " لايجــوز بــيعه ولاهبــته وللمولــى ان يســتخدمه ولواجـره" نـو نـه ده روا مولـي تـه خرڅول د مکاتـب او نـه وچاتـه هبـه کول د ده، او بادار ته روادي چي طلب د خدمت ځني وکړي او يا يې د يو چا مزدور کړي.

وان کانـت امـة فله ان يطائها وله ان يزوجها" او مولي ته روا ده چي وطي وکړي ددې سره که مدبره ښځه وه او يا يې بل سړي ته په نکاح ورکړي.

قال" واذا مات المولى عتق المدبر من ثلث ماله ان خرج من الثلث" او چي بادار مړ سي نو آزادېږي مدبر د دريمي حصه څخه د مال د ده چي په ثلث کي دده قيمت ګنجائش وي.

فـان لـم يكـن له مال غيره يسعى فى ثلثى قـيمته" او که مولي نور مال بېله دغه مدبر نه درلودي نو به مريي کوشش کوي چي دوه ثلثه د قيمت کي خپل ورثه وو ته د مولي برابر کړي.

وان كـان علـى المولـى دين يسعى فى جميع قـيمته لغرمائه" او که پر مولي پور باندي وو يعني په اندازه د قيمت د مدبر نو به مدبر کوشش کوي چي ټوله خپل قيمت وه پوره وروته د مولي برابر کړي.

قـال" وولـد المدبـرة مدبـر" او ولـد د مدبري مينځي هم تبعا مدبر دي.

قـال المصـنف رحمة الله عليه " وان علـق المولـى موته علـى صفـة مثـل ان يقـول ان مـت مـن مرضـى هٰذا او فـى سفرى هٰذا او مـن مرض

كذا فليس بمدبر ويجوز بيعه وان مات المولى على الصفة التى ذكرها عتق كما يعتق المدبر المطلق" او كه معلق كي يعني پيوند كي يو بادار مرګ خپل پر يوه صفت باندي مثلا داسي ووايي كه زه مړ سوم ددغه موجوده مرض څخه، او يا مړ سوم په دې سفر كي او يا زه په فلاني مرض مړ سوم، نو دا مريي مدبر نه دي او خرڅېده يې روا دي او كه مولى مړ سو پر هغه صفت او مال چي ده ذكر كړى وو، مريي آزاد سو لكه چي آزادېږي مدبر مطلق، يعني چي ببله قيده مدبر وي.

**فائده مهمه**:- د مخه تېره سوه چي بيع د مدبر ناروا ده، او په حديث كي د بخاري وغيره داسي راغلي دي چي ﷺ د يوه صحابي رضي الله عنه مدبر مريي خرڅ كړى، نو د هغه حديث مبارك محل هم دغه مدبر مقيد دي كذا ذكره شامي الحديث.

## باب الاستيلاد

باب ثابت دي په بيان كي د استيلاد.

**يوه سه**:- چي استيلاد طلب ته د ولد وايي لكن په عرف كي د فقهاو رحمهم الله طلب دي د ولد د مينځي څخه.

قال القدورى رحمه الله " واذا ولدت الامة من مولاها فقد صارت ام ولد له لايجوز له بيعها ولاتملكها وله وطئها واستخدامها واجارتها وتزويجها" او كه وزېږوي مينځي د باداره څخه ولد كه نر وي او كه ښځه نو دغه مينځه ام الولد د بادار ګرځي چي حكم يې دادي

چي نه دي روا بادار ته يې خرڅول، او په ملك كي وچاته وركول يعني بېله خرڅولو لكه په هبه مثلا، او روا دي بادار ته يې وطي كول او خدمت په كول او د چا مزدورول او په نكاح وچا ته وركول.

قال القدورى رحمة الله عليه " ولايثبت نسبه اى نسب ولد الامة منه الا ان يعترف به المولى فان جائت بولدبعد ذالک ثبت نسبه منه بغير اقرار فان نفاه انتفى بقوله" او نه ثابتېږي نسب د ولد د مينځي يعني د مولي څخه مګر هغه وخت چي بادار اقرار په وكي چي دا زما ولد دي، او كه مينځي پسله اقراره په اول ولد سره بل ولد يې راوړی د هغه نسب د بادار څخه دي بېله نوي اقراره، او كه مولي ولد ثاني د ځان څخه نفي كړي نو دده په قول نفي سو.

وان زوجها وجائت بولد فهو فى حكم امه" او كه بادار خپله مينځه وه يوه چاته په نكاح وركړه او دي د هغه مېړه څخه ولد راوړي نو ولد يې هم په حكم ددې دي يعني مريي د مور د بادار.

واذا مات المولى عتقت من جميع المال ولاتلزمها السقاية وللغرماء ان كان على المولى دين" او چي بادار د ام الولد مړ سي نو دا آزاد ده د ټوله مال څخه د بادار او پر دې نه ده لازمه سعايه د پوره وړو د پاره كه يې پر بادار پور باندي وو.

قال المصنف رحمة الله عليه " واذا وطى الرجل امة غيره بنكاح فولدت منه ثم ملكها صارت ام ولدله" او كه چا وطي وكړې د مينځي سره د بل چا په نكاح سره يعني مولي ودې سړي ته خپل مينځه

په نکاح ورکړې وه، بیا مېړه مړسو د هغې مینځې یعني په هره طریقه چې وي نو هغه مینځه د ده ام ولد وګرځېده.

واذا وطی الاب وجاریة ابنه فجائت بولد فادعاه یثبت نسبه منه وصارت ام ولد له وعلیه قیمتها" او که وطي کړه پلار مینځه د زوي د ده، نو هغه د مینځې عیال پیدا سو، نو پلار دعوه وکړه چې دا عیال یې د ما څخه دي نو نسب یې د پلاره څخه خو ثابتېږي او دا مینځه ام الولد د پلار وګرځېده، او پر پلار لازم دي چې قیمت د مینځې به زوی ته ورکوي.

قال المصنف رحمة الله علیه " ولیس علیه عقرها ولاقیمة ولدها" او نسته پر واطي پلار باندي ولور د مینځې، او نه قیمت د ولد ددې.

قال وان وطی اب الاب مع بقاء الاب لم یثبت النسب منه وان کان الاب میتا یثبت النسب من الاب" او که وطي کړه نیکه مینځه د لمسي سره د پلار د ژونده نو نسب یې نه ثابتېږي د نیکه یعني که یې څه هم دي دعوه وکړي، او که پلار د لمسي مړ وو بیایې نسب د نیکه څخه ثابتېږي لکه چې ثابتېږي نسب د پلار څخه.

قال المصنف رحمة الله علیه " وان کانت الجاریة بین شریکین فجائت بولد فادعاه احدهما ثبت نسبه منه وصارت ام ولدله وعلیه نصف عقرها ونصف قیمتها ولیس علیه شی من قیمة ولدها" او که وه مینځه په مابین کي د دوو شریکانو، نو دې راتګ وکړي په ولد سره یعنی لنګه سوه نو دعوه د هغه ولد یوه شریك وکړه نو نسب د هغه ولد خو د هغه څخه ثابت سو، او مینځه ام ولد د هغه شریك وه ګرځېده

او پر دغه شريك لازم دي نيم ولور د مينځي او نيمايي قيمت د دې، او نسته پر ده باندې هيڅ شی د قيمت څخه د ولد ددې.

قال القدوری رحمة الله عليه " فان ادعياه معا ثبت نسبه منهما وكانت الامة ام ولد لهما وعلي كل واحد منهما نصف العقر تقاصى بماله على الاخر ويرث الابن من كل منهما ميراث ابن كامل وهمايرثان منه ميراث اب واحد.

او كه چېرې دعوه وکړه دواړو شريكانو يوځاى په دغه ولد يوه ويله زما ولد دي بل ويل زما دي، نو نسب دده د دواړو شريكانو څخه ثابتېږي او مينځه ام الولد د دواړو ده، او پر هر يوه نيمی ولور د مينځي لازم دي چي هغه سره مجرا کړي يو د بله سره، او ميراث وړي زوی د هر يوه ميراث د كامل زوي، او دوي دوه د زوي ميراث دواړه د يوه پلار ميراث وړی.

قال" واذا وطى المولى جارية مكاتبة فجائت بولد فادعاه فان صدقه المكاتب ثبت نسبه منه وكان عليه عقرها وقيمة ولدها ولاتصير ام ولد له وان كذبه المكاتب فى النسب لم يثبت نسبه منه" او كه وطي کړه مولي د مريي مينځه يعني چي ده مكاتب کړي وو نو هغه لنګه سوه او ولد يې پيدا سو، نو بادار د مريي دعوه وکړه چي دا ولد زما څخه دي نو يې مكاتب تصديق وکړي، نو نسب يې د مولي څخه د مكاتب ثابتېږي او پر مولي يې ولور سته، او قيمت د ولد هم پر سته، او دا مينځه ام ولد د هغه نه ګرځي، او كه

مکاتب د مولي تکذيب وکړي په نسب کي نو نسب يې نه ثابتېږي د مولي څخه.

# كتاب المكاتب

دا کتاب دي په بيان کي د مکاتب.

**پوه سه**:- چي د مکاتب صيغه د اسم مفعول ده د کتابة څخه مشتق ده د کتابت ډېري معناوي په لغت کي راغلي دي مناسب معنا دلته ليکل دي ولي په دې عقد کي هم د بادار او مکاتب قرار داد د دوي ترمابين نوشته کېږي تاچي د بلي ورځي د پاره وثيقه وي.

قال القدوری رحمة الله عليه " واذا كاتب المولى عبده او امته على مال شرطه عليه وقبل العبد ذالک العقد صار مكاتبا" او که عقد د کتابت وکي يو بادار د خپل مريي سره، او يا د مينځي سره پر مال باندي هرقسم مال چي وي لکن جنس د مال او مقدار د هغه به معلوم وي، او بادار د دغه مال ورکړه پر مريي شرط وګرځوله يعني د حر والي د پاره او مريي هم دا عقد قبول کړي نو دى مکاتب سو.

قال المصنف رحمة الله عليه " ويجوز ان يشترط المال حالا ويجوز موجلا ومنجزاً" او روا دي چي مولي دا شرط کړي چي مال فى الحاله به راکوي، او دا هم روا دي چي مال مشروط په مدت وي يعنى درې مياشتي وروسته مثلا دا مال راکوي، او دا هم روا دي چي په قسطو به يې راکوي مثلا هره مياشت به سل روپۍ راکوي.

قال القدوري رحمة الله عليه" ويجوز كتابة العبد الصغير اذا كان يعقل الشراء والبيع" او روا دي مكاتب جوړول د كوچني مريي يعنى چي بالغ نه وي كه دي داسي وو چي په شراء او بيع پوهيږي.

قال" واذا صحت الكتابه خرج المكاتب عن يد المولى" او چي كتابت صحيح سو نو ووتي مكاتب د لاس څخه د مولي يعني يدا حر سو.

ولم يخرج عن ملكه" او د ملكه څخه يې نه دي وتلي يعني رقبة مريي دي.

فيجوزله البيع والشراء والسفر" نو روا ده ورته رانيول د مينځي او خرڅول د مينځي او سفر كول ويو خوا ته.

ولايجوزله التزوج الا ان ياء ذن له المولى" او نه ده روا وده ته نكاح كول مګر نه كه بادار اجازه ورته كړې وه.

ولايهب ولايتصدق الا بالشيئ اليسر" او نه به هبه كوي مكاتب او نه به خيرات كوي، مګر نه په يو لږه شى سره چي په عرف كي رواج وي. ولا يتكفل" او نه به مكاتب د چا د پور ضامن كيږي.

فان ولد له ولد من امة له دخل في كتابته وكان حكمه مثل حكم ابيه وكسبه له" نو كه وزيږيدي ده لره ولد يعني مكاتب چي كوزده يې په اجازه د مولي كړې وه لكن ولد د مينځي څخه وو نو هغه ولد هم په كتابت كي د مولي داخل سو، او حكم د ولد لكه حكم د پلار دده دي او كسب د ولد دده د پلار دي.

قـال القـدوری رحمه الله " فلـو زوج المولـی عـبده مـن امـته ثـم کاتبهما فولدت منه ولد دخل فی کتابـتها وکان کسبه لها" او که چېري په نکاح ورکړه بادار و مريي ته خپل مينځه، او وروسته يې دوارړه مکاتب کړه نو د مينځي د مريي مېړه څخه ولد پيدا سو، نو هغه ولد د مور په کتابت کي داخل دي او کسب د زوی د مور دي.

قـال المصـنف رحمه الله " ولـو وطـئ المولـی مکاتبته لزمه العقر وان جنی علیها او علی ولدها لزمته لجنایة ولو تلف مالالها غـرمه" او کـه وطـي کـړه بـادار خـپله مکاتـبه ميـنځه نـو پـرده لازم دي ولـور،او کـه يې کوم جنايت وکړي پر دې يا پر ولد د دې پر ده لازم دي تاوان د جنايت، او که يې تلف کي مال د دې نو تاوان بې ورکوي.

قـال" واذا اشـتری المکاتـب اباه او ابـنه دخـل فـی کتابـته" او کـه رانـيوي مکاتـب مريـي خـپل پـلار يـا زوي يعنـي هغـه بـيا د بـل چا مريان وه د ده سره په مکاتب والي کي داخل سوه.

وان اشـتری ام ولـده مـع ولـدها دخـل ولدها فی الکتـابة ولم یجزله بـیعها" او کـه يې چېري رانـيول دغـه مکاتـب مور د ولد د ده، سره د ولد د دې، نو ولديې په کتابت کي داخل دي، او مکاتب ته نه ده روا چي دغه مينځه خرڅه کړي ولې د ده ام الولده.

قال القدوری رحمه الله " وان اشتری ذا رحم محرم منه لا ولادله لم یدخل فی کتابـته عـند ابـی حنـیفة رحمه الله " او کـه رانـيوي مکاتب خپل قريب نسبي چي محرم يې هم وو لکه ورور، خور، وغيرهما مګر د

ولاد علاقه نه وه د دوي ترمابين، يعنى نه يې پلار وو او نه يې زوي، نه داخلېږي هغه په کتابت کې د مکاتب په نېز د امام اعظم رحمه الله.

قال القدوری رحمه الله " واذا عجز المکاتب عن نجم نظر الحاکم فی حاله فان کان له دین یقبضه او مال یقدم علیه لم یعجل بتعجیزه و انتظره علیه الیومین او الثلاثة وان لم یکن له وجه وطلب المولی تعجیزه عجزه الحاکم ونسخ الکتابة، وقال ابو یوسف رحمه الله لایعجزه حتی یتوالی علیه نجمان" او که چېرې عاجزه سو مکاتب د يوه کښته څخه نو فکر دې وکړي حاکم په حال کې دده، نو که د مکاتب پر يو چا پور باندې وو چې د څندې اخستې، او يا يو مال د مکاتب را روان وو، نو تلوار دې نه کوي حاکم په حکم کې د عجز د هغه، او انتظار دې ورته وکړي دوې ورځې يا درې ورځې، او که و مکاتب لره هيڅ وجه د روپو د لارې نه وه، او بادار يې د حاکم څخه طلب د حکم د تعجيز وکړي نو حاکم دې حکم په عجز د ده صادر کړي، او کتابت دې ور فسخ کړي، او امام ابو يوسف رحمه الله وايي چې حاکم دې تر هغو حکم د عجز نه صادره وي چې پرده دوه نجم او کښته پوره نسي.

قال القدوری رحمه الله " واذا عجز المکاتب عاد الی حکم الرق وکان مافی یده من الاکتساب لمولاه" او که چېرې مکاتب عاجزه سو د اداء څخه د مال الکتابت نو بېرته راګرځي وه حکم ته د رق او مريي توب، يعنې يدا او رقبة دواړه مريي سو، او هغه شي چې د ده په لاس کې وي د ګټلې مال څخه هغه د مولي دي.

قال" فان مات المكاتب وله مال لم تنفسخ الكتابة وقضى ما عليه من اكتسابه وحكم بعتقه فى آخر جزء من اجزاء حياته وما بقى فهو ميراث لورثته ويعتق اولاده"
او كه مړ سو مكاتب او ده لره مال وو، يعني كافي دده د كتابت يا بالاتر هغه نو كتابت يي نه فسخ كېږي بلكه ادا دي كړه سي هغه پور د مولي چي پر ده باندي دي د ګټلي مال څخه د ده، او حكم دي وكړه سي د حاكم د خوا په آزادۍ د دغه مكاتب په آخري جز كي د ژوند د ده، او هغه پاته روپۍ د مكاتب ميراث دي د ورثه وو د پاره، او آزاد سوه هغه اولاد د ده چي په كتابت كي د ده سره داخل وه.

قال المصنف رحمه الله" وان لم يترك وفاء وترك ولدا مولودا فى الكتابة يسعى فى كتابت ابيه على نجومه فاذا ادى حكمنا بعتق ابيه قبل موته وعتق الولد" او كه مكاتب دونده مال نه وو پرې ايښي يعني چي اداء د كتابت د ده دي په وكړه سي او پاته وو يو عيال چي د پلار د كابت په وخت كي زوكړي وو نو هغه ولد دي كوشش وكړي په اداء كي د كتابت د پلار پر كښتو د پلار پس چي هغه ولد ادا كړي پور د پلار د كتابت نو موږ حكم كوو په عتق سره د پلار د ده د مخه تر مرګ او حكم كوو په عتق سره يعني چي د پلار سره په كتابت كي داخل وو.

قال القدوري رحمه الله" وان ترك ولدا مشترى فى الكتابة قيل له اما ان تودى مال والكتابة حالا و الا رددت فى الرق"
او كه مكاتب مړ سو او دده يو ولد پاته سو چي ده په وخت كي د كتابت

رانیولي وو، نو دي د هغه زوی ته وویل سي چي یا به ته مال د کتابت د پلار دستي تحویلوې او که یې نه کې تحویل ته مریي توب ته ورګرځي.

واذا كاتب المسلم عبده على خمر او خنزير او على قيمته نفسه فالكتابة فاسدة" او که یې مکاتب کړي مسلمان خپل مریي پر یو مقدار د شرابو او یا سرکوزي، او یا پر قیمت د ده، نو کتابت یې فاسد دي، ولي چي شراب او سرکوزي خو مال نه دي په حق کي د مسلمان او قیمت د مریي خو مجهول دي.

فان ادى الخمر والخنزير عتق ولزمه ان يسعى في قيمة نفسه ولاينقص عن المسمى ويراد عليه" نو هغه مکاتب وده ته راوړه شراب او یا سرکوزي، نو مکاتب خو آزاد سو او پر ده لازمه ده چي مسمی به کوي په قیمت کي د ځان، او تر مسمی دي نه کموي او تر مسمی زیاتېږي.

وان كاتبه على حيوان غير موصوف فالكتابة وجائزة وان كاتبه على ثوب لم يسم جنسه لم يجز وان اداه لم يثق" او که یې مکاتب کي مریي پر یو حیوان یعني یا آس یا خر یا غویي مثلا نو کتابت یې روا دي کي څه هم صفت د حیوان نه وي بیان کړي، او که یې مکاتب کړي مریي پر یوه جامه چي جنس یې نه کړي معلوم چي یا په تترون او یا پاج وغیرها نو کتابت یې نه دي روا، او که یې نفس ثوب یعني ټوکر، ورته راوړي مریي نه آزادیږي.

قال المصنف رحمة الله عليه " وان كاتب عبديه كتابة واحدة بالف درهم فان اديا اعتقا وان عجز رد الى الرق وان كاتبهما على

ان كل واحد منهما ضامن عن الاخر جازت الكتابة وايهما ادى عتقا ويرجع على شريكه بنصف ما ادى" او كه يو مولى مكاتب كړه دوه مريان په يوه عقد د كتابت په زر روپۍ نو كه دواړو ادا كړي هغه مبلغ دواړه آزاد سوه، او كه دواړه عاجزه سوه دواړه و مريي توب ته ګرځي، او كه يې داسي عقد ورسره كړي وو چي هر يو ضامن دي د هغه بل روا دي كتابت يې نو هر يوه چي هغه زر روپۍ ادا كړي دواړه ازاد سوه او هغه اداكوونكى به رجوع كوي پر شريك باندي چي هغه بل مريي دي په نيمي د زرو روپو چي ۵۰۰ روپۍ دي.

قال القدورى رحمه الله " واذا عتق المولى مكاتبه عتق بعتقه وسقط عنه مال الكتابة" او كه پس له كتابته بادار آزاد كړي مريي چي مكاتب وو يعني مفت يې ازاد كړي نو هغه مكاتب ازادېږي د مولي په ازادولو سره، ولي چي ملك د مولى خو پرده سته، او ساقطه سوه د مكاتبه څخه هغه مال چي مولى په كتابت كي پر ده شرط كړى وو، ولي خو دى په عتق سره حر سو.

قال القدورى رحمه الله " واذا مات مولا المكاتب لم تنفسخ الكتابة وقيل له اد المال الى ورثة المولى على نجومه فان اعتقه احد الورثة لم ينفذ عتقه وان اعتقوه جميعا عتق وسقط عنه مال الكتابة" او كه مړ سو مولى د مكاتب، كتابت يې نه فسخ كېږي، او مكاتب ته دي وويل سي چي وركړه بدلي د كتابت و ورثه وو ته د مولى، او كه هغه آزاد كړي يوه د ورثه وو څخه نه چلېږي

عتق د هغه، او كه ټوله ورثه وو جميعا آزاد کړي نومکاتب ازاد سو او مال د كتابت ځندي ساقط سو.

قال المصنف رحمة الله عليه " واذا كاتب المولى ام ولده جاز وان مات المولى سقط عنها مال الكتابة" او كه مكاتبه کړه مولى ام الولد خپله كتابت يې روا دي، او كه مولى مړ سو نو ساقط سو د دې ځخه مال د كتابت ولي خو ام الولد په مرګ د مولى ازاده سوه.

وان ولدت مكاتبته منه فهي بالخيار ان شائت مضت على الكتابة وان شائت عجزت نفسها وصارت ام ولدله" او كه لنګه سوه مكاتبه مينځه يعني چي د مولى سره يې عقد د كتابت کړې وو، د باداره ځخه لنګه سوه نو دا مينځه اختيار لري كه يې خوښه وي پر هغه كتابت دي ولاړه سي يعني بدل د كتابت دي ادا کړي او ځان دي آزاد کړي، او كه يې خو ښه وي ځان دي عاجزه کړي، نو به دا ام لولد د بادار وګرځي يعني وروسته تر مرګ د بادار به ازاده سي.

قال" وان كاتب مدبرته جاز" كه مولى مكاتب کړه هغه مينځه چي ده د مخه مدبره کړې وه يعني ورته ويلي يې وه چي پس له مرګه زما ته آزاده يې نو دا عقد د كتابت روا دي.

فان مات المولى ولا مال له وغيرها، كانت بالخيار بين ان تسعى فى تلثى قيمتها او جميع مال الكتابة" كه بادار مړ سو نو دې لره اختيار دي كه په دوه ثلثه قيمت كي خپل سعي كوي د ورثه وو د پاره، او كه په ټول مال كي د كتابت، نو په اول صورت كي به په تدبير آزاده سي او په دوهم صورت كي به په كتابت آزاده سي.

قال" وان دبر مكاتبه صح التدبير ولها الخيار ان شائت مضت على الكتابة وان شائت عجزت نفسها وصارت مدبرة"
او كه مولى مدبره كړه هغه مينځه چي ده د مخه د دې سره عقد د كتابت كړي وو، نو دا تدبير صحيح دي نو د دې اختيار دي كه يې خوښه وي د كتابت پر لار دي ولاړه سي، او كه يې خوښه وي ځان دي عاجزه كړي، او دا به د مولى مدبره مينځه وګرځي،

وان مضت على كتابتها فمات المولى ولامال له فهي بالخيار ان شائت سعت في ثلثي مال الكتابة او ثلثي قيمتها عند ابي حنيفة رحمه الله. نو كه دا پر لار د كتابت باندي روانه سوه نو په دې مابين كي يې مولى مړ سو، او مال يې نه درلودي يعني بېله دغي مينځي نو دا بيا اختيار لري كه يې خوښه وي سعي دي وكړي په دوو حصو كي د مال د كتابت او يا په دوه ثلث كي د قيمت خپل يعني د پاره د ورثه وو په نېز د امام اعظم رحمه الله.

قال القدوري رحمه الله " وان مات المولى عتق مدبروه وامهات اولاده و ولائهم له" او كه مولى مړ سو ازاد سوه ټوله مدبر مريان د ده، او ټولي ميندي د اولادو مينځياني، او ميراث يې د ټولو د مولى دي يعني اولاثم ينتقل الى ورثة المولى.

ومن ملك ذارحم محرم منه عتق عليه وولائه له" او كه څوك مالك سو د داسي مريي چي نسبي قرابت يې درلودي او نكاح يې هم حرامه وه نو پرده ازاد سو، او ميراث يې هم د ده دي.

قال رحمة الله عليه " واذا تزوج عبد رجل امة الاخر فاعتق مولى الامة وهی حامل من العبد عتقت وعتق حملها و ولاء الحمل لمولى الام لاينتقل عنه ابدا" او که په نکاح کړه مريي د يو سړي مينځه د بل سړي يعني په اجازه د مالکانو، وروسته ازاده کړه مينځه خپل بادار، مينځه خو ازاده سوه او حمل يې هم آزاد سو يعني په تبع د مور او ميراث د مولی د حمل څخه د مور دي، او نه نقل کېږي د ده څخه ابدا لکن دا حکم هلته دي چي تر عتق د مينځي وروسته تر شپږ مياشتي کم پيدا سي.

قال" فان ولدت بعد عتقها لاكثر من ستة اشهر ولدا فولائه لمولى الام فان اعتق الاب جر ولاء ابنه وانتقل من مولى الام الى مولى الاب" او که چيري دغه مينځه پسله عتقه پر اکثر تر شپږ مياشتي يې ولد راوړي نو که ازاد کړ ه سو پلار د ولد يعني مولی الاب دا خپل مريي هم ازاد کړي نو دغه پلار چي ازاد سو کش يې کي ميراث د زوي او نقل يې کړي دغه ميراث د مولی څخه د مور و مولی ته د اب.

قال القدوری رحمة الله عليه " ومن تزوج من العجم بمعتقة العرب فولدت له اولادا فولاء ولدها لمواليها عند ابی حنيفة ومحمد رحمهما الله وقال ابو يوسف رحمة الله عليه يكون ولاء اولادها لابيهم لان النسب الى الابا" او که په نکاح کړه يوه حر عجمي، عجم ماسوئ ته د عربو وايي" يوه مينځه چي هغه معتقه د يو عربي وه، نو دي ښځي وزيږول ډېر اولادونه د هغه عجمي څخه نو ميراث د دې مينځي د اولادو هغه چالره دي چي دا مينځه يې ازاده کړې ده، يعنی د هغه عرب مالك

په مذهب کي د امام اعظم رحمه الله او امام محمد رحمه الله، او امام ابو يوسف رحمه الله وايي چي ميراث د اولادو د دې ښځی د پلار دي ولي چي نسب خو د پلار و خواته دي.

قال" واذا اعتق المكاتب عبده على مال لم يجز واذا وهب على عوض لم يصح" او که چېري ازاد کي عبد مکاتب يو مريي چي ده په وخت د کتابت رانيولي وو په مال باندي، نو دا عقد نه دي صحيح او که يې چاته و بخښي په شرط د عوض دا هبه نه ده صحيح.

وان كاتب عبده جاز" که مکاتب مريي خپل مريي مکاتب کي روا ده

فان ادى الثانى قبل ان يعتق الاول فولائه للمولى الاول" او که ادا کړي يعني بدل د کتابت دوهم مريي د مخه تر دې چي آزاد سوی وو اول مريي يعني پر هغه اول مريي بدل کتابت د مولى باندي وو، نو ميراث د دوهم مريي اول مولى لره دي.

وان ادى الثانى بعد عتق المكاتب الاول فولائه له" او که چېري ادا کي بدل الكتابت دوهم مکاتب وروسته تر عتق د مکاتب اول نو ميراث د ثاني مکاتب د هغه اول مکاتب دي.

# كتاب الولاء

دا کتاب دي په بيان کي د احکامو د ولاء.

**پوه سه**:- چي د ولاء لفظ په زور د واو دي، او مصدر يې ولايت هم په زور د واو دي، د ولايت معنى په لغت کي کهمك او محبت ده او په شرعه شريفه کي هغه ميراث ته وايي چي د طرف ځخه د مريي پسله

مرګه د ده وه بادار ته د ده ورکړه کېږي چې بيان به يې په متن کې راسي که خدای ﷻ کوله.

قال" اذا اعتق الرجل مملوکه فولائه له وکذالک المرئة تعتق" که يو نر ازاد کړي مريي خپل که، مريي نر او کښ مينځه وي که يې عتق په مال سره وي او که بېله ماله نو ميراث د هغه مريي معتق لره دي (لقوله عليه السلام الولاء لمن اعتق) په هغو شرطو چې په علم ميراث کې يې بيان مجود دي او دغه رنګه حکم دي د ښځې چې مريي ازاد کړي.

قال القدوری رحمه الله" فان شرط انه سائبة فالشرط باطل والولاء لمن اعتق" او که مريي دا شرط کې چې زه به سائب يم، يعني ميراث زما تاته نسته نو دا شرط باطل دي، ولاء او ميراث د هغه چا دي چې مريي ازاد کړي وي يعني مولی، ولې دا شرط معارض د هغه حديث دي چې (الولاء لمن اعتق).

قال" واذا ادی المکاتب عتق وولائه لمولاه وکذالک ان اعتق بعد المولی فولائه لورثة المولی" او که مکاتب ادا کې يعني بدل الکتابت نو آزاد سو، او ميراث يې د بادار دي، او داغه رنګه که مريي آزاد سو پسله مرګه د مولی يعني کتابت يې وروسته ادا کړي نو ميراث يې د ورثه وو د مولی دي.

قال القدوری رحمه الله" وولاء العتاقة تعصب" او ميراث د عتاقه ګرځول دي د بېګانه سړي چې مولی عتاقه دي قريب د مريي لکه عصبه نسبي.

فان كان للمعتق عصبة من النسب فهو اولى منه" نو كه چيري وه مريي لره عصبه د نسب د خوا څخه نو هغه عصبه نسبي اولى دي تر مولى العتاقه.

**پوه سه**:- چي عصبه هغه څوك دي چي د اصحاب الفرائض د خوا يعني چي معيني حصې پـه قرآن او حديث كي لري، كه څه ميراث پاته سو نو و عصبه تـه وركول كيږي، او يا اصحاب الفرائض بيخي نه وه نو ميراث عصبه ته وركړه كيږي، او عصبه دوه قسمه دي عصبه نسبي لكه اكا د اكازوي وغيره، او عصبه سببي چي مولى عتاقه، نو كه مريي چي معتق د يو چا وو مړ سو يو اكا يې پاته سو او بل يې مولى العتاقه پاته سو نو ميراث يې ټوله د اكا دي، او كه اكا وغيره عصبات نسبي نه وه نو ميراث يې د هغه بادار دي چي دي يې ازاد كړي وو.

**پوه سه**:- چي مباحث د ميراث او د زوى الفروض او د عصبات نسبي او سببي بلكه نورى مسائلي د ميراث به د قدوري په اخير كي راسي او د دې شرحي د دوهم ټوك پـه آخر كي بـه راسي انشاء الله تعالى، ولي د دې ټوك اختتام به پر كتاب الجنايات باندي وسي انشاء الله، او د كتاب الجنايات څخه بـه دوهم ټوك د نكـاح قـدري شروع سي كه د خداى ﷻ رضا وه.

قـال" فـان لـم تكـن لـه عصبته مـن النسـب فـميراثه للمعـتق" او كـه نـه وه معتق لـره چي مړ سـو عصبه نسبي نـو مـيراث د ده مولـى عتاقه لره دي.

قال المصنف رحمه الله " فان مات المولى ثم مات المعتق فميراثه لبني معتقه دون بناته" او كه مړ وو مولى عتاقه وروسته معتق مريي مړ سو يعني چي اصحاب الفرائض او عصبه نسبي نه وي، نو ميراث يې د معتق زامنو لره د مولى عتاقه دي، او لونړي يې حق نه پكښي لري.

قال" وليس للنساء من الولاء الا ما اعتقن او اعتق من اعتقن اوكاتبن او كاتب من كاتبن او دبرن او دبر من دبرن" او نسته ښځو لره د ميراثه څخه د مريي يا مينځي حيسه، مگر د هغه مريي چي دوي په خپله آزاد كړي وي، او يا هغه چا ازاد كړي وي چي ښځو يا هغه ازاد كړي وي مثلا ښځي يو مريي ازاد كړي او هغه بيا يو مريي رانيوي او بيايي ازاد كي او د ښځي ازاد كړي مريي مړ سو وروسته يې هغه بل مريي مړ سو او نسبي قريبان يې نه درلوده نو ميراث يې هغي ښځي لره دي، او يا دوي په خپله مكاتب كړي وي، يا هغه چا چي دوي مكاتب كړي هغه مكاتب كړى وي او يا ښځو مدبر كړي وي، او يا د ښځو مدبر مدبر كړي وي.

**سوال**:- د مدبري ښځي د مدبر ميراث ودې ته رسېده څرنگه ممكنه به وي ولي چي مدبر مريي خو هغه مريي بولي چي د مولى تر مرگ وروسته آزاديږي نو مينځه چي مريي لري او هغه دا مريي مدبر كړي نو دا مريي خو هلته ازاديږي چي باداره ښځه مړه سي، نو اوس دغه مدبر چي بل مريي رانسي او هغه هم خپل مريي مدبر كي نو چي دوهم مولى مړ سي خو دده مريي ازاديږي نو دې دوهم مدبر لره چي عصبه نسبي نه وي

نو هغې ښځې ته يې څرنګه ميراث رسيږي ولې هغه خو د وخته مړه ده؟

**ځواب**:- د دې مسئلې صورت دادې چې يوې ښځې خپل مريي مدبر کړي وروسته دا مرتده سوه او دار حرب ته ولاړه، او قاضي په سبب سره د لحاق ددې په دار حرب سره حکم د مړيني د دې جاري کې نو هغه د دې مدبر خو ازاد سو، وروسته دا ښځه بيرته مسلمانه سوه او دار اسلام ته راغله نو هغه مريي چې د دې د لحاق په وخت کې ازاد سوي وو هغه يو مريي رانيولي وو او هغه يې مدبر کړي اخر د ښځې اصلي مدبر مړ سو نو د هغې مدبر خو د مخه لا ازاد سوي وو، اخر دا دوهم مدبر هم مړ سو او اقربا يې نسبي نه درلوده نو ميراث د دغه مريي هغې اولې ښځې لره دي، كذا فى جميع كتب الفقه والميراث.

قال المصنف رحمة الله عليه " او جر ولاء معتقهن او معتق معتقهن" او يا راکش کړی ښځې ميراث د معتق خپل او يا د معتق د معتق د دوي، و قد مر صورة جر الولاء فعليها قياس هذا.

قال المصنف رحمة الله عليه " واذا ترک المولى ابنا و اولاد ابن آخر فميراث المعتق للابن دون بنى الابن لان للكبير اولى"

او كه پرېښول مولى يعني مولى چې مړ سو يو يې زوي پرېښو، او نور اولاد وه د بل زوي يعني لمسيان، چې هغه زوي هم مړ وو، نو ميراث د مريي معتق د ده د زوي دي، نسته ميراث زامنو لره د هغه بل زوي ولي ولاء خو مشر لره ده ولې هغه مړ مولى ته نزدې دي، على قياس العصبات النسبيه كما سيئاتى ان شاء الله تعالى.

قال القدوري رحمة الله عليه " واذا اسلم رجل على يد رجل و والاه على ان يرثه ويعقل اذا جنى، او اسلم على يد غيره ووالاه فالولاء صحيح" او که اسلام راوړي یو سړي چي کافر وو پر لاس ده یوه بل مسلمان سړي یعنی د مسلمان په نصیحت او کوشش سره هغه کافر مسلمان سو، او بیا یې داسي عقد ورسره وکړي چي نو مسلم وه هغه بل مسلمان ته وویله چي زما میراث به ستا وي یعني که زه مړ سوم او زما دیت او تاوات به ته ورکوي که ما یو جنایت وکړي، او یا اسلام پر لاسه د یوه سړي راوړي وو، او عقد مو لات یې د بل سړي سره وکړي، فالولاء صحیح یعني دا عقد صحیح دي، او په نېز د د نرو امامانو رحمة الله عليه عقد موالات نه دي صحیح او هیڅ شئ نه دي، او که دغه نوي مسلم مړ سي او هیڅ قریب د ذوی الفروض او عصباتو څخه نه لري نو مال دې په بیت المال کي کښېږ دي او مولی موالات ته دې نه ورکوي و دلائل فی الکتب المبسوطه.

قال المصنف رحمة الله عليه " وعقله على مولاه فان مات ولا وارث له فميراثه للمولى وان كان له وارث فهو اولى منه" او دیت، که ده څوك په خطا کي مړ کړي، او داغه رنګه د جنایاتو نور تاوان یې پر مولی د موالات دي، او دغه نو مسلم که مړ سو او وارث یې نه درلو دي نو میراث یې د مولی د موالات دي، او که نو مسلم لره وارث وو د ذوی الفروض څخه او یا د عصباتو څخه نو هغه وارث اولی دي تر مولای موالات کما قال فهو اولی منه.

قال المصنف رحمه الله " وللمولى ان ينتقل عنه بولائه الى غيره ما لم يعقل عنه فاذا عقل عنه لم يكن له ان يتحول بولائه عنه الى غيره، وليس لمولى العتاقة ان يوالى احدا " او روا ده نو مسلم مولى لره چي نقل کړي خپل موالات د هغه اول مولى څخه و بل چا ته يعنى د بل چا سره عقد د موالات وکړي تر هغو پوري چي اول مولى د ده يو تاوان د جنايت د ده نه وي ورکړي، او که مولى اول د ده د بعضو جناياتو تاوان ورکړي وو بيانو نو مسلم د بل چا عقد د موالات نسي کولای، او نسي کولای چي مريي چي چا ازاد کړي وي چي دي دي ولاء د عتاقت وبل چا ته نقل کړي هر څوك چي وي.

**درويش وايي**:- چي په لوی توفيق د خداي جل جلاله اوله حصه د قدوري چي د کتاب النکاح څخه شروع سوې وه پر کتاب الجنايات باندي ختم سوه په ورځ د چهار شنبې شهر المبارك رمضان (۱۴۲۳ ه ق) د کوټي په ښار کي فلله الحمد والثناء والتوفيق الحسن، او دوهمه حصه د کتاب الجنايات څخه شروع کيږي تر آخر پوري د قدروي ان شاالله عزوجل، او د عباداتو حصه ډير د مخه درويش شرح پر کړی وه.

او که جل مجده توفيق راکړي د کتاب البيوع د حصې او د کتاب الشفع د حصې په دوه جلد کي به شرح و شائقينو ته وړاندي سي چي مجموع قدوري به په پنځه جلده کي شرحه سي ان شاء العزيز وما ذالك على الله بعزيز والحمد لله اولا وثانيا والصلوٰة والسلام على نبى محمد وعلى آله وصحبه ابداً وسرمداً.

# اعلان

چون كه قاري فضل الحق صاحب خوش نويس عزيز په نوشته كي ددې حصې ډيره عرق ريزي كړې ده او مصرف مالي يې هم پكښي كړي دي لهذا درويش د دې حصې د طباعت او كتابت ټوله حقوق و قاري صاحب مذكور ته هبه كړي دي، هيڅ كتاب فروش ته حق د كتابت او طباعت د دې حصې نسته البته په تجارتي مراعات هرڅو عدده چي مطلوب وي د نامبرده د مكتبې څخه دي يې خريداري كوي، وما علينا الا البلاغ.

**محمد عبيدالله نقشبندي كندهاري ايوبي غفرله الباري.**

# مهم زيرى

د مفسر العصر حضرت ايوبي مدظله العالى تفسير **تفسير ايوبي** پر پنځلسو (۱۵) جلدو مشتمل ډير ژر به د علم تفسير تشنه ګانو ته وړاندي سي انشاء الله العزيز

**الناشر:- مكتبة القراءت والتجويد**

# اعلان

چونکه قاری فضل الحق صاحب خوشنویس عزیز
په نوشته کی دد حصی ډیره عرق ریزی کړیده، او مصرف
مالی ئی هم پکښی کړی دی لهذا درویش دد حصی د طباعت
حقوق ټوله و قاری صاحب مذکور ته هبه کړی، هیڅ کتابفروش ته حق د
طباعت د دی حصی نشته" البته په تجارتی مراعات هر څوک دده څخه مطلوب و
دنامبرده دمکتبی نسخه دی خریداری
کوی"

وما علینا الا البلاغ

دحضرت علامه "جمیل الرحمن کاکړ" دمکتبة القرأت
والتجوید" په نامه ئی لیکلی دی قلم دی
تل روان او کړندی وی.

څو فضل الحق حقانی کوټه
۲۰۰۳-۵-۱۰ء

د علم تجوید او قراءت د مشهورو او معتبرو کتابونو لویه اداره

# د مکتبة القراءت نوی مطبوعات

| | |
|---|---|
| جمال القرآن | پښتو، و فارسی مع تشریحات جدیده |
| فوائد مکیه | پښتو، و فارسی مع تشریحات جدیده |
| مقدمة الجزریه | پښتو، و فارسی مع تشریحات جدیده |
| القول السدید | پښتو مع الحواشی جدیده |
| هدایة المستفید | پښتو مع الحواشی و تشریحات جدیده |
| مفتاح التجوید | پښتو، و فارسی مع تشریحات جدیده |
| خلاصة التجوید | پښتو مع تشریحات جدیده |
| تسهیل التجوید | پښتو مع تشریحات جدیده |
| تیسیر التجوید | پښتو (زیر طبع) مع تشریحات جدیده |
| تجوید محمدی | پښتو مع تشریحات جدیده |
| معارف التجوید | پښتو مع رسم قرآن مجید |
| مقدمة التجوید | پښتو (زیر طبع) مع تشریحات جدیده |
| امانیه شرح شاطبیه | پښتو دوه جلده مکمله شرح (زیر طبع) |
| تنشیط الطبع فی اجراء السبع | پښتو سره د (حق النفع) جدیده |

## زمونږ بنکلې او سنې مطبوعات

- آسانه فقه پښتو
- مُطوّل نوی کتابت
- فوائد مکيّه پښتو
- نورُالايضاح ۳ جلده
- اِرشادُالصرف فارسي
- قدُوري صلوٰة
- تعليمُ العقائِد پښتو
- قدُوري نکاح
- تعليمُ الاسلام پښتو
- شرُوطُ الصَّلوٰة
- نماز پښتو خورد وکلاں
- تيسيرُالتجويد
- اِيساغوجي عربي نوی کتابت
- تجويدونه
- مِيرايساغوجي عربي نوی کتابت

په هره ژبه سره
د تجويدونو مرکز

مکتبةُ القِراءة والتَّجويد
کانسی روډ شالدره

# اسانه فقه

د امام ابوحنیفه رحمه الله د مذهب
یو معتمد کتاب

تالیف

مولانا شفیق الرحمن الندوی

پښتو ژباړه

قاري فضل الحق حقاني